# شاهین

لیکوال: نسیم حجازی

ژباړن: محمد زبیر شفیقي



# د کتاب پیژندنه



نوم : ............ شاهین

لیکوال : .........نسیم «حجازی»

ژباړن : ......... محمد زبیر «شفیقی»

د چاپ نیته : د ۱۳۷۷ کال د جوزا میاشت

د چاپ شمیر:.... زر ټوکه

کمپوزر : .....محمد قاسم «خدری»

کمپوز : .... شفیق ... نگ سنتر

# اهـــــداء

هغــو شـــاه زلموته چې اوس هم د امت د تیـــرو عظمتونو خوبونه وینې.

هغـو ځوانانو ته چې د خپل اولس بدې ورځې یې خوبونه تښتولې دي.

هغو زلمیانو ته چې د آزادۍ او سرلوړۍ یوه ورځ د غلامۍ تر سلو کالوژوندغوره گڼي.

«شفیقي»



# فهرست

| شماره سرلیک | مخ |
|---|---|




# د مؤلف د سريزى يوه برخه

تاريخ ددى خبرى گواه دى چى تقدير بى سببه د كوم اولس پر سر د نعمت او رحمت بارانونه نه كوى او نه بى لامله د كوم اولس نه خپل نعمتونه او رحمتونه اخلى. په اندلس كى د مسلمانانو لوړتيا او ځوړتيا د فطرت له قانون سره سمه وه.

د لومړى هجرى پيړى په وروستيو كى چى د اندلس پر ساحل لږ شمير مسلمانان له خپلو كښتيو نه پلى شول نو د علامه اقبال په وينا د هغوى د سالار دا شعار ؤ چى «هر ملك ملك ماست كه ملك خداى ماست»

اسمان د ځمكى پرمخ ښنايى دومره پيړى د كوم قوم او يا ډلې داسې اقتدار نه وى ليدلى لكه په اندلس كې چى د مسلمانانو ؤ، خو اته سوه كاله وروسته همدغه قوم د بې وسى په اوښكو د خپل تاريخ وروستى باب ليكه.

دغه باب چى څومره دردوونكى دى هومره له عبرت نه ډك دى، خو دا يوه ناڅاپى پيښه نه وه، حالاتو دوى د راتلونكو خطرونه خبر كړى وو، په اندلس كى قرطبه، اشبيليه، طليطله او نورى سيمى د لاسه وركولو نه وروسته غرناطه د مسلمانانو ...

سربیره دوی ددغه ټولنیز خطر په وړاندې یو مورچل او محاذ جوړنکړای شو، د غازیانو ډلې ډګرته راووتلې خو د دوی ارادو د هغه اولس تقدیر بدل نکړای شو چې ټولنیز ډرکتر یې تباه شوی ؤ.

هغو سربښندویانو ته له بهرنی غلیم نه زیات کورنی غدار څو چنده ستر دښمن ثابت شو،

په غرناطه کې د هلال او صلیب جګړه یوازې د یوه قوم او بل قوم او یا د دوو پوځونو ترمنځ ټکر نه و، بلکې د دوو مختلفو قومونو، دوو مختلفو نظریو او دوو مختلفو تهذیبونو ترمنځ جګړه وه. د قسطلې او اراغون عیسویان یوازې «اسلام دښمنی» سره متحد کړي وو، له اندلس نه یې د مسلمانانو د نوم او نښان ورکولو لپاره اتحاد وکړ خو مسلمانانو په خپل هر افق د تباهی او بربادی د تورو وریځوله لیدو سره سره ونکړای شول چې خپله ټولنیزه دفاعی جذبه راویښه کړي. هغوی دا ثابته نکړای شوه چې که ټول کفار یو دي نو ټول مسلمانان هم سره یوی دي.

په دوی کې د عربی، بربری او اندلسی توپیرونه او اختلافونه هغه وخت هم وو چې دښمن یې د کور دروازه ورټکوله، ددې اختلاف نتیجه دا شوه چې اته سوه کاله وروسته دغه ستر اولس د بې کوره انسانانو یوه بې اسری ډله شوه.

د اندلس د مسلمانانو د ژوند همدغه باب ددې کتاب پس منظر دی، ددې کتاب زیاته برخه د ۱۹٤۷ کال د اګست له ۱۵مه نه وړاندې

چې له راتلونکو خطرونو نه یې خبر کړم، پخپله د هندوستان په ساره او اوړدو کې تکرار شو، زما په نظر په هند کې د مسلمانانو عامه وژنه هم تصادفي پیښه نه ده او د اندلس په څیر موږ هم پوهیدو چې دښمن څه عزایم او ارادې لري ...

مسلمانانو ! د هر قوم په ژوند کې یو داسې مهال راځي چې د ژبې او قلم پرځای د توري پریکړې ډیرې سهې وي، په دې دنیا کې عزت او سر لوړې یوازې د هغو برخه ده چې قیمت یې ادا کولی شي. د آزادۍ بڼ په هغه خاوره زرغونیدای شي چې د شهیدانو په وینو خړوبیږي. د یوه اولس د عظمت داستانونه تل په هغو وینو لیکل کیږي چې توئیدو ته بیتابه وي، او کله چې وینې وچې شي نو ...

اوبنکې بها نه په کاریږي !

کویټه د نومبر ۱۵ مه ۱۹٤۸

«نسیم حجازی»

هسپانیه تو خون مسلمان کا امین هے
مانند حرم پاك هے تو میرے نظر میں
پوشیده تری خاك میں سجدوں کے نشان هیں
خاموش اذانیں هیں تیری باد سحر میں

(علامه اقبال رح)

# د شاهين په اړه څو کرښې

د لوی پروردګار په سپېڅلی نامه.

دا دی الحمد لله «شاهين» تاريخی داستان زما د ځينو خواخوږو او مخلصو دوستانو او ملګرو په همت او ملاتړ ستاسو په مخکې ږدم.

زه د شاهين په باب دا قضاوت نشم کولی چی داستان دی که تاريخ! يو هنری شهکار دی او که يو تاريخی ارځښتناك اثر! ماته خو پخپله شاهين هر څه ښکاری هم يو حماسی داستان، هم يو مستند خو په هنری ژبه ليکل شوی تاريخ، هم د انسانی جذبو او احساساتو يو خوږ تصوير او هم د ايمانی ولولو او توپانی غورځنګونو يو حماسی داستان.

زه نه غواړم د «شاهين» په هنری او يا تاريخی ارځښت څه ووايم ، ځکه زه ځان د مرحوم نسيم حجازی پر اروا پالو ليکنو د قضاوت جوګه نه ګورم. زه د «شاهين» او ښاغلی حجازی صاحب د نورو تاريخی داستانونو په اړه يوازی د لويو اديبانو دا خبره يادوم چی د يوه شاهکار اثر يو لوی صفت دا دی چی د زمان او مکان له قيد نه لوړ وی. يعنی د هر مهال او د هر ځای لپاره په زړه پوری وی او نه زړيږی.

د حجازی صاحب زياتره تاريخی داستانونه تر پنځوسو کلونو پخوا ليکل شوی دی او ټول د څو پيړيو وراندی او د نړۍ د بيلو بيلو ګوښو

کولی، تر څو ددی هیواد خپل «ابو داود» غلیم ته د ننوتلو غلچکی لاری ور په ګوته نه کړی.

دغه پیغام یوازی د اندلس د هغه اولس نه دی چی خپل «ابو داود» او ابو عبدالله یی په «فردیناند» او «ازابیلا» وسپارل بلکی هر اولس ته دی، په هر وخت کی او همدا اوس هم موږ په خپلو اولسونو کی د ابو داود، ابو عبدالله، بدر بن مغیره ، ... او فردیناند کرکټرونه ګورو او پری شاهدان یو.

زه نور د لوستونکو مزاحم کیږم، نه یوازی دومره وضاحت ضرور بولم چی که څه هم ما د نسیم حجازی د شهکار داستانونو د ژباړی تکل او هیله له پخوا درلوده خو که د «سهار» ورځپانه نه وای او ماته ددی ژباړی د سمدستی چاپ زمینه نه وای برابره شوی له ما سره د دومره درانده پیټی در پورته کولو حوصله نه وه د سهار مؤسسی رئیس بناغلی حسین خیل ددی اثر په خپراوی کی زما حوصله اوچته کړی چی تری مننه کوم. همدارنګه یو شمیر مخلصو او خواخوږو دوستانو هر یو محترم خلیل زی صاحب، محترم حاجی شیراز الدین صاحب او حاجی کشر ګل صاحب، او څنی نورو خواخوږو چی نه غواړی نومونه یی خپاره شی د شاهین په چاپ کی مرسته کړی که د دوی دغه مخلصانه مرسته نه وای د «شاهین» د خپریدو امکانات نه وو، د خپلو درنو ورونو هر یو فروغګر صاحب، فایض صاحب، صافی صاحب او جمال ناصر څخه مننه

ښې د چاپ هيلو او غوښتنو ماته ددې داستان د چاپ حوصله راکړه چې زه يې په خپل وار قدر داني ته کور وداني وايم، گران ورور محمد قاسم «خدري» د شاهين په کمپوز کې ستوماني وگاللې چې کور وداني ورته وايم، همدغسې ورور ننگيالي په پوره خلوص ددې داستان د کمپوز په برخه کې او محترم محمد هارون د ښتي په ډيزاين کې همکاري کړې چې ددې ټولو دوستانو دغه ښيگڼې پر ځان پور بولم، په پای کې ددې تکې يادونه ضروري بولم چې انشاء الله «شاهين» به د مرحوم حجازي د شاهکار داستانونو د پښتو ژباړې د چاپ پيل وي او ډير زر به که خدای «ج» کول محمد (رح) بن قاسم او نور هم په کتابي شکل چاپ شي.

له درنو ليکوالو دوستانو او ورونو مې د زړه له کومې هيله او غوښتنه ده چې د «شاهين» د ژباړې کمزورې را په گوته کړي او په خپلو جوړوونکو مشورو مې وپالي تر څو ددې لړې د نورو اثارو په ژباړنه کې خپلې کمزورې رفعه کړای شم.

نور د خدای (ج) په امان

درنښت

محمدزبير «شفيقي» خيربازار

کابلي تاني ته مخامخ د سهار ورځپاڼې دفتر

# باغی




پنځوس تنه سپاهیان د غره له لمنې نه راښکته شول او د ګڼ ځنګله په منځ کی تیری شوی ویالې پرسر ویجاړ پله ته ورسیدل د ویالی نه پوری غاړه ځنګل نور هم ګڼ ؤ. په دره کی د ځنګلی ونو په منځ کی د انګورو تاکونه، د منو، انارو او ناکو ونې پردې ګواه وې چی دغه ځنګل یو وخت باغ ؤ. د پله نه پورې غاړه د سرك دواړو غاړو ته لوړې لوړې ونې ولاړې وې او ښاخونه یی پاس یوله بله داسی سره اوبدل شوی وو لکه د څپرې بام. وښو او شنو بوټو شاوخوا پر ځمکه لویی او کوچنی ډبرې په غیږ کې نیولې او پر دې ګواه وې چې دلته د خلکو تګ راتګ او ګنه ګونه نشته چې واښه تر پښو لاندې کړې.

د ویالې اوبه ډیرې ژورې نه وې، دغه سپاره له سرك نه لږ لاندې او یا باندې ترې تیریدای شوای.

خو دوه سپاره چی تر نورو مخکی وو له پله سره نژدی ودریدل شاته یی راوکتل او نورو ته یی هم د دریدو اشاره وکړه دغه سپاهیان ټول د جنګ په سامان ښه سنبال وو، له ټولو نه د مخکینی سپاره سپینه چپنه او پګړی پرسروه او له سترګونه پرته ئی مخ په نقاب کې پوښلی ؤ. دده ملګری د نورو سپاهیانو په څیر زغره اغوستې او خول یی پر سر و، خو د هغه مشکی ...کل آس او د زغری او خول ځلا له نورو نه توپیر وربخښلی ؤ دغه دواړه

نه ، هغه آزادی زموږ له دښمنانو نه اخستی، که هغه یوازې ددغه سرحد د ساتنی ذمه واری واخلی هم موږ به دده د آزادۍ درناوی کوو.

ملګری یی وویل : که هغه زموږ دغه وړاندیز هم و نه منی نو بیا؟ هغه ځواب ورکړ : بیا به هم زه په هغه تیری ونه کړم، خو ددی ارمان به می پاتی شی چی ما د غرناطی په پوځ کی یو نه ماتیدونکی سپاهی شامل نکړای شو.

د مشکی آس خاوند څه ویل غوښتل چی د پله په پورې غاړه پر سرك یوه هوسۍ ښکاره شوه،

هغه له ترکش «دغشو کڅوړې» نه غشی راواخست خو لایی لینده نه وه اوچته کړی چی دونو له منځه په یو شن غشۍ راغۍ او د پله پر سر د یوی تختی په منځ میخ شو، هوسی په یوه توپ ځنګله ته ننوته او له نظره پناه شوه، ټول سپاره ددی ناڅاپی غشی نه وارخطا شول یوه او بله خوایی کتل، د مشکی اس خاوند د لرګیو تختی ته وکتل پر غشی یی څه حروف ولیدل د سپینی چپنی خاوند ته یی وویل : لکه چی په هغه څه لیکلی دی.

دواړه له اسونو نه پلی شول د ونی په تنه نصب شوی تختی ته ودریدل په غشی لیکل شوی جملی یی ولوستی:

له دی ویالی نه پوری غاړې ته د سرحدی شاهین هیواد دی، دا ځر-ځایونه د غازیانو د اسونو لپاره وقف دی.

ددی ځنګل میوه او ښکار یوازې د هغو خلکو حق دی چې له پردیو نه یی د اندلس د ځمکی د ژغورلو تعهد کړی وی.

له غزناطی نه یوازی هغه خلك دلته ننوتلی شی چی د مجاهدینو په ډله کی شاملیدل غواړی.

هغه خلك چی د اسلام د دښمنانو په غلامی قانع وی، یا هغوی چی

ورته وويل : هغه له دې ځايه نږدې اته ميله لرې په يوه زړه کلاکې اوسي، خو د هغه د بدګوماني لرې کولو ته وړاندې موږ هلته نه شو تلای. دغه ګڼ ځنګل له غشو ويشتونکو نه ډک دی، زه به سپين بيرغ ورپورته کړم ښايي د دوی کوم سړی راشي او زموږ پيغام ورسوي.

د سپينو جامو خاوند په اثبات سرو خوځاوه، زغره اغوستونکی د خپلې ډلې سپاهيانوته يوه تن ته غږ وکړ، هغه سپين بيرغ اوچت کړ او د پله خواته راوړاندې شو.

زغره اغوستونکي په زوره غږ وکړ: څوک شته؟ موږ سرحدي شاهين ته د دوستۍ پيغام راوړی.

له يوې شيبې چوپتيا نه وروسته د پله په بله غاړه د يوې ګڼې ونې څانګې وخوځيدې، يو ځوان ترې راکوز شو، د ويالي غاړې ته رانږدې شو او ويې ويل:موږ د دوستۍ ځواب په دوستۍ ورکوو. خو سرحدي شاهين ښايي پردې اعتراض وکړي چې د دوستۍ د پيغام لپاره مو دومره سپاهيانو راوستلو ته څه ضرورت و؟

زغره اغوستونکي ځواب ورکړ: زما باور دی چې د بدرين مغيره سره ښنديان د غرناطې له پنځوسو سپاهيانو څخه نه ويريږي.

بيا هم تاسو له هغه نه پوښتنه وکړئ که يې پرې اعتراض وي موږ به دوی بيرته وليږو. که نه وي موږ خپله وسله تاسو ته سپارو او بله لاره داهم کيدای شي چې زموږ سپاهيان د ويالي په غاړه پاتې شي او ته موږ دواړه خپل امير ته بوځه.

ځوان ځواب ورکړ: که ته سرحدي عقاب پيژنې، نو د هغه له عادتونو نه به هم خبر وې، د هغوی له تاسو سره د ليدو پرځای ښايي له دې خبرې سره زياته مينه وي چې ستا سپاهيان چې د کوم پوځ سرغنديان دي د هغه پوځ

(۲)

ځوان د اندېښنې په حال کې شاته ونو ته وکتل، له لرې شيبې چوپتيا ورسته د ونو په منځ کې د آس د پښو تر پهار اوچت شو، او د سترګو په رپ کې يو سپور چې زغره يې اغوستې وه او پګړۍ يې پر سره وه، د وياله په غاړه ودريد، هغه اتلس شل کلن يو د خوشحاله بنې زلمی وُ، له څيرې نه يې د غير معمولي زړورتيا رڼا خپريده، هغه يوه شيبه د وياله په بله غاړه پوځيانو ته وکتل او ويې ويل : د بدربن مغيره سره د ليدلو لپاره تاسو ته د غرناطې د شاهي کورنې د کوم غړي د سفارش اړتيا نشته، هغه د يوه مخلص سپاهي په ليدو زيات خوښيږي.

زغره اغوستونکي ورته وويل : د يوه سپاهي د خلوص د ازمويښت محك د جګړې ډګر دی، او که تقدير ما او ستا امير ته په يوه محاذ د يو ځای کيدو فرصت راکړ، نو زما د تټرله زخمونو نه خو تيدونکي وينې به پخپله زما د خلوص شهادت ادا کړي، ولاړ شه خپل امير ته ووايه چې که ته د موسی په خلوص بدګومانه يې نو د قسطلې په کوم ښار حمله وکړه ويې ګوره، زه او زما دا پنځوس تنه سپاهيان به د تورو په سيورې او د غشو په باران کې د هغه ملګرتيا کوي.

په بله غاړه ولاړ ځوان لږ په غور خپل مخاطب ته وکتل او له څه ويلو پرته څو ګامه شکته ولاړ او آس يې په وياله ګډ کړ، بلې غاړې ته راپورې وت له آس نه راکوز شو او زغره پوښ ته يې لاس ور وړاندې کړ ويې ويل که.ته موسی يې نو زه له بلې پوښتنې پرته د دوستۍ لاس درغځوم.

موسی د زلمي لاس په لاس کې ونيو ويې ويل:

نو ته بدر بن مغيره يې؟ زه حيران يم چې ...؟

بدرن بن مغيره د هغه خبره ور بشپړه کړه ويې ويل :

بولم.

که د اندلس د ځولی له وروستی غشی نه ستا مطلب ابو عبدالله الزغل وی زه له هغه سره لیدل خپله نیکمرغی بولم، له غرناطې نه چی له ما سره کوم مجاهدین ملګری شوی، هغه د غرناطې د څو تنو زیاته ستاینه کوی په هغوی کی یو د پوځ مشر موسی بن ابی غسان او بل د شاهی کورنی الزغل دی.

موسی ځواب ورکړ: که ستا نظر له یوه نری نقاب نه تیریدای شی نو پخپله به یی وپیژنی، بدر د موسی نقاب پوښ ملګری ته وکتل، هغه لاس ورته راوغځاوه او په کیڼ لاس ئی د خپل مخ نه نقاب لرې کړ.

د الزغل عمر د پنځوسو کلونو په شاوخوا کی ښکاریده، هغه په ډیره مینه بدر بن مغیره ته کتل ویی ویل:

د اندلس د کځوړی وروستۍ غشۍ ستا غوندې ځوان دی.

بدر بن مغیره وویل : ستا له تشویق نه مننه، خو له بده مرغه په اندلس کی هغه لاسونه چی غشی ویشتلی شی د رباب په ترنګولو مشغول دی، الزغل ځواب ورکړ: زه به له دی لاسونو نه رباب واخلم او که می تری وانه خستلای شو بیا به دالاسونه ماتوم. د اندلس بی کاره لاسونه که د رباب له تارونو سره لوبیږی ددی لپاره دی چې هغوی غشی نه لری، زه د دوی لپاره غشی راټولوم زه تا ته د غرناطی په پوځ کی د شاملیدو د بلنی لپاره راغلی یم.

بدر بن مغیره ځواب ورکړ: دا بلنه ماته مخکی هم راکړل شوی وه، خو، زه او ملګری می د غرناطی په شاهی ماڼی کی د ننداري د سامان پرځای په دی ځنګل کی په اوسیدو خوښ یو. دلته له موږ سره د مرمر ډبرو محلونه او وریښمینې چینې نشته، خو دلته له موږ سره دا داد شته چې دنصرانې

تارونه به تری جوړ شي.

شاهین تر هغه پوری شاهین دی چی په ګرنګونو کی یی ځاله وی، او په پراخه فضا کی الوت کوی.

ویخښنۍ موږ د شاهي دربار د آدابو په مراعات بلد نه یو موږ یوازی سپاهیان یو او زموږ د جهاد مقصد یو دی.

په کومه ورځ چی د غرناطې پاچا دا اعلان وکړ چی موږ به د اشبیلیی او قرطبی په محلونو بیرته د اسلام بیرغ رپوو نو زه دا داډ ورکوم چی موږ ته به د بلنی لپاره ضرورت نه وی موږ به بی بللو ستا په مخ کی حاضر وو او د اندلس هغه خاوره چی د غرناطی خلك خپلی خولې پری تویوی موږ به یی په خپلو وینو خړوب کړو، په خدای «ج» سوګند دې چی که چا زما په باب دا ګومان کړی وی چی ما د امیر د لقب ګټلو لپاره دا لویه پیل کړې نو هغوی اشتباه کوی، زه یو سپاهی یم او د غرناطی د داسی سالار په انتظاریم چی د طارق نظر او د عبدالرحمن زړه ولری، دغه دره به د هغه لپاره د یوی قرار ګاه او مرکز په حیث وی او تر څو داسی سالار نه وی موندل شوی زه به ددی مرکز ساتنه کوم، که هغه سالار په تاسو کی کوم یو وِی دا سنګرورته حاضر دی.

که نه وی نو تاسو درځی ما پرېږدی چی انتظار وکړم.

له ما نه وراندی زما پلار او له هغه وراندی زما نیکه د داسی سالار په انتظار دغه مورچل ساتلی ؤ او زه به هم خپل مسئولیت ترسره کوم.

بدر بن مغیره دا وویل او چوپ شو، الزغل د مینې، خلوص او شفقت جذباتو په مخه کړ تر ډیره یی هغه ته کتل او چوپ ؤ بالاخره یی وویل :

د مغیره له زوی نه زما همدا تمه وه.

ځوانه! مبارکه ده هغه ورشو چی ستا آسونه پکی څری، مبارکی دی

میاشتو کی زموږ په مخ کې ډیر کارونه دی او زه ددی اړه نه وینم چی درته ووایم باید څه وکړی؟

د بدر ښکلی سترګی له خوښۍ نه وځلیدې هغه د الزغل لاس په لاس کی ونیو او په شونډو یی کیښود ویی ویل:

که د نصرانیانو پرخلاف د بغاوت د جنډۍ اوچتولو لپاره خدای «ج» دغه لاس تاکلی نو زه یی مچوم.

الزغل غیږ خلاصه کړه او بدر یی په غیږ کی ونیو، له الزغل ورروسته بدر موسی ته وکتل ویی ویل: زه ستاسو او ستاسو ملګرو ته ښه راغلاست وایم.

موسی را وړاندی شو هغه ته یی غیږ ورکړه الزغل ورته وویل: موسی! دغه شاهین دی پس له ډیری مودی په پنجو کی را ګیر شو بیایی پری نږدی.

موسی بدر په تندی ښکل کړ ویی ویل: ته اندیښنه مه کوه، زه تا په قفس کی د اچولو پرځای له تا سره د یو ځای الوتو هڅه کوم.

بدر وویل : زه تا پیژنم، او بیایی زیاته کړه د غرناطې د سترګو تور به څوك نه پیژنی؟

موسی وویل : زه یوه خبره ضرور کول غواړم.

بدر: ووایه !

موسی : زما ګومان ژ چی حالاتو به ته ډیر محتاط کړی یی خو نن چی تا څه کړی هغه ستا د عادت خلاف دی، ته موږ ته یوازی راغلی څه پوه شوی چی زموږ نیت خراب نه دی ؟

بدر وخندل ځواب یی ورکړ: د پنځوس تنو که نیت خراب وی هم زه یی دلته د ځان لپاره خطر نه ګنم

خبره دا ده چې ستاسو پنځوس تنه پوځیان همدا اوس هم زما د ملګرو تر ولکې لاندې دي. موسیٰ حیران شو څلورو خواوته یې په ګنو ونو نظر واچاوه بدر ومو سکل ویې ویل : کوم څوك، چې هدف وويني هغه موږ غشي نه شو بللی.

- زه ستا اندیښنې لرې کولو ته تیار یم.

دایې وویل او بیا یې له ترکش «غښو کځوړې» نه غشی راواخست په لینده کې یې کیښود همغه د لرګي تخته یې نښه کړه او په لوړ آواز یې وویل : زموږ درانه میلمانه غواړي وګوري چې اوس دلته څومره شاهینان شته خبر دار اوسی تخته ستاسو نښه ده.

او کله چې د بدر بن مغیره غشي له لیندې نه ووت او په تخته کې ونښت له څلورو واړو خواونه د غشو باران شو او ټوله تخته د غشو نه ډکه شوه، د ونو پرې شوې پاڼې په هوا کې والوتې.

موسی حیران شو ویې ویل:

زموږ شاته هم په ونو کې ستا ملګري دي؟

بدر : هو! او ستاسو مخې ته هم د تختې په بل لورې به ته له دې نه هم زیات غشي وګورې.

الزغل وویل : موسی موږ له دې ځوان نه باید ډیر څه زده کړو، زه د څو ورځو لپاره د پوځ یو څو سرداران را استوم. زه زیاتې هیلې لرم او غواړم چې همدا نن موږ بیرته ستانه شو.

بدر بن مغیره وویل : ما ویخښې دومره ډیر مې دلته ودرولی، تاسو راځئ هلته به آرام کښینو او خبرې به وکړو.

الزغل ځواب ورکړ: ستاهستوګنځی خو له دې ځایه ډیر لرې دی که هلته ولاړ شو نن به بیرته ستانه نشوای شو.

غشي ویشتونکي سپاره له یوې او بلې خوانه له ځنګله نه راووتل او د ویالي پر غاړه د پله شاوخواته راتول شول.

یو سپور د ځنګله له منځه راووت او ډېر ګړندی دوی ته ورغی په مخکې یې ودرید او دوی ته یې په تذبذب وکتل د هغه عمر د (۲۲) کلونو په شاوخوا کې ؤ، څېره یې عربو او یابربر مسلمانانو ته ورته نه وه بلکې د هسپانیې او عربو ګډې نخښې پکې ښکاریدې. په څېره کې یې د سپاهیانه هیبت پرځای د علم او ذکاوت علامې جوتې وې. د بدر په څېر د هغه هم سپینه پګړۍ پر سره وه. خو پر زغره دپاسه یې سره چپنه اغوستې وه، د هغه د زین پرسر د څرمنې دوی کڅوړې هم ځړیدلې.

بدر هغه ته وکتل ویې ویل : بشیره! راغلې، دا د اندلس د پاچا وررور الزغل دی، او دا بل موسی دی، دوی موږ ته یو زیرې راوړی دی، په نژدې وخت کې د قسطلې پرخلاف د جهاد اعلان کیدونکی دی.

بشیر له اس نه کوز شو دواړو ته یې لاس ورکړ او سترې مشې یې ورسره وکړه بیا بدر وویل : دا بشیر بن حسن دی، تاسو به دده نوم اوریدلی وی، په اندلس کې تر ده غوره جراح نشته، په قرطبه کې یې خپله شانداره ماڼۍ پریښوده او دا دی په دې ځنګله کې له ما سره په ژوند تیرولو خوښ دی، بدر خپلو ملګرو ته څه اشاره وکړه او ټول یو پر بل پسې په ځنګله ننوتل او له سترګو پناه شول.

*****

(۳)

لږ ځند وروسته بدر او بشیر خپل میلمانه د ځنګله په منځ کې د یوې چینې څنګ ته بوتلل، هلته دونو تر سیورې لاندې په یوه شنه چمن لوی دسترخوان غوړیدلی ؤ. د بدر پنځوس شپیته تنه دلته هم وو، هغوی د میلمنو آسېنه [illegible]

ښکار په کباب شوی غوښه او ډول ډول میوو ډک شو.

میلمانه حیران شول یو بل ته یې کتل، بالاخره الزغل وویل : تاسو ډیر زحمت ایستلی دی، زه حیران یم چې تاسو دومره زر داسې بندوبست څه ډول وکړ؟

بدر ځواب ورکړ: ما مخکې تاسو ته عرض وکړ چي تاسو له دې ځایه شل میله لرې وې ماته مو د راتګ خبر راغی، ما ته دا خبر هم رسیدلی چې تاسو په لاره کې ناشته نه ده کړې، او چې ماته مې خبر راوړونکو وویل چې تاسو له ځانه سره د خوراك شیان هم نه لرې نو ما به له دې بندوبست پرته نور څه کول؟

د ډوډۍ له خوړلو وروسته د الزغل په امامت د ماسپښین لمونځ ادا شو، له دې وروسته بدر، بشیر، الزغل او موسی له نورو خلکو نه لرې وراندې د یوې ونې تر سیورې لاندې جلا کیناستل. موسی د اندلس نقشه راوښکله او وې غوړوله او تر ډیره وخته یې د راتلونکي جګړې په اړه په مختلفو تجویزونو خبرې اترې او مشورې وکړې، الزغل د بدر ډیر وړاندیزونه ومنل او وې ویل:

له حملې نه څو ورځې وړاندې به تاسو غرناطې ته راوغواړو. سملاسې زه غواړم چې څو نورې سرحدي سیمې هم ستا په اختیار کې شي. ته به له دې ځنګله نه دغه سیمې هم ساتې، موږ به له دې سرحد نه ډاډه شو او ټول ځواك به بل محاذ ته واستوو، ما له ابولحسن نه ددې سرحد لپاره ستا د ولایت فرمان راوړی دی خو زه ویریږم که دا کار وشي فردیناند به پوه شي او خطر به احساس کړي او زموږ د تیارۍ نه وړاندې به پر موږ حمله وکړي. ددې په خاطر زما رایه دا ده چې په نامه والي بل څوك وي او کار او صلاحیت به ستا وي، ترڅلورو میاشتو پورې له عیسویانو سره څه ټکر او جګړه زموږ په ګټه نه ده. په دې موده کې به موږ د دوی له وضعې ځان

او یا دوه سوه کاله وړاندی سوچ کړی وای.

دوه سوه کاله وړاندی یوازی له قرطبی- طلیلطی او اشبیلیی نه دری لکه مهاجر غرناطی ته د جهاد لپاره تللی ؤ. خو هلته د حسد او دښمنی په اور کی د دوی توری ویلی شوی، یوازی په دغه دره کی پنځوس کاله وړاندی شپیته زره تنه مجاهدین وو. نن له ما سره یوازی پنځه زره تنه غازیان دی. خو که غرناطی د جګړی او مقابلی پریکړه کړی وی، نو د دوی شمیر دری چنده کیدای شی. تر اوسه پوری زیات فالتو اسونه په دی ځنګل کې ځری، که موږ ته د وسلو ضرورت شو تاسو ته به احوال درکړم.

بدر ته د سرحدی سیمو د سپارلو په اړه د زیاتو مشورو نه وروسته الزغل خپلو ملګرو ته د سفر د تیاری حکم وکړ.

*

# سرحدي شاهين

پر اندلس د مسلمانانو ولکی نژدی اته سوه کلونه تیر شوی وو.
ددی اتو پیړیو تاریخ د یوه ستر قوم د عروج او زوال داستان دی چی لومړی فصل یی د عربو فاتحانو او اموی کورنی لوړ همته امیرانو په خپلو وینو لیکلی. اوس دغه لوی قوم چی هیبت یی د روم د بحیری باغی څپې ایل کولی او عزم او ارادې ته یی د پیرنه د غرونو څوکې په گونډو وی د بی کسی په اوښکو خپل وروستی باب لیکی، د تهذیب او تمدن هغه ونه چی طارق بن زیاد. او موسی بن نصیر غوندی سربښندویانو او د عبدالرحمن وارثانو پاللی وه اوس د خزان د توندو او یاغی څپو سره مخ وه.
مسلمانان د تالندې په څیر په دی هیواد راننوتل او کله چی د مقاومت ټول دیوالونه ولویدل، او د هسپانیی اوسیدونکو د عربو شاه ځلمیو ته وسلی کیښودی، نو دغه تالنده د رحمت پر باران بدله شوه د اندلس شاړه ځمکه ئی د عدن پربن بدله کړه.
هغه هیواد چي انسانیت پکې د جهالت په منگولو کی ساه ورکوله د اروپا د علم علمبردار شو،
کله چی په اروپا د وحشت او بربریت تیارې راخپرې وې، د اندلس په هر کور کی د علم او هنر ډیوې بلې وی. کله چې د اروپا زیاتو اوسیدونکو د ځناورو څرمنی اغوستی او په غارونو او ځنگلونو کی اوسیدل، د اندلس

د امويانو د خلافت دوره د اندلس په تاريخ کې طلايي دوره وه، اوس هم چې کله کوم سيلانی د قرطبې، اشبيليې او طليطلې په کنډوالو کې د پخوانی شان او شوکت تصور کوي په حيرانتي دا پوښتنه کوي چې دا همغه ځای دی چې د خلکو د خوشحالی په ليدو به يې د شارلمان سفير هك حيران کېده.

آيا اوسنی هسپانيه هماغه د عربو اندلس دی چې له خاورو به يې طلا راپورته کيده، هلته چې د غريبۍ او فقر نوم او نښان نه ؤ او سوداګری يې تر ايران، روس او چين پوري غځيدلی وه.پوهنتونونه يې په ټوله نړۍ مشهور ؤ، او علماؤ ته به يې د افلاطون او ارسطو شاګردانو زنګون مات کړی ؤ.

د اندلس د مؤرخينو ارواوې چې ښايي هر ماښام اوس په هغه ويرانو راګرځي په غمجنه لهجه موږ ته ددې پوښتنو ځواب راکوي چې : هو! دا هسپانيه د عربو هماغهاندلس دی چې د عظمت داستان يې هيره افسانه شوه، دغه جبل الطارق همدغه دی چې د طارق بن زياد کښتيو دلته لنګر اچولی ؤ. دغه قرطبه هماغه ښار دی چې د دريم عبدالرحمن د دربار شان او شوکت ته د نړۍ د سترو ټولوا کانو سفيران حيران وو. دا همغه اندلس دی، هو هغه عظيم اولس چې په خپلو وينو او خولو يې دغه خاوره سمسوره کړی وه ورك شوی دی. تر دی کنډوالو لاندې د همغو سترو معمارانو جسدونه دي. چې له دغه هيواد نه يې د نوری اروپا لپاره د رڼا ځلی جوړ کړی ؤ.

د نړۍ تاريخ د مختلفو قومونو د کمال او زوال داستانونه وايي خو د اندلس د عربو فاتحانو د کمال او زوال داستان ترټولو زيات په زړه پوری او تر ټولو زيات عبرتناك دی.

لمر ، سپوږمی او ستوری چې له پاسه له آدم «ع» نه تر دی دمه کايناتو ته ګوری که يې په ټتر کې زړه وي د اندلس د عربو فاتحانو د عروج او زوال

څواکمنو واکمنو په وخت کی به دوی مسلمانانو ته جزیه ورکوله او د مسلمانانو د خپلمنځي اختلاف او کمزوری په وخت کې به یی بیا د خپلواکی اعلان کاوه او په سرحدونو به یی بریدونه کول. په اندلس کی داموی خلافت دوره د ترقی او پرمختګ دوره وه، او اموی حاکمانو د خپلو شمالي عیسوی ګاونډیو سره د هغوی د بدنیتیو سره سره له زغم نه ډک چلن غوره کړی ؤ.

په پنځمی هجری پیړۍ کی د امویانو له زوال نه وروسته د اندلس مسلمانان له یوه مرکز نه محروم او په خپلمنځي جنجالونو کی راګیر وو. د اندلس ستر حکومت په (۲۰) کوچنیو ټوټو ویشل شوی و، ددی ګډوډی او اختلاف نه شپږم الفانسو ګټه واخسته او د شمال دری عیسوی ریاستونه «اسچوریا، لیون، او قسطله» ئی سره یو کړل او پاچائی شو.

د مسلمانانو خپل چاری کوم واکمن به چي له خپل ګاونډی مسلمان بل حکمران نه ماته وخوړه له الفانسو نه به یی مرسته غوښته، هغه هم یو حاکم ته د بل په مقابل کی مرسته ورکوله او د خپلی مرستی قیمت ئی ترلاسه کاوه، تر دی چی نژدی د اندلس ټول مسلمان حاکمان دده جزیه ورکوونکی شول. د الفانسو پوځ د اندلس په ساره او اوږده کی پوځی تاښې جوړې کړې او د خلکو په لوټلو او ځورولویي لاس پوری کړ.

ددغه مصیبت په وخت کی د الجیریا او مراکش حکمران یوسف بن تاشفین د مسلمانانو مرستی ته راغی، هغوی یی د عیسویانو له ظلم نه وژغورل، خو لنډ فکره مسلمانان یی په یوه مرکز راټول نکړای شول، او چی د مسلمانانو د وحدت ټول تدبیرونه ئی ناکام ولیدل اندلس یی د افریقا د واکمنی یو ولایت اعلان کړ.

د افریقا د مرابطین دغه واکمنی چی یوسف بن تاشفین یی تاداو کیښود

له بده مرغه د دوي مرکز هم افریقا وه او له هغه ځایه یې اندلس اداره کاوه. چې بالاخره هغوی هم ورو ورو کمزوري شول او د اندلس د امیرانوسازشونو بیا زور ونیو.

په ۱۲۱۲ هـ کې عیسویانو د موحدینو لښکر ته په «لاس نواس» کې ماته ورکړه او له دې نه وروسته د مسلمانانو یو یو ښار جلا جلا د عیسویانو په لاس کې ولویدل.

له ۱۲۳۸ هـ نه ۱۲٦۵ هـ پورې مسلمانان یو له بل سره لاس او ګریوان وو. په دې وخت کې د قسطلي عیسوي پاچا فردیناند د ثالث او اراغون له پاچا هانو سره متحد شو او قرطبه، بلسیه، اشبیلیه او مرسیله یې ونیول. مسلمانانو ته د عیسویانو په لاس کې د قرطبې او اشبیلیې سقوط د مغلو په لاس د بخارا او بغداد له سقوط نه کم نه وو.

په اندلس کې اوس یوازې د غرناطې حکومت د مسلمانانو وروستی پناه ګاه وه، دغه ریاست د سیرانویدا له غرونو نه د ساحلي ښار المریې او تر جبل الطارق پورې غځیدلی ؤ. په غرناطه کې نژدې تر دوه نیم سوه کلونو پورې نوره هم د مسلمانانو پاچاهي پاتې شوه، د عیسویانو په لاس کې لویدلیو ښارونو نه مسلمانان غرناطې ته مهاجر شول او تولو غرناطه خپله وروستی پناه ګاه او د اسلامي ریاست وروستی مورچل باله، هغوی د غرناطې واکمنو ته ورغلل او د جهاد لپاره یې تیاري وښود، خو د مسلمانو حاکمانو هغه توره چې له لویو نه د لوی قوت پروایي نه لرله نور په تیکی کې ننوتلې وه.

د غرناطې ریاست تردوو نیمو پیړیو پورې د خود غرضو امیرانو د خپلمنځي کشمکش او ګډودي او له بهرنه د عیسوي لښکرو د لوټ مار او وژنو نخښه ؤ، کله کله به د غرناطې واکمنو عیسویانو ته ماته هم ورکړه خو غرناطه د داسې ارادې خاوند حاکم نه محرمه وه چې د عیسویانو د

په ډګر له غرناطې سره سيالي نه شواى کولى، د دوى معماران په ټوله نړۍ مشهور وو. په پوهنتون کې يې د لرې لرې هيوادونو زده کوونکو علم حاصلاوه، د غرناطې جراحان او ډاکتران په نړۍ کې بې سياله وو.

کله چې کوم قوم د آزادي، عزت او خلاصون لاره غوره کړي نو علم دوى ته د مشال او ډيوې په حيث شي، او کله چې دوى له دې لارې نه واوړي بيا همدغه علم د يوې تشنه راوړونکې دوا په څير شي. او دوى د خپلو بدو عملونو او لټيو په وجه د ضمير له ملامتي نه ژغوري.

د نهمې هجري او پنځلسمې عيسوي پيړۍ په دوهمه نيمايي کې د غرناطې د اسلامي رياست د لويدو اثار ډير ګرندي راڅرګند شول، د پنځم فردينانډ او ملکې ازا بيلا په واده سره د عيسوي دوو رياستونو «اراغون او قسطله» اتحاد او د مسلمانانو خپلمنځي اختلاف د مسلمانانو د اقتدار وروستيو ډيوو ته د شمال تونده څپه ثابته شوه.

*****

(۳)

بدر بن مغيره د قسطلې اميرانو او عوامو د «سرحدي عقاب» په نامه ياداوه، د قسطلې د پوځونو پرخلاف د هغه د سترو برياوو په وجه په غرناطه کې هم په دې نامه مشهور شو، دغه شپيته ميله اوږد او څلويښت ميله سوړور ځنګل له يوې مودې را په دې خوا د هغو آزادو سرښندويانو مرکز ؤ چې له غرناطې سره بې طرفه او د سرحدي عيسوي واکمنو سره په ټکر کې وو. له بدرنه وړاندې ددې سيمې امير د بدر پلار مغيره ؤ، هغه د عيسويانو زياتي سيمې په خپله ولکه کې راوستې وې، د غرناطې حکامو غوښتل له هغه نه باج واخلي، هغه د غرناطې د پاچا استازي ته ځواب ورکړ چې که د غرناطې حاکم عيسوي پاچا ته جزيه ورنه کړي نو داسيمه د دوى ده او زه به د دوى د پوځ د يوه معمولي سپاهي په حيث له عيسويانو سره

واستاوه چی تر خو ستا مخالفت یوازی د سرحدی عیسوی پاچا هانو سره وی مورږ به ستاسو په مخ کی خنډ نه شو.

د قسطلی باج ورکوونکو عیسوی حاکمانو هم د خپلمنځی رقابت نه لامله د مغیره پرخلاف کوم متحد محاذ جوړنکړ ای شو او مغیره ته د تیاری موقع په لاس ورغلی وه. د عیسوی حاکمانو تر واك لاندی محکومو مسلمانانو مغیره ته د ملاتړ پیغام استاوه او ورسره یو ځای کیدل خو هغه لاشپږ زره مجاهدین راټول کړی وو چی د اندلس په نصرانی بړخه کی یو لوی بدلون او انقلاب راغی.

د پنځم فردیناند او از ابیلا په واده د شمال د اراغون او قسطلی دوه ځواکمن عیسوی ریاستونه سره یو شول او دغه یو والی مسلمانانو ته ستر ګواښ شو، د فردیناند په وړاندی د وړوکو عیسوی امارتونو حیثیت د وړوکو سردارانو په څیر شو، فردیناند هم د غرناطی د باج ګذار حکومت نه د مغیره وړوکی امارت زیات خطرناك باله، هغه دا هم احساس کړه چی ددی سیمی د نیولو لپاره دوی ته د ډیرو لښکرو قربانی په کار ده.

مغیره د راټلونکو ګواښونو اټکل وکړ او د اندلس په ساره او اوږدو کی د مجاهدینو په را ټولو لاس په کار شو هغه د خپلواکو سیمو د ساتنی لپاره خپل یو مرستیال پریښود او د یوه معمولی سوداګر په بڼه د اندلس په سترو سترو ښارونو راوګرځید. د قرطبی، اشبیلیی او نورو ښارونو هغه مسلمانان چی اروا‌وی یی د غلامی په زنځیرونو کی نا آرامی وی دده بلنی ته لبیك ووایه او د ده په لاس یی د جهاد لپاره بیعت وکړ او مغیره ته یی وعده ورکړه چی د مناسب وخت په راتلو به دوی په خپل خپل ښار کی د عیسویانو پرخلاف د بغاوت جنډی پورته کړی. خو مغیره دا هم احساس کړه

منعه شوی ؤ د عربی جامی اغوستل منعه وو، مسلمانان پر دی مجبوریدل چی خپل بچیان عیسوی ښوونځیو ته واستوی.

هغو خلکو ته لږ امتیازات هم ورکول کیدل چی عیسوی دین به یی ومانه. خو څوك چی مسلمان پاتی کیدل دا امر ورته شوی ؤ چی یو ځانګړی سنبان تینګ کړی، په بازارونو کی به له هغوی سره سپك چلن کیده. په داسی حالاتو کی یوه کمزوری ډلګی پیدا شوه چی ظاهراً عیسویان شوی وو خو پټ یی په کورونو کی لمنځونه کول، د اندلس د پاتی مسلمانانو لپاره تر ټولو خطرناك یو اولسی تحریك ؤ د منافقینو یوه ټولګی د اندلسی او غیر اندلسی ترمنځ جګړه پیل کړه، دی خلکو هسپانوی نژادی مسلمانان د عربی نژادو مسلمانانو پرخلاف سره یو کول او عیسوی حکومت د دوی دغه غورځنګ د خپلو ګټو موافق لیده او ملاتړ یی کاوه، دی خلکو به د عربی مسلمانانو پرخلاف په جوماتونو او د ښار په ګنه ګونه ځایونو کی برالا پروپاګند کا وه، ددی وضعی له لامله د اندلس زیاتره عرب او بربر نژاده مسلمانان یا افریقی ته ولاړل او یا یی په غرناطه کی پناه واخستله.

مغیره چی ددی ښارونو له دوری نه راستون شو ډیر امیدوارنه ؤ، په دیرشو ښارونو کی نژدی څلور زره مسلمانانو د هغه په لاس د جهاد بیعت کړی ؤ. خو هغه بیا هم مایوس نه ؤ او دا ژمنه یی وکړه چی د اندلس هر ښار ته به د جهاد پیغام ورسوی.

هغه دا هم احساسوله چی ترڅو د غرناطی کوم حکمران د عیسویانو پرخلاف د بغاوت جنډی اوچته نه کړی په اندلس کی د اسلام د عظمت خوبونه بیا لیدل ممکن نه دی. د هغه د ژوند ترټولو ستر ارمان همدغه ؤ چی د غرناطی کوم واکمن د عیسویانو پرخلاف د جهاد اعلان وکړی او دی د سربښندویانو په پوځ کی شامل شی. خو د غرناطی تخت د خود غرضو د

يوه ورځ مغيره د ځنګل د يوې پخوانۍ کلا په يوه کوټه کې ناست ؤ، يو سپاهي راغی خبر يې راوړ چې څو سپاهيانو يو نا پيژندوی سړی په سرحد کې نيولی دی او راوستی يې دی، هغه وايي چې له طليطله نه مې يو ضروري پيغام راوړی دی.

مغيره تر اوسه پورې طليطله ته د جهاد ددعوت لپاره نه ؤ تللی د ده په حکم يې ناپيژوندی راوستو د بدر عمر هغه وخت (۱٤) کاله ؤ او د پلار ترڅنګ يې ناست و. ناپيژندوی چې کوټې ته ورننوت يوه او بله خوايې وکتل او وې ويل: زه له تا سره يوازې څو خبرې کوم، مغيره سپاهيان بهر ته واستول وې ويل : هو وايه که نه ! مغيره په سواليه انداز بدر ته وکتل، مغيره ورته وويل: دده په باب انديښنه مه کوه دا زما زوی دی.

اجنبي له جيبه يو ليك راوويست او مغيره ته يې ورکړ وې ويل : دا ولوله.

د اوږده ليك په لوستلو سره مغيره په چورتونو کې ډوب شو، د هغه په غوږونو کې د ليك وروستي الفاظ کرنګيدل:

په طليطله کې لس زره سربښندويان ستا په انتظار دي، زه حيران يم چې تا تر اوسه دغه ښار ولې له پامه غورځولی د طليطلې مسلمانان د اندلس له نورو مسلمانانو نه زيات مظلوم دي.

او په دوی کې په زرګونو داسې دي چې د ظلم تر بار لاندې په سلګو سلګو له مرګ قبلولونه دا غوره کوي چې ستا تر بيرغ لاندې په مقابله کې ووژل شي.

مغيره استازي ته په ځير ځير وکتل وې ويل: ورځه ورته ووايه زه درځم، ډير ژر خامخا درځم.

وروسته مغيره څو تنه سپاهيان راوغوښتل او ورته وې ويل : دغه

مغیره ځواب ورکړ: زه هم درځم، سپاهي بیرته ووت.

مغیره د خپل زوی سرته ودرید او د هغه په معصومه څیره یې سترګی ښخې کړې، بالاخره ورتیت شو په تندي یې ښکل کړ، بدر ناڅاپه اسویلی وکړ او په یوه وړوکی چیغه یې سترګی وغړولی، وېې ویل : زه چیرته یم! په غږ کی یې ویره وه، وېې ویل پلار جانه ! او مغیره ته یې غیږه ورکړه.

پلار جانه ! پلار جانه ! زه دی یوازی نه پریږدم.

زه هم درسره ځم .

مغیره ورته وویل : زویه څه خبره ده او بدریې سینی ته ورجوخت کړ.

بدر ورته وویل : پلاره ما دیر بد خوب ولید، ډیرولیوانو په ما او تاپسی راودانګل ، ته وروسته پاتی شوی او را ګیرنې کړی، زه ستا د مرستی لپاره در وګرځیدم خو تا راته ویل بدره ! ته وتښته، ، پلار جانه که ته ځې زه هم درسره ځم.

مغیره په غمجنه لهجه ورته وویل : نه بچیه !

بدر وویل : پلار جانه! تا پروسږ کال وعده راسره کړی وه چی کله غرناطی ته ځې ما به هم درسره بیایې.

مغیره : زه خو اوس غرناطی ته نه ځم، زه طلیطلی ته ځم او که تاله ځان سره بوځم هلته به له ډیرو خطرو سره مخ شو.

بدر: پلار جانه زه دارن نه یم.

مغیره : زویه که د جګړې ډګر ته تلای ما به ته نه وی ایسار کړی او له ځانه سره به می بیولی، خو طلیطلی ته زما یوازې تګ مناسب دی.

بدر : خو زما باور دی چی ته به هلته یوازی نه ځې.

مغیره : څنګه ؟

بدر : زما خوب پلار جانه ! ته پخپله وایې چی زما خوب دروغ نه وی.

غیاب کی به د خپلی ذمه واری په پوره کولو کی سستی نه کوی.
او که ته په ما پسی راغلی نو دا به زما د حکم نه د سرغړولو په معنی وی.

*****

(۵)

یوه میاشت تیره شوه خو مغیره بیرته رانه غی، په داسی سفرونو کی کله کله د هفتو پروګرام په میاشتو بدل شی، ځکه خو دده ملګرو څه اندیښنه نه کوله، خو بدر ورځ په ورځ اندیښمن کیده، هغه د شوری په مجلس کی طلیطلی ته د یوه هوښیار ځری استولو هیله وکړه، او هغه دا هم وویل چی د ځری له استولو نه وړاندی زموږ لپاره دا هم ضرور ده چی د هغه سړی په باب چی مغیره یی وربللی ؤ هم معلومات حاصل کړی، بدر په الماری کی په کاغذونو کی هغه لیك ولټاوه، چی پلار ته یی له طلیطله نه را استول شوی ؤ خو په لیك کی هغه په څو ډلایلو د خپل نامه له لیکلو نه ډډه کړی وه او لیکلی یی وو چی که ته لږ په ذهن زور راوړی ما به وپیژنی چی څوك یم، ستا سره زما ملاقات په اشبیلیه کی په یوه سرای کی وشو، خو افسوس چی پر آس له سپریدو نه وړاندی تا ما ته خپل نوم راونه ښود، او ما له تا سره د خبرو موقع پیدا نه کړه، که نه نو دا به می درته ثابته کړی وه چی زموږ ارمان سره شریك دی، پخوا له دی چی ما له تا سره څه خبره کړی وای تا اس چارګام کړ، زه ځکه بیا درپسی نه شوم چی زما په باب څه بدګومانی ونه کړی، او که ته طلیطلی ته راغلی زما د موندلو لاره دا ده چی د ښار د ختیځی دروازی نه بهر یو سرای دی، د سرای مالك یو د تیټ قد خاوند دی چی د لاندی ذامی دوه غاښونه یی مات شوی دی، ته هغه ته ووایه چی له خپل ناپیژندوی دوست سره لیدل غواړم هغه تا ماته راولی، پخوا له دی چی له ما سره وګوری ته چاته خپل مقصد او نوم مه ورښیه.

د قرطبې پټې ډلې ته دا خبر له طيطلې نه د راغليو سوداګرو له خولې معلوم شوی ؤ.

څو ورځې وروسته د دوی استول شوی سړي هم بيرته راستون شو او دغه خبر يې تائيد کړ، د بدر او دهغه د ملګرو د پوښتنې په ځواب کې نوموړي دا هم وويل چې ما هغه سړی معلوم نکړای شو چې مغيره ته يې ليك را استولی ؤ.

جاسوس وويل چې ما د شپې لخوا د سرای د مالك په سينه خنجر ور کيښود او په ربښتياويلو مې مجبور کړ، هغه وويل چې د ښار د «کوتوال» له خوازه په دې مامور شوی وم. د ځرې له خبرو نه بدر او دده ملګرو ته معلومه شوه چې دغه غدار د همغه کوتوال او يا والي د لاس آله دی، او د سرای مالك يې د ځنګل د زوی د راګير کولو لپاره د دانې په حيث استعمال کړی ؤ.

ورو ورو د مغيره د وژلو خبره په اندلس کې مشهوره شوه په لرې لرې ښارونو کې پټو ډلو چې دغه خبر واوريد مايوس او نا اميده شول، د غرناطې اولس هم داسې احساسوله چې ددوی يو مزبوت مټ مات شوی دی. خو په ځنګل کې پرتو مجاهدينو د مغيره د زلمي زوی په استعداد او صلاحيت پوره باور درلود، او هغه په څو ورځو کې په خپل استعداد او صلاحيت ددې اعتماد اهليت وښود.

يوه ورځ د سرحد عيسوي والي ناڅاپه پر دوی حمله وکړه، بدر په شا ولاړ او هغوی يې په غرنيو لارو کې داسې ګرنګو ته برابر کړل چې د دوی يو يو غشي ويشتونکي د دښمن پر سلو تنو برلاسي ؤ. عيسوي پوځيانو تر نيمايي زيات سپاهيان تلفات ورکړل او د ځنګل په لوري په شا وتښتيدل، په ځنګل کې د بدر غشي ويشتونکي تر غره زيات خطرناك ثابت شول، نصرانيانو احساس کړه چې دوی له اورنه لرې شول خو د اور غورځونکي غره

عيسويانو چې خپل سالار په ځمکه لويدلی وليد بيا يې شاته ونه کتل او وار خطا شول په هره خوايي د تيښتې هڅه وکړه او کله چې دوی خپل سرحد ته ورسيدل هلته له يوې بلې تباهۍ سره مخ شول، د بدر سپرو د دوی لاری نيولې وې. د دوی شاته د غشو باران او مخې ته د بريښيدونکو نيزو ديوال ؤ . يوازې کيڼ لوری ته يوه سرځوړې لاره وه چې ظاهراً خلاصه وه، ځوك چې د غشو له باران نه خلاص شول په همدې لاره يې اسونه ور برابر کړل، خو نژدې نيم ميل وړاندې د دوی مخې ته يو ژورگړنگ راغی، له څلورو خواونه چې مايوس شول له هغوی نه نژدې دوه سوه تنه له اسونو پلې شول او په گړنگونو پلې ورښکته شول، نو رو يې خپلې وسلې وغورځولې.

بدر بن مغيره خپل څو تنه سپاهيان په گړنگونو ورکيوتليو سپاهيانو د رانيولو لپاره وگومارل او يوی ډلې ته يې د اسيرانو څارنه وسپارله.

* * * * *

(٦)

دغه جگړه له لمر ختو سره پيل شوې وه او ماسپښين مهال د بدر دوه زره تنه سپاهيانو د دښمن د پوځې زخميانو او مړو دريشې اغوستې وې او د يوه لوی پروگرام لپاره يې تياری ونيو، د لمر لويدو په مهال په سرحد کې د فرديناند د پاچاهی يوه مهم ښار اوسيدونکو د خپل فاتح جنرال د ښه راغلاست لپاره تياری نيوه او چې د شفق سرخي د ماښام په تيارو غلبه کوله د دروازې له يوه برج نه يوه سپاهي په زوره چيغه کړه« هغوی راغلل! ژوندي دې وی سنت ياگو ».

دغه شعاونه په ښار کې په څلورو خواو کې اوچت شول د کليسا زنگونه وکړنگيدل په زرگونو نارينه او ښځې د ښار له دروازې نه بهر راتول شول، د ښار روحانی پيشوا «پاپ» د دوی په منځ کې په لاسوکی د گلونو اميل تيار دريدلی ؤ.

خواته شول لاره يې خلاصه کړه د سپينې جامې خاوند د تکبير ناره اوچته کړه، او فضا د «الله اکبر» نارو ډکه کړه، چاپ په خپلو غوږو اعتبار رانه غی د سپين پوش د بيرغ نښان ته يې وکتل پر هغه د صليب پرځای «هلال» ؤ. او بيا يې له لړزيدونکو لاسونو نه د ګلونو اميل ولويد.

اوريدونکو د تکبير ناری اوريدی او ليدونکو د سپينې جامې خاوند په لاسو کې د هلال بيرغ ليده خو تر څو دوی په خپلو غوږونو او سترګو باور کاوه او په څه اقدام يې لاس پوری کاوه د بدر بن مغيره سربښندويان د ښار له دروازی نه ننوتل او لږ ځند وروسته د «سينت کاونټ ياګو» څو تنه سپاهيان چې له ځنګله نه په تيښته بريالی شوی وو کله چې ښار ته نژدی راغلل له ښار نه تښتيدونکو ښاريانو ورته وويل چې ښار مسلمانانو ونيوه.

له نيمې شپې نه وراندی بدر بن مغيره د طلا او سپينو زرو نه علاوه زيات څاروی او غذايی مواد له غنيمت سره له ښارنه وتلی ؤ، د غنيمت مال يې پنځه سوه تنو سپروته وسپاره او دوی شاوخوا وروکو ښارونو او کليو ته مخه وکړه، او راتلونکی سهار چې دوی خپل هستوګنځی «ځنګل» ته ورسيدل نو زيات غنيمت او بی شميره څاروی يې په مخ کې وو.

د حملې نه يوه شپه وراندی دا خبره د «سينت ياګو» په خيال کې هم نه وه چې راتلونکې شپه به يې د هغه خلکو په قيد کې وی چې دده شپږ زره پوځ يوه ورځ وراندی په «سپيڅلی مريم» سوګندونه خوړلی وو چې تر څو د دوی وروستی کس ونه وژنی بيرته به راونه ګرځي.

هغه له دښمن نه د سخت مقاومت تمه درلوده، خو د مغيره له مرګ نه وروسته يې دا اميد نه ؤ چې ددغسی ناڅاپی يرغل سره به په داسی هوښياری مقابله وکړی.

هغه چې د جګړی په ډګر کې يو د سپينو جامو خاوند سپور ليده چې د برښنا په څير به د ځنګله له يوه اړخه تر بله ولاړ او خپلو سپاهيانو ته به ئی

یو دی ؟ هغه اوس چیرته دی! زه غواړم هغه ووینم، په سپیڅلی مریم سوګند هغه انسان نه دی،

کله کله به یی په غوسی کی وویل : اوس به زه چی بیرته څم په کومو سترګو خلکو ته وګورم ؟ ما ولی نه وژنی؟ هغه د بندی کیدو په وخت کی سوګند خوړلی ؤ چی وبه نه تښتی ځکه خو د بدر ملګرو هغه ته د عامو اسیرانو په څیر ځنځیرونه او زولنی نه وی ور اچولی، له هغه نه یی وسله هم نه وه اخستی، خو کله چی هغه خنجر راویوست او په خپل تټر کی یی د بنخولو هڅه وکړه نو یوه سپاهی یی لاس ونیو او په ناروسورو یی نور سپاهیان ورغلل او هغه یی بی وسلی کړ، د بدر مرستیال د هغه لپاره دوه تنه پهره داران وګومارل ویی ویل : تر څو زموږ امیر نه دی راستون شوی ددی د ژوند ساتنه پر موږ فرض ده.

راتلونکی ورځ ماسپښین مهال چوپ ځنګل د تکبیر نارو پر سرواخست او بدر له خپل لښکر سره راستون شو.

«کاونت سنت یاګو» تهوله شپه له شوګیرو وروسته سهار له خیمی نه بهر راووت او د یوی ونی په یخ سیوری کی په درانده خوب ویده شو، د تکبیر په نارو اوریدو را ویښ شو سترګی یی سره وموښلی او راجګ شو، بدر بن مغیره په زغره وپاسه سپینه چپنه اغوستی او مخ یی له سترګو پرته په تور نقاب کی پټ ؤ ورته ودرید. د هغه په سپینه چپنه ځای ځای دوینو خاپونه وو. سنت یاګو خپل مول وهلی حریف څو ځلی له سره تر پښو تر نظر تیر کړ او ویی ویل : کاشکی زما لاس ستا تر مول رسیدلی او دامی لیدلی وای چی په ژوند کی زما د ترټولو سختي ماتی عامل څوك دی؟

بدر ځواب ورکړ: یو سپاهی له ماتی او بری نه باید بی پروا وی، دایی وویل او بیا یی خپلو ملګرو ته وکتل ویی ویل : زما له تاسو نه دا تمه وه چی له ده سره دده د شان سره سم سلوك وکړی، تاسو دده درناوی ولی نه

کولی شو چی په سرحد کی به مو پرېږدي او له شانه به مو په غشو نه ولی؟

بدر لږ په تونده لهجه ورته وویل : دا یوازی ستاسو عادت دی.

د بدر مرستیال راوراندی شو په ورو غږ یی وویل : د فدیی له اخستلو پرته زه‌م! دوی د خوشی کیدو په سبب پوه نه شوم.

بدر : ستا په گومان فدیه څه شی کیدای شی؟

مرستیال یی : لږ تر لږه پنځوس زره!

بدر : موږ له دی نه تر سل چنده زیات ترلاسه کړی، ورځه دوی تر سرحد وباروه، کله چی د دوی تشی خزانی څو کاله وروسته بیرته ډکی شی نو دوی ته به بیا دلته دراتلو بلنه ورکړو، اوس ما او زما ملگرو ته د استراحت ضرورت دی، بدر دا وویل او بیا د کلا په لوری روان شو.

*****

(۷)

له دی فتحې نه وروسته د بدر «سرحدی شاهین» نوم چی سنت یاگو وریاندی کیښود ډیر مشهور شو او ورو ورو د خلکو په ژبه عام شو، له دی نامه سره د میرانی او زړور تیا ډیری افسانی وتړل شوی، و هم پرسته نصرانیانو ویل چی سرحدی عقاب کوم غیر عادی انسان دی. چی په یوه وخت کی هم د باغیانو په ځنگل او هم لری د جگړی په میدان لیدل شوی دی، د فردیناند له پاچاهی نه د هغه د شهرت داستانونه غرناطی ته ورسیدل، علماؤ هغه د اسلام غازی وباله، شاعرانو د لوړ تسبه شهزادگیو سره د هغه د مینی فرضی انسانی جوړولی ادیبانو په خپلو لیکنو کی د هغه د سیرت او څیری په مختلفو اړخونو رڼا اچوله، د لیری غرونو شپنو او بزگرانو به چی د ستومانه ورځی تیرولو نه وروسته شپه په کور او کلی شوه هغوی به هم دا کیسی وکړی چی نن یی سرحدی شاهین چیرته او څه وړ

وروسته فردیناند د فتحی له هیلی نه زیات ددی لپاره پرسرحدی ځنګل ځو ځلی د برید لپاره پوځ واستاوه چی د «سرحدی شاهین» رعب راکم کړی، خو ددی ټولو حملو نتیجه د سنت یاګو د لښکر په شان و.

فردیناند په دی وپوهید چی سرحدی عقاب په خپله ځاله کی ډیر خطرناك وی خو له هغه سره دومره ځواك نشته چی له ځنګل نه راووزی او دده د پاچاهی په کومه برخه قبضه وکړی ځکه یی پام د هغه غرناطی وروستی اسلامی ریاست لاندی کولو ته واړاوه، چی نه یوازی دا چی اولس یی ده ته په باج ورکولو راضی نه وو بلکی د له لاسه تللی عظمت د بیا ترلاسه کولو لپاره ناکرار وو.

بدر بن مغیره له دی حالاتو نه ګټه واخستله او د خپل ځواك په منظم کولو لګیا شو، په مختلفو ښارونو کی پټو ډلو ته چی کله دا معلومه شوه چی سرحدی شاهین د مغیره ځوان زوی «بدر» دی د دوی په زړونو کی بیا د جهاد جذبی په غورځنګ شوی او خپل کورونه یی پریښودل له هغه سره ملګری شول.

د قرطبی له مهاجرینو نه بشیر بن حسن چی په وړوکوالی کی یی د طبابت په زده کړه د خپلی کورنی نوم او شهرت ساتلی ؤ د بدر ډیر ښه مرستیال شو.

د قرطبی او اشبیلیی د حاکمانو تداوی هغه کړی وه، د قسطلی شهزاده یو ځل له اس نه لویدلی او سخت ټپی شوی ؤ او بشیر فردیناند د هغه د علاج لپاره ورغوښتی ؤ. چی دولی عهد «شهزاده» د رغیدونه وروسته فردیناند او ازابیلا له هغه نه غوښتی وو چی د شاهی طبیب په حیث ورسره پاتی شی، خو هغه دغه منصب قبول نه کړ او بیرته قرطبی ته ولاړ، دوه کاله وروسته چی کله هغه ته د بدر لیك ورسید نو هغه په خپله شانداره ماڼی کی د اوسیدو پرځای په ځنګل کی له یوه مجاهد سره ژوند غوره کړ.

هغه ددې سيمو محلي حاکم ته پرېښودي، پوازې د سرحد د مورچلو او نوی پوځي نظام جوړولو چارې يې پخپل لاس کې واخستې.

د پوځ له څو اعتمادي افسرانو نه پرته نور څوك په دې نه پوهېدل چې د دوی لوی قوماندان همغه ځوان دی چې د اندلس خلك يې د سرحدي شاهين په نامه پېژني. يوه ورځ د سرحدي سيمو محلي واکمن خپلو سپاهيانو ته اعلان وکړ چې دده په غوښتنه به سرحدي شاهين څو ورځې دوی ته جنګي زده کړې او نظامي تربيه ورکوي، زه به تاسو دوه دوه سوه تنه ډله ډله په نوبت هغه ته ورلېږم، زما اميد دی چې تاسو ته به د هغه روزنه او زده کړه په زړه پورې او ګټوره وي.

له سپاهيانو سره په ځنګل کې ترزده کړې د «شاهين» د ليدو تلوسه زياته وه، په ځنګل کې د بدر بن مغيره مرستيال منصور بن احمد د سرحدي شاهين په جامه کې هغوی استقبالول او څو ورځې د ځنګل او غره د جګړو د نويو مهارتونو له ورزده کولو وروسته يې بېرته استول.

د غرناطې د سرحدي مورچلونو د مزبوتولو په اړه فرديناند اندېښنه څرګنده کړه خو ابوالحسن هغه ته احوال واستاوه چې دا ټول ترتيبات د «سرحدي شاهين» د يرغل د مخنيوي په خاطر نيول شوي دي، د ابوالحسن ددې ځواب نه پرته فرديناند پردې ډاډه ؤ چې له دې سرحدونو نه دده د پاچاهي قلمروته په تګ راتګ په معمولي بنديز کې څه زياتوالی نه ؤراغلی، د قرطبې، قسطلې او نورو ښارونو سوداګرو به په سرحد کې د فرديناند اجازه نامه ور وښودله او د پخوا په څېر به غرناطې ته تلای شوای.

# وطن خرڅوونکی

د شپې مهال د قسطلې د شاهي ماڼۍ په یوه کوټه کې ملکه ازابیلا او پاچا فردیناند په زرینو کیوسیو یو بل ته مخامخ ناست وو، د دواړو په څیرو کې د ژورو سوچونو کرښې وې.

ملکې د موسکا هڅه وکړه ورته وویل : ته ولې دومره پریشانه یې، زما په گومان خو د غرناطې باج دومره زیاتې پیسې نه دي چې ته دې دومره ورته اندیښمن شې.

پاچا ځواب ورکړ: ملکې ! زه د باج په خاطر پریشانه نه یم ، څومره جزیه چې ابوالحسن موږ ته راکوله تر هغو څو چنده زیاتې پیسې زموږ په سرحدي تانو او قرارگاو لگیدلې، خو زه داسې احساسوم چې د ابوالحسن له جزیې راکولو نه د انکار لامل دا دی چې هغه پر خپل ځواک ډاډه شوی، دا زموږ بدمرغي ده چې نن د غرناطې د تخت کوم بل دعوه دار نشته، تر اوسه پورې زموږ د بریالیتوبونو ضامن زموږ تر تورو زیات د مسلمانانو خپلمنځي اختلاف ؤ. ملکې وویل : که د غرناطې مسلمانان سره یو شي هم زه دا امید نه لرم چې هغوی به زموږ پرخلاف بغاوت وکړای شي، هغوی به د قرطبې، اشبیلیې او طلیطلې د باغیانو انجام نه وي هیر کړی.

پاچا وویل : ملکې ته د هغه وخت خبرې کوې چې د هسپانوي، عربي او بربري نژادونو مسلمانان یو له بل سره لاس او گریوان وو، زموږ پخوانیو تر

فردیناند: کاشکی د قرطبې او طلیطلې په څیر سپیڅلی مریم د غرناطې مسلمانان هم په خپلو کې سره اړولی وای که نه نو زه پوهیږم چې د دوی یو والی تر لوی نه لوی دښمن په ګونډو کولی شي، دوی که سره تیت او پرك وي د شمال یوه ملایمه څپه یې د ریګ د ذرو په څیر سره پاشلی شي، خو که سره متحد شي د توند او سخت توپان په مخکې به د کمرونو په څیر ودریږي، ماته معلومه شوې ده چې د غرناطې څو تنه عالمان د اسلام په نامه د دوی د پارولو هڅه کوي، که دا ربنتیا وي نو زه د ابوالحسن خبرې هسې بې معنی ګوابښونه نه ګڼم چې اوس زموږ په ضراب خانو کې د جزیې د سکو پرځای پولادي توري جوړیږي، ملکې ربښتیا خبره دا ده چې زه د خپل پوځ پرځای په دې نازیدم چې د غرناطې مسلمانان پخپلو کې سره په جنجال کې دي.

او ما ویل زه به د دوی له خپلمنځي جګړو نه ګټه اخلم.

ازابیلا : خو که په غرناطه کې خپلمنځې جګړه نه وي هم موږ باید د خپل پوځ له کار اچولو نه ډډه ونه کړو، زه دښمن ته د موکې ورکولو پلوي نه یم.

فردیناند: زه هم په دې سوچ کوم. خو د کاونت سنت یاګو له حماقت نه وروسته چې زموږ د پوځ په شهرت کوم داغ لګیدلی تر اوسه مو هغه نه دی مینځلی.

ملکې وویل : که سرحدي شاهین د یوه خپلواك حکمران په حیث ومنو له هغه سره به د غرناطې پرخلاف څه معاهده ونکړای شو؟

پاچا : نه! بلکې زه په دې ویریږم چې ابوالحسن زموږ پرخلاف د بغاوت اعلان کړي هغه به بیله ځنډه خپل ملاتړ ورسره اعلان کړي وي.

یو پوځي منصبدار کوټې ته ورننوت په ملاخم شوله سلام نه وروسته یې

هم زموږ وفا دار به پاتې شی؟
پاچا ځواب ورکړ : د مغيره له نيولو نه وروسته هغه د تل لپاره زموږ اعتماد ترلاسه کړی.
ازابيلا : خو د غرناطې شاهی ماڼۍ ته یې رسيدل ښايي دومره اسانه نه وی.

* * * * *

(۲)

ابو داود کوټې ته ورننوت، د هغه عمر پنځه څلويښت، پنځوس کاله معلوميده، د څيرې او ښې نه هغه د عربی او هسپانوی ګډ نسل څخه ښکاريدو. ږيره یې تر نيمايی زياته سپينه شوی وه، خو څيره یې د ځوانانو په څير تازه وه، توره چپنه ئې اغوستې او سپينه پګړۍ یې پر سر وه.
ابو داود وړاندی شو لومړی یې د پاچا او بيا د ملکې لاسونه ښکل کړل، دوه دری ګامه شاته ولاړ او په ادب لاس په نامه ودريد.
پاچا يوی خالی کرسۍ ته اشاره وکړه ورته ويل : کښينه ! ابو داود زړه نازړه غوندی وويل : غلام له امر نه سر غړاوی نشی کولی خو ماته د پاچا او ملکې په حضور کی دريدل هم لوی وياړ او عزت دی.
فرديناند په موسکا وويل : پاچا او ملکه تا ته د کښيناستلو حکم کوی.
ابو داود : غلام ته د سرغړاوی څه مجال دی ! او بيا په کرسۍ کښيناست.
فرديناند وويل : ابو داوده ! موږ پوهيږو چی د قدرت اشاری زموږ د پاکو راهبانو نه وړاندی تاته څرګنديږی، موږ يو ځل بيا ستا ذهانت ازمويو. روايه موږ ته چی نن کومه ستونزه په مخکی ده هغه څه ده؟
ابو داود ځواب ورکړ : که مريی د خپل بادار په مخکی د خپل معمولی

ته له خپل عقل نه پرته په بل څه عقیده نه لرې. ووایه تا له څه نه دا اټکل وکړ چې موږ تا غرناطې ته استوو؟

ابو داود: ستاسو مربی ته دا څرګنده شوې ده چې ابوالحسن د جزیې له ورکولو نه انکار کړی دی، بیا ماته دا هم معلومه شوه چې تولواك د امیرانو غونډه رابللې وه، د امیرانو له دې غونډې نه لږ څند وروسته ستاسو استازی ماته راغی ماته پر دې پوهیدل ګران نه وو چې معظم تولواك په داسې حالاتو کې له مانه د څه ټمه کولی شي، زه پوهیږم چې که د ابوالحسن پرخلاف ما کوم مورچل ته استوی نو هغه له غرناطې پرته بل نشي کیدای.

پاچا: نو تا به دا سوچ هم کړی وي چې په دې مورچل کې به ته څه کوې؟

ابو داود : هو زه داسې احساسوم چې په غرناطه کې د ګډوډۍ او اختلاف جوړولو لپاره د تخت او تاج دوهم دعوه دار پیدا کول ضرور دي او د حضور غلام به غرناطې ته له تګ نه وروسته دا پریکړه کولی شي چې د تخت او تاج دوهم امیدوار څوك کیدای شي؟

پاچا : د الزغل په باب ستا څه رایه ده؟

ابو داود : د الزغل په باب زما رایه دا ده چې هغه به په هر صورت د خپل ورور ملاتړ کوي خو ...

پاچا : خو څه ...؟

ابو داود : زه په پوره باور نشم ویلی خو ځینی آوازې دي چې د ابوالحسن له یو زوی نه کار اخستل کیدای شي. ما اوریدلي چې ابو عبدالله په دې اندیښنه کې دی چې پلار یې ناسکه ورور ولي عهد ټاکی. او دا مې هم اوریدلي دي چې پر ابوالحسن خپله نصرانی مېرمن ډیره ګرانه ده.

فردیناند د خوښۍ نه لږ را اوچت شو ویې ویل : نو ته څه ته انتظار یې؟

بدګوماني زما تولي نقشي له خاورو سره برابرولي شي ځکه زه غواړم ځان د مهاجر په بڼه غرناطي ته ورسوم، او هلته تر ما زيات زما ميرمن او لوڼي ستاسو د ظلم او ستم زياتي کيسي وکړي، ترڅو څوك په موږ شکمن نه شي، ميرمن خو په دي خاطر هم له ځانه سره ضرور بيايم چي د ابوالحسن دربار ته به مي ورتګ اسانه کړي.

فرديناند : ابوداوده ! باور وکړه چي ستا خدمتونه به هيڅ نکړاى شي زه ژمنه کوم چي په غرناطه کي به ته زموږ لومړني والي وي. او ترکومه چي د اندلس حکومت زموږ په کورني کي وي د غرناطي ولايت به ستا د کورني حق وي. که غواړي زه داليکلي تعهد درکوم.

ابو داود : ستاسو خادم ته ستاسو لوز له ليکلو نه کم نه دي.

فرديناند : ډير ښه سهار وختي له ماسره وګوره، د غرناطي د سفر لپاره به ستا ټول لګښت له شاهي خزاني وي.

*****

(۳)

توند باران اوريده، د څلورو اسونو يوه ګاډي چي په خاورو، ختمو ليت پيت وه دفرديناند د پاچاهي د يوى سرحدي پوستي په دروازه کي ودريده، د کلا ساتونکي په منډه راغلل او ترګاډي چاپير ودريدل.

يو ځوان چي د نورو مشر معلوميدو ور وړاندي شو د ګاډي دروازه يي بيرته کړه دننه يي ور وکتل او په ادب يي وويل : ماته ستاسو په باب د والي هدايات را رسيدلي دي، ستاسو لپاره تازه نفسه اسونه تيار دي، خو په دي توند باران کي ښايي سفر درته ګران وي ، که تاسو ته مناسبه ښکاري نو د باران تر دريدو او په خوړونو کي د سيلاوونو له دريدو وروسته

له ابو داود سره یې میرمن او دوې ځوانې لونې ښکته شوې، کشرې نجلۍ چې انجیلا نومیده له خپلې خور نه دوه درې کاله کشره وه، د هغه ګردې مخ، آبي سترګې او طلایي ویښتان کټ مټ خپلې مور ته ورته وو : د هغې په خط او خال کې د مور د ځوانې دورځونښې ښرګندې وې.

دوهمه نجلۍ ربیعه ، د انجیلا ناسکه خور وه ، د ربیعې تورې اوځلیدونکې سترګې انجیلا او مور ته یې ورته نه وې ، هغه په قد هم تر مور او لور لږ لوړه وه ، په سپینه څیره کې یې سرخې داسې ښکاریدله لکه خالق چې شیدې او شات په یوه مناسب تناسب سره ګډ کړې وې او د هغې رنګ سپین خو ګلابي ته مایل ؤ او په څیرې کې یې د شوخۍ او سنجیدګۍ ګډو کرښو هغه د ښځینه حسن او وقار یو غوره انځور ګرځولې ؤ.

د ربیعې او انجیلا په څیرو کې یو معمولي ورته والی ؤ ، داسې ورته والی چې محسوسیدای شوای خو بیان کیدای نه شوای. دواړه نجونې ښکلې وې، د انجیلا ښکلا د صحرایي غاټول خند اوه خو د ربیعې حیا او سنجیدګۍ د یوې غوټۍ موسکا.

د پوځي افسر په لارښوونه دوې د کلا یوې کوټې ته ننوتل او د ډوډۍ په میز شاوخوا په چوکیو کښیناستل.

نوکرانو ډول ډول خواړه په زرینو پتنوسونو کې راوړل او په میز ئې کتار کړل، د ابو داود په اشاره د ځوانې منصبدار هم له دوې سره په خوراك ورشریك شو. ابو داود د ډوډۍ په وخت کې له منصبدار نه وپوښتل: له دې ځایه به د غرناطې لومړۍ پهره څومره لرې وې ؟

افسر ځواب ورکړ : د اتو میلو په شاوخوا کې ! خو درې میله وړاندې به تاسو د دوې د واکمنې ساحې ته ورننوزې، زه فکر کوم چې که زه د دوې

په دی لاره تاسو په گاډی کی زموږ له نظره غلی نشی تیریدای.

ابو داود : زما په گومان د قسطلی او غرناطی سوداگر په دی لاره آزاد تلی راتلی شی، بیا هم چی ماځه پلان طرحه کړی تر ډیره کامیاب دی. ته دی شل تنو سپاهیانو ته امر وکړه چی تیار شی دوی به پر موږ پسی راځی کله چی موږ تر سرحد واوړو دوی به داسی ښیی چی په موږ پسی راوتلی دی. کله چی د غرناطی د تانی پوځیان دا وگوری چی عیسوی سپاهیان په موږ پسی دی نو دوی به خامخا مداخله کوی، موږ ته به دوی پناه راکړی، ستا پوځیان به له هغوی سره تر معمولی تکرو وروسته بیرته راوگرځی.

افسر : پلان خو ډیر غوره دی خو زه ویریږم چی لاره خرابه ده ستاسو گاډی پکی چپه نه شی.

ابو داود ځواب ورکړ : په داسی معاملو کی معمولی پیښو ته څوك پام نه کوی، که کوچوان ټپی شی یا آسونه یو دوه غشی ولگیږی دا معمولی خبره ده.

افسر : ډیره ښه ده، زه به پخپله له سپاهیانو سره یم، د کلا د ساتونکی مشر افسر خپل یو سپاهی راوغوښت ورته ویی ویل : ته د شلو تنو سپرو د تیاری امر وکړه زه د یوه ضروری کار لپاره ځم. هغه بیا ابو داود ته مخ واړاوه ویی ویل :

تا د سرحدی شاهین په باب څه اوریدلی دی؟

په دی خبرو د ابو داود میرمن او لونی ټك شول او غوږونه ونیو ابو داود په داډ ځواب ورکړ : هو ما د هغه په باب ډیر څه اوریدلی دی. خو زما په گومان د هغه سیمه له دی ځایه ډیره لری ده.

افسر : د هغه سیمه لری ده خو ملگرو یی دری ځله زموږ اسونه بوتلل.

انجیلا زر پوښتنه وکړه : څه وخت ؟

داسی ښکاریدو چی عمر یی ډیر نه دی.
میریا پوښتنه وکړه : تاسو هغه له کلاته څه ور ویوست؟
افسر : هغه پخپله تللی ؤ، د هغه یوازی غله او اسونه په کار وو.
انجیلا وویل : ما اوریدلی چی هغه ډیر ظالم دی،
افسر ځواب ورکړ : د هغه ترټولو ستره ښیگنه دا ده چی ظالم نه دی، هغه په بی کسو او بی وسلو خلکو لاس نه پورته کوی، په لویدلی دښمن گوزار نه کوی، په دی کی شک نشته چی هغه زموږ د پاچاهی ډیر بد دښمن دی، خو هغه یو شریف دښمن دی.
ابو داود وویل : زه ستا رښتیا ویل ستایم. ستا په څیر کاونت سنت یاگو هم د هغه د شرافت ستاینه کوی.
انجیلا وویل : پلار جانه ! که هغه په لاره کی موږ ته په مخه راشی زما باور دی چی خپل غوره اسونه موږ ته راکړی چی موږ ورسوی.
ربیعی وویل : هغه خلك شاهین ولی بولی ؟
افسر وویل : دا نوم کاونت سنت یاگو پری ایښی دی، او سبب یی دا دی چی په توندی، گړندیتوب او هوښیاری کی له شاهین نه کم نه دی.
ابو داود پوښتنه وکړه : دا رښتیا ده چی هغه د مغیره زوی دی؟
افسر : په دی اړه ډول ډول رایی وی، ځینی وایی چی هغه د مغیره زوی دی، د ځینو دا گومان دی چی هغه د مراکش دی.
ابو داود وویل : موږ ته به ډیر زر څرگنده شی چی هغه څوك دی؟
یوځی افسر پوښتنه وکړه: ایا معظم پاچا پر هغه د یرغل اراده لري ؟
ابو داود ځواب ورکړ : د هغه دومره ځواك نشته چی پاچا پخپله پر هغه د حملی پروگرام ولری. د هغه لپاره یوازی یو هوښیار سړی کافی دی، چی د هغه د جگړی په طریقه پوه شی.

چې ګاډی د یو میل په فاصله ترې لرې شوه نو اسونه یې چارګام ور پسې خوشې کړل.

په مخ څو ړې دره کې سرک ځای ځای په اوبو کې پټ ؤ ځکه خو د ابو داود له اصرار سره سره کوچوان له احتیاط نه کار اخیست. کله به چې اسونه ګاډی ته ونژدې شول رفتار به یې ورو کړ او ګاډي ته به ئې د وړاندې تلو فرصت ورکړ.

سیلاوونو ځای ځای سرک غوښ کړی و، د لاری په هسکو ټیټو او کاږو کې د ګاډي په جټکو انجیلا او د هغې مور سخت احتجاج کاوه د ابو داود سر هم څو ځله له خپلې میرمن او لوڼو سره وجنګید خو هغه د انجیلا په فریادونو او د میرمن په واویلا هیڅ پروا ونه کړه، یو ځل د ګاډي یوه عرابه په یوه ژور ځای کې له لویدو وروسته له ډبری سره ټکر شوه چې له جټکې سره یې د میریا سر له چت سره وجنګیده، هغې چیغې کړې؛ ګاډی ودروی که نه په همدې رفتار کې ترې ځان غورځوم.

ته وحشي یې، نن به مې د بچی اروا واخلې او څې به، زه پوهیږم ستا نیت ښه نه دی، ته غرناطې ته له رسیدونه وړاندې له مونږ نه ځان بې غمه کول غواړې، د خدای په خاطر ګاډی ودروه، د یوې بلې سختې جټکې سره د ربیعې او انجیلا سرونه سره وجنګیدل، انجیلا بیا واویلا پیل کړه بیا ابو داود وویل: که زه پوهیدای چې ته به هم د مونږ په څیر دومره بې حوصلې وې نه له ځانه سره مې نه راوستې، ربیعې ته وګوره تر اوسه یې سونګ تر خولې نه دی وتلی.

ابو داود چې دا وویل میریا او انجیلا پر ربیعه ور پرچ وهل، میریا وویل: ربیعه خو خپلو هم مذهبو او خپلو خلکو ته په ورتګ خوښه ده.

انجیلا وویل: ربیعه به دي هم پوهيږي چې که

چې ما تاته په دې باب څه وویل له خوښې نه دې توپونه وهل، اوس له دې لږ تکلیف نه دومره وویریدې، انسان په دنیا کې دعزت او اقتدار لپاره له لویو لویو خطرناکو پړاوونو نه تیریږي. میریا په چیغه ورته وویل : ته هم عجیب احمق یې ! په دې توند شمال او باران کې به څوك ستا لارې څارې! هغوی به په مزه مزه په خپلو کوټو کې ناست وي.

ابو داود وویل : بیا هم دا ضروري ده چې د دوی تر پهرې پورې موږ همدغسې ولاړ شو. له دې نه پرته موږ هغوی په دې نشو باوري کولی چې راتښتیدلی یو او د پاچا سپاهیان راپسې دي.

ګاډی اوس د یوې غونډۍ نه د هوارې په لوري راتله څکه خو د میریا او انجیلا ژبې سره له دې چې اوس هم چلیدې خو لږ چوپې شوې او شور او زور یې کم شو.

کوچوان چیغه کړه : مایو سهوورولید.

ابو داود : پس خبره جوړه شوه. اوس به هغه خپل نور ملګري را خبر کړي، دا یې وویل او بیا یې د ګاډي له کړکۍ نه سر بهر ته و یوست او په لاس یې وریسې سپاهیانو ته اشاره وکړه او له دې سره یې کوچوان ته هم د ګاډي د ګړندي زغلولو امر وکړ.

لږ څند وروسته چې کله ګاډی له غونډۍ نه مخ پر ځوړ شوه کوچوان چیغه کړه: په دره کې مخ په ځوړ اوبه زیاتې دي د سړك نخښېنه نه ښکاري که اسونه وزغلوم خطر لري.

ابو داود وویل : پام کوه خو ګاډی مه دروه، زه به تاته ډیره چنده بخښش درکوم.

میریا او انجیلا بیا په چغو اسمان پرسر واخست.

ابو داود په تسلي ورته وویل :کوچوان بې عقله نه دی چې ښکته ولاړ

تلو وروسته ګاډي له سرك نه چپه شوه او په يوه جټکه کوچوان د ګاډي له مخې نه د آس په شا ورولويد، او بيا لاندي پرېوت اسونه په زغا ستهٔ شول خو بيله څه پيښې ګاډي او اسونه بيرته سرك ته ووتل.

له يوه پيچومې نه په تيريدو ګاډي يوه پراخ ميدان ته ووته، اېو داود دننه په دي نه ؤ خبر چې ګاډي له کوچوان نه محرومه شوی ده، خو کله چې اسونو سرك پريښود او په هوار ميدان کې يې وځغستل، په هسکو تيټو کې د ګاډي جټکې له زغم نه ووتلې هغه کوچوان ته غږ وکړ. خو چې ځواب ئې وانه ورید، دروازه يې بيرته کړه بهر ته يې وکتل، کوچوان نه ؤ ، مخامخ لږ وړاندې ګټې وني وې د ګاډي په مخ کې داسې ډبرې هم وې چې د دوی ټولو د مرګ سبب کيدای شوی.

شاته اسونه دومره لرې وو چې هغوی ته هم ددې بې جلبه اسونو راګرځول ګران او نا ممکن وو. ناڅاپه له ځنګل نه د يرش څلويښت تنه سپاره راووتل او ډيرژر يې غونډي ګرځندي اسونه يې ګاډي ته راورسيدل، تر ټولو مخکې په يوه مشکي آس يو نقاب اغوستونکې سپور ؤ چې سپينه چپنه يې شمال رپوله، د مول وهلي (نقاب پوښ) په اشاره سپرو نيزې په لاسو کې ځرخولې او د تکبير چيغې يې وهلې، پرګاډي پسې سپاهيانو ته ورکاپه شول، هغوی د ګاډي په لوري له څو غشو راويشتو نه وروسته د اسونو جلبونه کش کړل او بيرته وګرځيدل.

مول وهلي چې ګاډي بې کوچوانه وليدله اس يې د ګاډي اسونو ته ورنژدې کړ او په هغوی يې ورټوپ کړل، دې لانه ؤ سمبال شوی چې د ګاډي يوه عرابه له يوه کمره سره ټکر شوه او ماته شوه، ګاډي په يوه لوري چپه شوه خو مول وهلي سپاره بالاخره اسونه ودرول.

لږ څند وروسته چې د مول وهلي ملګرو د ګاډي تعقيب کونکي وزغلول

کښیناست په خپله په وینو ککړه تنده یی لاس راتیر کړ او بیایی مول وهلی او ملګرو ته په کمزوری غږ وویل : ډیره مننه ! بیایی خپلو لونو او میرمن ته وکتل ویی ویل : میریا ! ربیعی! انجیلا!!! ... هغه یو پرنل پسی دری واړه وخوځولی.

میریا زګېروی وکړ او بیایی سترګی وغړولی، خو له وار خطایی نه یی بیرته پټی کړی، پوه شیبه وروسته یی بیا سترګی وغړولی خپله لوریی په زوره زوره وخوځوله ویی ویل : انجیلا! زما انجیلا ! د انجیلا له لاندینی شونډی او تندی نه وینی روانی وی.

له څو ځلی زګیروی او اسویلیو وروسته یی سترګی وغړولی او خپلی مور ته یی وکتل.

# د دوی کوربه

ربیعې چې سترګې وغړولې د شمې په رڼا کې یې ولیدل چې په یوه پراخه کوټه کې پرته ده، دې ته نژدې په یوه کرسۍ ابو داود او په بله یونا پیژندوی ځوان ناست دی، لورېې چې په هوښ راغله ابو داود ورټیټ شو لاس یې پر تندې ورکیښود او ویې ویل :

ربیعې لورې ! څنګه یې؟

ربیعې په ویریدونکې لهجه وپوښتل : زه چیرته یم!

ابو داود ځواب ورکړ: لور جانې ! موږ ډیر امن ځای ته راغلي یو. او د یوه داسې سړي میلمانه یو چې دلته موږ ته هیڅ خطر نشته ، دا ستا ډاکټر دی.

د کوټې په بله برخه کې میریا په بستره غځیدلې وه، په بله بستره یې ترڅنګ انجیلا ددوه وهلې وه ، ربیعې هغوی ته اشاره وکړه له پلارنه یې وپوښتل : هغوی څنګه دي؟

ابو داود ځواب ورکړ : روغې دي.

یو بل ځوان کوټې ته ورننوت او د ربیعې سترګې څو شیبې د هغه په څیره میخ پاتې شوې. هغه دابو داود په اوږه لاس کیښود ویې ویل ته کښینه، زه ددې لپاره راغلم چې ستا د لور احوال واخلم، اوس څنګه ده؟

انجیلا له خپل ځایه راپورته شوه او چوپه د ربیعی ترڅنګ کښیناسته د ربیعی پر سربی د مینی لاس راتیر کړو وبی ویل : ربیعی ستا طبیعت څنګه دی؟

ربیعی ځواب ورکړ : زه اوس ښه یم، په پښه او سر می درد دی. مور جانه څنګه ده؟

انجیلا : هغه روغه ده.

لومړی ځوان چی د دوی زخمونو ته یی د طبیب دنده اجرا کوله وویل : زما په خیال د دی لپاره اوس خبری ښی نه دی د خوب دوا ور ښبم دی ته پوره استراحت ضروری دی.

دوهم ځوان په عربی پوښتنه وکړه : زیاته خوږه تپی ته وی؟

طبیب ځواب ورکړ : زه تر سهاره سهی رایه درکولی شم. په هر صورت د اندیښنی ور نه ده.

ابو داود پوښتنه وکړه : ستا په خیال به دا تر څه موده پوری بیرته روغه شی؟

داکتر ځواب ورکړې : هغه به ډیر زر آرامه شی زما په ګومان تاسوته هم استراحت ضرور دی، باید آرام وکړی.

راتلونکی ورځ چی ربیعه له اوبده او درانه خوب نه راویښه شوه. انجیلا د کوټی له کړکۍ سره ولاړه وه او بهر ته یی کتل. میریا په بستره تکیه وهلی وه او ناسته وه، ربیعی ورو ور غږ کړ : انجیلا ! انجیلا!

انجیلا رابیداره غوندې شوه او بیا یی ورته را وکتل راغله ترڅنګ یی کیناسته.

ربیعی وویل : تا د شپی دوه تنه ناپیژندوی دلته ولیدل؟

انجیلا ځواب ورکړ : ما همدا اوس له کړکۍ نه هم هغوی لیدل.

شوم شپه وه، په کوته کې شمه بله وه زما په گومان موږ د غرناطې په کومه پوځي قرارگاه کې یو.

انجیلا : نه موږ له هغه سرك نه ډير لرې راغلي يو، ته يې له موږ سره يوځای د بې هوښۍ په حال کې راوړی، ربیعی تا به تل ویل چې زما په زړه کې له تا سره د خواخوږۍ جذبه نشته، خو په «سپیڅلې مریم» سوگند چې تول لاره مې ستا په خاطر ژړل.

موږ به دلته نیمه شپه رارسیدلي وو. کوم ډاکتر چې ستا علاج کوی پلار جان وایی چې هغه د اندلس ترټولو ستر جراح دی.

ربیعه : موږ اوس چیرته یو؟

انجیلا : ربیعی که ته واوری اعتبار به ونه کړې چې موږ اوس د سرحدی شاهین په دره کې یو.

ربیعه : د شاهین په دره کې ؟ نه ته ټوکې کوې، ربیعې د کینامستلو هڅه وکړه خو خپل خوږ سر یې په دواړو لاسو ونیو او بیرته څملاسته، ویې ویل : انجیلا! انجیلا! رښتیا ووایه مامه څوروه.

انجیلا : زه رښتیا وایم.

ربیعه : خو زه په دې خبره نه پوهیږم، ناممکنه راته ښکاری.

انجیلا : ربیعی ته به دا هم ونه منې چې سرحدی شاهین تالیدلی دی.

او ته یوازی دا چې لیدلی دی دی بلکې ... خو زه ویریږم چې جگړه به راسره کوی. خو په «سپیڅلې مریم» سوگند زه دروغ نه وایم ، ته له هغه سره به ډیر ساعت نژدې وې.

ربیعې په وارخطایی وویل : ستا مطلب څه دی؟

انجیلا: زما مطلب دا دی چې ستا د ژوند څو قیمتی شیبې له هغه سره تیری شوی دی.

پر ځای زه بې هوښه وای نو له ما سره به داسې کیدل. ما گومان کاوه چې شاهین به یو ډیر وحشي انسان وی، خو هغه لکه چې کومه پرښته ده، پلار جان ستا د په هوښ راوستلو نه نا امیده شو، خو هغه یو ځل ستا نبض ونیو او بیایی سمدستی وویل چې زه دا د اندلس تر ټولو ښه طبیب ته ورولم. زما امید دی چې ژوندی پاتې شي، تاسو زماله ملگرو سره راځئ، ما خپل دوست وبولي. او پلار جان وویل :

زه نه پوهیږم چې ته څوك یې خو كه زما د لور ژوند بچ کړې زما د طلا او جواهرو ډك صندوق ستا شو.

هغه ځواب ورکړ : ته ما د احسان خرخوونکو په ډله کې مه‌شمیره، زما ملگری به ستا د طلا او جواهرو ساتنه هم کوی. دایی وویل او بیایی آس وزغلاوه، موږ چي کله نیمه شپه دلته راورسیدو نو پوه شوو چې ته له موږ نه ډیره وړاندې رارسیدلې وی.

ربیعه : ښه تاته دا څه وړ معلومه‌شوه چې هغه سرحدی عقاب دی.

انجیلا : اوس ستا له راویښیدو نه لږ مخکې پلار جان وویل :

ربیعه : نو هغه مول وهلی چې ځان یی په خطر کې واچاوه او زموږ گاډی یی ودروله سرحدی شاهین و ؟

انجیلا : هو کې ! او د شپې په دریمه برخه کې هغه ستا پوښتنې ته راغلی وه. هغه مخکې هم درې ځلې ستا د پوښتنې لپاره راغی، نن سهار هم راغلی ؤ د پوځې جامو نه یې داسې ښکارېده چې په څه مهم پسې روانیږی. پلار جان ته مې هم وویل چې ښایی تر ماښام پورې رانشي او ستا ډاکتر ټوله شپه په دې کرسۍ ویښ ناست و، کله چې زه راویښه شوم هغه ستا نبض کوت.

ربیعې وپوښتل : پلار جان چیرته دی؟

د درد له امله هغه له امسا پرته نشوای تلای. هغه شاه زلمی چی ددوی ژوند یی ساتلی ؤ او دغه طبیب چی د دوی علاج یی کاوه بدر بن مغیره او بشیر بن حسن وو. ابو داود په دی خبره حیران ؤ چی سرحدی شاهین ناڅاپه د دوی مرستی ته هلته څه ډول ور ورسید، په تیرو ډری ورځو کی بدر بن مغیره ته هغه د فردیناند د ظلمونو ډیر داستانونه وویل او د هغوی اعتماد یی لږ او ډیر ترلاسه کړی ؤ. د جمعی له لمانځه نه وروسته هغه د بدر د ملګرو په مخکی یوه پرجوشه وینا واوروله، او د اندلس د مسلمانانو ژوند یی داسی دردناک انځور کړ چی په غونډه کی ډیر په ژړا شول، بیا یی د اندلس د ماضی ارواپال تاریخ واوراوه. د بدر بن مغیره او د هغه د ملګرو د جهاد او کارنامو ستاینه یی وکړه، په پای کی یی وویل : موږ باید د خپل راتلونکی په باب هیڅ غلط ګومان ونه کړو، که موږ یو لاس د فردیناند پرخلاف د جګړی پریکړه ونه کړو نو ورو ورو به مو نوم ورک شی، ستاسو لپاره زما همدا پیغام دی چی د بزدلی له ژوند نه د زړورتیا او میړانی مرګ غوره دی، زه غرناطی ته هم له دی پیغام سره روان یم، زما باور دی چی زموږ د مظلومیت داستان ابوالحسن واوری خامخا به د فردیناند پرخلاف د جهاد اعلان کوی.

له وینا نه وروسته چی هغه له بدر او بشیر سره بیرته خپل هستوګنځی ته راستنیدو بدر بن مغیره ورته وویل : زما په دی باور دی چی ته په غرناطه کی واوسی هلته به په مسلمانانو کی نوی روح پو کړی.

ابو داود په غمجنه لهجه ځواب ورکړ : زه به خپل فرض پوره کوم څو خلك د یوه ناپیژندوی پر خبرو پروانه کوی.

بدر وویل : نه هغوی اوس رابیدار شوی دی.

بشیر زره نا زره وویل : که تاسو بده نه منی یوه پوښتنه کوم.

ابو داود يې خبره ور بشپړه کړه چې ته په دې حيران يې چې پردې تولو برسيره زما مېرمنه او لور په عيسوي مذهب باندې ټينګار کوي.
همدغه وايې ته که نه !

بشير حيران شو ويې ويل : هو ما همدا ويل زما باور دی چې ته به ددې لپاره مناسب دليل لرې.

ابو داود : ددې يو دليل دی خو زه نه وايم چې مناسب او معقول به وي که نه . ددې په اړه ستاسو غازيانو فتوی ډېره ښه ده دا زما دوهمه مېرمن ده، لومړی مېرمن مې يوه مسلمانه وه، او د هغې لور هم مسلمانه ده، خو زما دغه مېرمن د مرسيې له يوې عيسوي کورنۍ نه ده، او له دې سره تر واده وړاندې زه په دې هم پوهېدم چې زه به د عيسويانو په منځ کې دا مسلمانه نګرای شم. خو ما ددې سره واده ددې لپاره وکړ چې د عيسويانو په منځ کې ديوه آزاد خياله مسلمان په نوم وپېژندل شم. ما د خپل قوم ذلت او محکوميت نشو زغملی، ما ډوی د يوه انقلاب لپاره تيارول غوښتل، ما خپله عيسوي مېرمن د ځان لپاره ډال کړه، تر اوسه پورې ما خپل هدفونه دي ته نه دي ښکاره کړي، تر دې چې دې هم زه د اندلس د هغو زرګونو مسلمانانو نه بيل نه يم بللی چې دين ته يې شاکړه او له مذهب نه لرې شول، بلکې خپلو هم مذهبو ته وايي چې موږ تر اسلام نه عيسويت ته زيات نژدې يو.

له دې خبرونه ما دا ګټه اخستې چې په خو ښارونو کې مې د مسلمانانو انقلابي ډلې تيارې کړې دي. تاسو به په دې حيران شئ چې دا لس کاله چې زه په قسطله کې وم له لويو لويو عيسوي اميرانو سره مې کورنۍ اړيکې وې خو ډوی پر دې نه پوهيدل چې زه د ډوی پرخلاف په کړو وړو بوخت يم.
تاسو زما د کار په اړه د انتقاد حق لرئ خو زما نيت خدای «ج» ته معلوم

ته ښایی له هغه ځایه زما د تیښتی سبب وپوښتې، زه له هغه ځایه ددی لپاره نه یم راتښتیدلی چی حکومت زما په فعالیت خبر شوی دی، ددی لامل دا و چی د قسطله د شاهی کورنی یوه ځوان زما له کشری لور سره واده کول غوښتل، هغه زما میرمن دی کار ته تیاره کړی وه، او زما د پخوانی چلن له مخی زما ښځه پر دې باوری وه چی زه به له یوه عیسوی ځوان سره د خپلی لور د واده مخالفت نه کوم، خو کله چی زه په دی خبر شوم تاسو زما د حالت اندازه لګولی شی، له دی نه وړاندې ما تصمیم درلود چی هلته به خپله ذمه واری ترسره کوم بیا به غرناطی ته ځم او خپله عیسوی میرمن او لور به مسلمانوم اوس می داسی احساسوله چی اوبه تر سر اوړی. ما ددی رشتی نه مخالفت وکړ، چی د فردیناند حکم راغی، اوس ماته یوه لاره پاتی وه چې باید هجرت وکړم خو زه ویریدم چی دوی پوه نه شی چی زه غرناطی ته ځم او هجرت کوم تو ښایي زما میرمن په خپله خوښه راسره ولاړه نه شی. او لور می هم په زور رانه واخلی.

بشیر پوښتنه وکړه : نو لور دی هم د شاهی کورنی له ځوان سره په واده خوښه نه وه. ؟

ابو داود : نه ! د هغه ځوان یوه سترګه په یوه جګړه کی ړنده شوی وه.

بدر بن مغیره وپوښتل : نو تا سو تر دی ځایه څه ډول راغلی ؟

ابو داود : ما له تدبیر نه کار واخست او ددی واده مخالفت می پریښود ما د یوه دوست په لاس لیك ولیکه او د همغه د یوه نوکر په لاس می خپل کور ته واستاوه، په لیك کی لیکل شوی وو چی د انجیلا بابا دمرګ په تبه پروت دی او هغه د خپلی لور او لمسی له لیدونه وړاندی نه غواړی ومری. د داسی خبرونو په اوریدو ښځی په عام ډول د ډیر تفصیل پوښتنه نه کوی، په دی لیك کی د میراث د ویش یادونه هم وه ځکه خو می میرمن د مرسیی د

دی هم راسره تیار شو. ما مخالفت وکړ خو میریا یې ملګري وکړه ویې ویل چې دده ملګري له موږ سره بنه ده زموږ سفر به اسانه شي او ما له مجبوري نه ومنله.

سهار چې موږ روانیدو نو هغه په اس سپور راورسید ویې ویل چې د لارې پهروته یې زموږ لپاره د تازه نفسه اسونو تیارولو هدایت لیږلی دی. په لاره کې موږ د هغه په وجه په زحمت نه شوو، خو څومره چې مرسیې ته رانژدې کیدو زما اندیښنه زیاتیدله، د هغه آس به زموږ دګاډي ترمخ یا شاته غبرګ روان ؤ. د ګاډي کوچوان زما پخوانی نوکر ؤ. هغه زما په اراده پوه ؤ راته ویې ویل چې له دې سړي نه له ځان خلاصولو پرته مو غرناطې ته رسیدل ممکن نه دي ځکه خو زه په یوه ترخه پریکړه مجبور شوم

یو ماسپښین کله چې میریا په ګاډي کې ویده وه او سر یې د انجیلا په غیږ کې ایښی ؤ، ما انجیلا ته وویل چې ته پوهیږې موږ چیرته ځو؟

انجیلا ویل چې معلومه ده موږ مرسیې ته ځو.

ماورته وویل : زه تا ددې سړي نه ژغورم او د همدې مقصد لپاره زه د مرسیې پر ځای غرناطې ته ځم.

هغې په اوښلنو سترګو راته وکتل ځواب یې راکړچې : پلار جانه! زه له دې بلا سره د واده پرځای مرګ غوره ګڼم، زه له ده نه د خلاصون لپاره هر ځای تلو ته تیاره یم.

ما ورته وویل چې لږ وړاندې د غرناطې او مرسیې سړکونه سره جلا کیږي، خو دا بدبخت د سیورې په خیر راپسې دی، که موږ لاره بدله کړو په راتلونکې پهره کې به مو راوګرځوي. دده نه د خلاصون یوازې یوه لاره ده.

انجیلا لږ سوچ وکړ ویې ویل : پلار جانه هغه اوس په موږ پسې دي، ستا سره لینده شته او غشي ویشتل دې زده دي.

ما ورته وویل : زه ستا له موږ نه وړیږم.

ورسره سم می کوچوان ته د گاډی ږغلولو حکم وکړ، هغه د غشی په لګیدو له آس نه لاندی راپریوت خو بیا هم ویریدم چی که ژوندی پاتی شی په ټول اندلس کی به زموږ لټون پیل شی، ځکه خو مو په ډیره توندی خپل سفر ته دوام ورکړ، کله چی میریا سترگی وغړولی ورته ومو ویل چی هغه وراندی تیر شو، بیا مو هغه ته دا ونه ویل چی موږ لاره بدله کړه، خو چی د سرحد له وروستی پهری نه راتیر شوو له شانه می څو سپاره ولیدل چی په موږ پسی راووتل. ما د هغوی په ګړندی رفتار شك وکړ او کوچوان ته می د گاډی د ګړندی کولو امر وکړ.

د باران له لامله سرك ډیر خراب ؤ خو د خدای «ج» احسان دی چی د گاډی عرابه هغه وخت ماته شوه چی تاسو زموږ مرستی ته را رسیدلی وی.

موږ ځکه تر سرحده د رارسیدو موکه ومونده چی زما په گومان یی لومړئ زموږ لټون د مرسیې په لاره کړی ؤ، او هلته یی چی زموږ څه نښه ونه لیدله بیا به یی د غرناطی لاری ته پام شوی وی، دا ټول ستا ددی پوښتنی ځواب ؤ چی میریا او انجیلا می ولی تر اوسه نه دی مسلمان کړی، اوس زه له تاسونه یوه پوښتنه کوم.

بدر وویل : ته د هری پوښتنی حق لری.

ابو داود وویل : ستاسو سیمه زموږ له لاری نه لری ده که څه هم د شاهین د الوتو ساحه معلومه نه وی، خو بیا هم تا سو زموږ مرستی ته دومره ژر راورسیدی لکه تیار چی همالته موجود وی.

بدر بن مغیره وویل : خبره دا ده چی له یوی مودی زموږ او د غرناطی حکومت ترمنځ اړیکی تر ډیره حده دوستانه دی. هغوی د سرحد یو څه سیمی موږ ته سپارلی. او کله کله زه د هغوی د پهرو او چوکیو د کتلو

غاړه در واچوی نو دا به د دوی نیکمرغی وی.

بدر : زه ددومره ستر مسئولیت د ترسره کولو اهل نه یم.

ابو داود وویل : زه په غرناطه کی څوك نه پیژنم، که تاسو ماته د څلور پنځو مخلصو کسانو نومونه ووایی زه به خوښ شم.

بدر بن مغیره وویل : زه به داسی چاته لیك درکړم چی د هغه په وجه به په ټوله غرناطه کی بلد شی، خو زما په گومان ته باید ډیری شپې دلته پاتې شې، څنگه بشیره! دده لور به څه وخت د تگ راتگ وړ شی؟

بشیر ځواب ورکړ : انشاءالله په یوه هفته کی به بلکل روغه شی.

* * * *

(۳)

دغه کلا چی ابو داود د بدر بن مغیره د میلمه په حیث پکی اوسیده داسی ځای وه چی له بهرنیو حملو نه په امن نه وه، د کلا برجونه هم ډیر پاخه نه وو چی له بهر نه د لویی حملی تا ب راوړای شی، له الزغل سره د لیدلونه وروسته به بدر بن مغیره چی کله کله د پهری د کتلو لپاره راتلونو په دی کلا کی به اوسیدل، کلا د غرناطی په حدودوکی وه او د قسطلی او غرناطی ترمنځ د جگړی حالت نه ؤ ځکه خو بدر سمدستی پر کلا د یرغل خطر نه احساساوه او د کلا د ساتنی لپاره یی ډیر لږ سپاهیان گومارلی وو. بیا هم د قسطلی په سرحد کی دده ځړي هر وخت وو او حالات به یی له نژدی څارل. د ابو داود له راتگ سره یی پهره داران لږ زیات کړل، معمولاً به هغه په دی کلا کی دری څلور ورځی تیرولی او د غرناطی د سرحدی پهرو او گزمو له انتظام نه وروسته به بیرته ځنگل ته ستون شو، هلته به یی د غرناطی سپاهیان روزل، خو د ابو داود په وجه هغه د خپلی خوښی برخلاف په کلا کی زیات پاتی کیدو ته اړ شو خو بیا به هم د دوی څلورمه

کلا ته را وغوښت، له یوه داسې پلار پرته چې ددې د مور له وفات نه یو کال وروسته یې له یوې عیسوي نجلۍ سره واده کړی ؤ ربیعې په دې دنیا نور څوک نه درلودل، کله چې په ښه بده پوهیدلې وه دا ورته ویل شوي وو چې د مور د وفات په وخت ددې عمر له یو کال نه هم لږو.

هغې د عمر لومړې (۱۳) کلونه په طلیطله کې له ماما سره تیر کړل د دیرو نورو خلکو په څیر د عیسویانو ورځ په ورځ زیاتیدونکي ظلم د هغه د ماما کورنۍ هم غرناطې ته په هجرت مجبوره کړه، د ربیعې ماما دا له ځانه سره غرناطې ته بیوله خو ابو داود پرې نسبودله. او بالاخره ربیعه له خپل پلار سره قسطلې ته ولاړه، په قسطله کې هغې ته د پلار د کور چاپیریال بلکل بدل ؤ، د هغې ناسکه مور او خور عیسویان وې، پلار یې د عزت او شهرت په هوس کې د پلرونو له دین نه ډیر لرې شوی ؤ. د قسطلې عیسویانو هغه یو آزاد خیاله مسلمان باله. هغه د عیسویانو په مجلسونو کې د قرآن تلاوت کاوه او زیاتې پرجوشه ویناګانې به یې کولې، د عیسوي راهبانو لوړې طبقې ته دا ښکاره وه چې ابو داود د مسلمان په جامه کې د مسلمانانو تر ټولو بدترین دښمن دی. څکه خو یې د نورو مسلمانانو په څیر دې خپل مذهب پریښودلو ته اړنه کړ.

څینو د ژور نظرخاوندو مسلمانانو په هغه شک کاوه، خو د عوامو اکثریت ته هغه دا باور ورکړی ؤ چې د پادشا په دربار او د عیسویانو په لیکو کې دننه هغه مسلمانانو ته څه کولی شي په جومات کې یې نشي کولی. ابو داود به مختلفو ښارونو ته تلو هلته به یې پټې ډلې جوړولې، احساساتي مسلمانان به ئې راپارول، بیا به یې ټول راز عیسوي حاکمانو ته ورایه او له هغه ځایه به ورک شو. عیسوي حکامو به هغه یو یو ونیو او د دوسیې نه پرته به یې غرغره کړل، ددې خدمتونو په بدل کې ابو داود ته فردیناند

غوسه راپاروله، دوړوکتوب احساسات یې لانه وو پاخه شوي څو د پلار د کور ترخه ماحول یې تل د ماما کور ور یاداوه او ددې د یادونو پخوانی خوږې پیښې به یې هر وخت د پریشانه ژوند شیبې ور رنگینې کړې. کله به چې د ښار یو پاپ ددې ناسکه خور انجیلا ته د انجیل د درس لپاره کورته راته دی ته به هغه بوډا عالم ور په یاد شو چې د ماما په کور کې به یې د قرآن تعلیم ورکاوه، او چې ددې ناسکه مور به ورته وویل چې ته هم له انجیلا سره یوځای انجیل لوله نو دا به چوپه بلې کوټې ته ولاړه او قرآن کریم به یې تلاوت کاوه.

انجیلا به هره یکشنبه کلیسا ته تله او ربیعه به د یوی مسلمانې گاونډۍ کره ولاړه هغه یې پخوا د مور ملگرې وه.

ربیعې چې د پلار په کور کې دوه کاله تیر کړل خبره شوه چې ماما یې له کورنۍ سره له غرناطې نه مراکش ته تللی. له دې خبر اوریدو نه وړاندې به دې کله کله زړه ته تسلي ورکوله چې تقدیر به دوی یو ځل بیا سره یوځای کړي او دا به د ماما کورنۍ او خپلوان ټول بیا هم ویني. خدای «ج» ته به یې تل همدغه دعا کوله، خو کله یې چې داوریدل هغوی مراکش ته تللي دي زړه یې مات شو او تر ډیرو ورځو پورې یې پټې اوښکې تویولې.

ابو داود په خپلو ټولو بدیو دپاسه له ربیعې سره زیاته مینه درلوده، میریا به تل دا شکایت کاوه چې له انجیلا سره دومره مینه نه کوې لکه له ربیعې سره، خو هغه به دا ځواب ورکاوه چې ستا په موجودیت کې انجیلا زما مینې ته ضرورت نه لري، خو ربیعه په دې نړۍ له ما پرته بل څوک نه لري.

میریا ډیره تونده خویه ښځه وه، او ربیعې ته یې په خپل چلند ورښوولې وه چې نفرت ترې کوي، انجیلا د مور په څیر مغروره وه، خو په سینه کې

ناندریو به ورسره مجبوره شوه، د دوی په دې شخړو کې به د منطق او دلیل پرځای له احساساتو نه زیات کار اخستل کیده، میریا او انجیلا به هغه د فردیناند له شان او د بد بی او د روما د عیسوی پاچاهانو د ځواك او هیبت نه ویروله او ربیعی به بیا د طارق بن زیاد، موسی، عبدالرحمن او یوسف بن تاشفین کیسی ورته کولی.

میریا او انجیلا به ویل چې فلانی راهب ته زیری ورکړای شوی چې له اندلس نه د مسلمانانو د شړلو لپاره خدای «ج» فردیناند غوره کړی، دی به په ځواب کې ویل چې ما ابوالحسن په خوب لیده چې پر قسطله د مسلمانانو د بری بیرغ ورپوی.

د مغیره د وژل کیدو د خبر په اوریدو میریا او انجیلا هم د نورو عیسویانو په څیر خوښي ښانځله، خو ربیعه دومره پری خفه شوه چې تر دری ورځو پوری یی له چا سره خبره ونه کړه. له هغی نه وروسته د سرحدی عقاب په لاربښودنه‌دکاونت سنت یاګو په ماته چې ربیعه څومره خوشحاله شوه هومره میریا او انجیلا پری خفه شوی ، له هغی وروسته به چې کله د دوی په کور کی مذهبی بحث پیل شو د سرحدی شاهین یادونه یکی خامخا کیدله میریا او انجیلا به هڅه کوله چې نوم یی یاد نشی خو ربیعی به نی په خوند خوند کارنامی او حماسی ستاینلی د شپی به چې انجیلا او مور یی د «سپیڅلی مریم» د بوت په وړاندی په ګونډو شوی او د عیسویانو د بری دعا به یی کوله، نو ربیعی به په ځانګړی کوټه کې له لمانځه وروسته د سرحدی شاهین د بری دعا غوښته یوه ورځ میریا ابو داود ته شکایت وکړ چې ربیعه زموږ د پاچا د دښمن خیر غواړی. ابو داود ربیعه وترټله او منت یی ورته وکړ بیا یی ورته وویل چې : که ته نه غواړی چې حکومت موږ باغیان وبولی او په غرغره مو کړی نو د سرحدی شاهین په اړه دې احساسات

علم او پوهې خاوند دی له هغو خلکو سره توپیر نه لري چې په اندلس کې د مسلمانانو له بیا راپورته کېدونه نهیلي شوي او خپلې هیلې یې اوس په خپلو عیسوي بادارانو پورې تړلې، له دې وروسته هغې د پلار په مصروفیتونو له ژور غور وروسته پردې پوه شوه چې پلار یې اوږده موده له کوره بهر وي نو فردیناند ته په خدمت بوخت وي او هغه د فردیناند لپاره مهم خدمتونه ترسره کوي.

ربیعې ځان یوازې احساس کړ، ټول چاپېریال ورته پردی شو او چې څومره یې عمر زیاتېده دغه احساس ورسره زیاتېده د مسلمانانو د روښانه راتلونکې په تصور به یې چې په زړه کې تو دې جذبې په غورځنګ وې هغه ورو ورو بېرته غلې کېدلې، په ذهن یې یوه چوپتیا خوره شوه او ژوند ورته د یوه پرلپسې سهار او ماښام له نه ختمېدونکي تسلسل پرته هیڅ معنی نه درلوده.

خو کله یې چې واورېدل چې دا به له ابو داود سره غرناطې ته ځي په زړه کې ویدې ولولې یې بېرته راویښې شوې، هغې ته د ابو داود د هدف علم نه و، خو بیا یې هم د سفر په هر پړاو په زړه کې نوې جذبې را اوچتېدې، د غرناطې ډول ډول منظرې یې په سترګو کې راګرځېدې، ددې سفر په دوران کې څو ځله د سرحدي شاهین یادونه راغله، مېرېنا له هغه زیاته وېرېدله، او دابو داود د احتجاج سره سره به یې هرې نوې پهرې ته په رسیدو پوښتل :

«زموږ په لاره کې خو به د سرحدي شاهین د حملې خطر نه وي؟»

د پهرې افسر به دې ته تسلي ورکوله خو چې بلې پهرې ته به ورسیدل دې به بیا همدغه پوښتنه تکرار کړه.

یوه ورځ چې دوی په لاره کې په یوه سرای کې د سرای له خاوند نه دا پوښتنه وکړه ابو داود د سرای خاوند

سرحدی شاهین د الوتوله ساحی نه لری ده.

* * * * *

په قسطله کی چی د سرحدی شاهین په اړه څه خبری مشهوری وی، له هغی نه دی داسی انگیر له چی سرحدی شاهین به یو د پوخ عمر هیبتناك انسان وی خو هغه یې د تصور نه ډیر بدل ؤ.

د هغه په کتو کی تر زړورتیا او سپڅلتیا ډیره مینه او مهربانی زیاته وه، د هغه په مردانه څیره کی داسی اثر ؤ چی که یی ربیعی د غیرت او میړانی کیسی نه وای اوریدلی هم تر تأثیر لاندی به یی راتله.

د خپل قوم د یوه پاخه عزم خاوند مجاهد یو ځل لیدل د ربیعی د ژوند تر ټولو ستر نعمت ؤ. خو کله یی چی واوریدل چی هغه زلمی چی د دوی بی قابو گاډی یی دروله او یایی په بی هوښی کی تر دی کلا رارسولی وه له سرحدی شاهین پرته بل څوك نه وو نو دی ته د لومړی ځل لپاره په دی پراخه کایناتو کی د خپل ځان اهمیت معلوم شو.

ترکومه چی د ربیعی روغتیا شکمنه وه هغه به هر سهار او ماښام پوښتنی ته ورتلو، بشیر بن حسن به د هغی د زخمونو د پټی لپاره د ورځی دوه ځله خامخا ورتلو، انجیلا به ددغه ځوان طبیب د پښو د غږ په انتظار وه، او په منډه به یی دروازه ورته خلاصه کړه.

او کله به چی د هغه پام ربیعی ته ور واوښت نو دی به غوښتل په ډول ډول پلمو د هغه پام ځان ته ور واړوی.

پوښتنه به یی کوله : خور به می څه وخت د گرځیدورا گرځیدو شی.

بشیر به په بی پروایی ځواب ورکړ : ډیر ژر!

انجیلا : پلار جان می ویل چی ستا لاس په کوم مریض ولگیږی هغه روغیږی خو به هغه ورځ د گاډی د [illegible] تر اوسه زما غاړه [illegible]

بشیر : ډیره ښه ده زه به یې وګورم.

بشیر بن حسن به د ربیعي د ټپونو له ترلو وروسته انجیلا ته وکتل د غاښونو کتلو وروسته به په سوچونو ډوب شو. بیا به یې له مورنه پوښتل: پخوا یې کله کله غاښونه خوږیدلی ؟

میریا به ځواب ورکړ : نه !

هغه به بیا په سوچونو کې ډوب شو، او انجیلا به مخ بل لورته واړاوه او خپله خندا به یې راقابو کوله، بشیر بن حسن به وویل : ښایي د غاښ په ریښه کې څه خرابي وي ظاهراً هیڅ نه ښکاري خیر دی زه یوه نوې دوا درکوم هغه به په اوریو پوري کوي هغه به نوي دارو ورکړل او تري ولاړ به، انجیلا به د مور د بدګوماني لري کولو په خاطر کرکی ته ودریدله او بي له دی چې دوا په وریو ووهي ګوتی به یې په غاښونو راتیري کړې او بیا به یې لاړې تو کړې.

کله کله به یې په نوکانو وري زخمي کړې او له لاړو سره به یې وینی هم توکړې مور به یې ویل : لوری ! هغه چې هر څومره ښه طبیب وي له مذهبي تعصب نه به پاك نه وي.

انجیلا به په ښیره ځواب ورکړ : نه مور جانې زه د هغه په دوا ډیره آرام شوم. او کله به میریا په یوه او بله خوا شوه نو انجیلا به د زړه له تل نه په خندا شوه.

ربیعي به ملامته کړه دا به بیرته جدي شوه ویل به یې : ربیعي خوری ! ته بده مه منه زه به بیا داسې نه کوم ، خو نه پوهیږم ولې د هغه په لیدو زما د شرارت رګ راوپاریږي.

زه داسې احساسوم چې ځان پخپله تیرباسم، خو ځینې حماقتونه ډیر په زړه پوري وي، کله چې هغه زما د غاښو له معاینې نه وروسته په اندیښنو

انجیلا به په کرس کرس وخندل و به یې ویل : ربیعې ته هسې پریشانه کیږی.

- زما په خبرو باور وکړه، دا یوازې توکه وه.

یو ماښام ابو داود هم ژ بشیر د ربیعی زخمونه تړل، میریا وویل : انجیلا ته تیره شپه بیا خوب ورنه غی، تاسو یې غاښونه په غور وګوری.

ابو داود د خپلې میرمن خبره تائید کړه، بشیر و ویل : نن ما یوه ډیره مؤثره او تجربه شوی دوا راوړی ده، انشا الله تر دری ورځو پوری به ستا د لور د غاښونو خوږ ورسره ورك شي، بشیر دا وویل او د بوتل نه یې یو غوړپ دوا په پیاله کی تویی کړه انجیلا ته یې ونیوه ویی ویل : دا وڅښه !

انجیلا په حیرانی وویل : د څښلو دوا !

بشیر خپله موسکا قابو کړه ویی ویل : هو! ددی په څښلو د غاښونو درد بلکل لری کیږی.

انجیلا په تذبذب دوا واخستله او شونډو ته یې نژدی کړه، خو له څښلو سره یې بیرته لاړی توکړی ویی ویل:

دا خو ډیره ترخه ده نه یې څښم.

بشیر ورجګ شو په پتکه ئی ورته وویل : دا به خامخا څښې.

هغه د بشیر په پتکه وویریده ویی ویل : زما په دی کانګی راځی.

بشیر ځواب ورکړ : بیا به نوره دوا درکړم له ما سره دا دوا ډیره ده.

انجیلا په هیله منه لهجه وویل : نو زه یې وڅښم.

ابو داود وویل : هو لوری ویی څښه په دې کې دې ګټه ده.

انجیلا بیا بشیر ته وکتل ویی پوښتل : په دی کې خو به څه تاوان نه وی؟

ابو داود په غوسه شو ویې ویل : د بشیر بن حسن په دوا کې تاوان !

په ته ډېره وړوی هم شي.

د بشیر او ابو داود له تلونه وروسته انجیلا خپلی شونډې تر غاښو لاندې کړې ربیعې ته یې وکتل او هغې ورته وخندل.

. تر لږ شیبې خولې بوخولو وروسته انجیلا پخپله هم په خندا شوه او میریا پریشانه شوه وېې ویل : تا سو دواړه لیوني شوي یاست، بله ورځ میریا خپل خاوند ته د بشیر بن حسن ستاینه کوله وېې ویل : دا طبیب رښتیا هم ډېر لایق دی.

* * * * *

(۵)

دغه کلا په یوه لوړه ځمکه غونډۍ پرته وه. دیوالونه یې د دوو سړیو د قد په اندازه اوچت وو، د دروازې لهدیوال سره دوه پوړیزه کوټې وې په لاندینی پوړ کې د سپاهیانو کوټې وې او په پاسنی پوړ کې یې د افسرانو د اوسیدو لپاره کوټې جوړې شوې وې، دی د یوال ته مخامخ بل دیوال ته د اسونو لپاره طبیلې وې دریم لوری ته جومات جوړ شوی ؤ او څلورم دیوال ته د پخوانی آبادی کنډوالی وی.

په پورتنی پوړ کې په دوو غوره کوټو کې ابو داود او د هغه اولاد ته ځای ورکړ شوی ؤ. په هغه کوټه کې چې د ابو داود او د هغه د لونو او میرمن بسترې وې ډېره پراخه وه ، او کړکې یې بهر لوری ته وې، دغه کوټې له دیوال نه نژدې دوه چنده لوړې وې او وړاندې ښکلې دره او هسکې تیټې غونډۍ تر لرې پورې ښکاریدلې.

ددرې په منځ کې د یوې ویالې او به له لرې ځلیدلې، دی کوټی ته د تګ راتګ دوی دروازې د ابو داود کوټې ته وتلې وې او له هغې نه مخکې یوه اوږده برنډه وه چې مخه یې د کلا د انګړ لوری ته وه، د ابو داودکوټې

به ولاړ او تیاره مانښام به راستون شو کله کله خو به یې شپه هم بهر وه. خو د هغه په غیاب کې به بشیر بن حسن د ابو داود کوربه ؤ او د هغه خدمت به یې کاوه.

بشیر پردې سربیره چې یو ډیر لوی طبیب ؤ ډیر لوی عالم هم ؤ هغه په تاریخ، فلسفه، او نورو علومو کې د ابو داود د پوهې تر تأثیر لاندې راغی، د ورځې به هغه هم تر لرې لرې ځایونو د ناروغانو د لیدو لپاره تلو، خو مانښام به بیرته راستون شو، او له ویده کیدو نه وړاندې به یې له ابو۔ داود سره په مختلفو موضوعاتو بحث کاوه، هغه ډوډۍ هم له ابو داود سره د هغه په کوټه کې یوځای خوړله.

بدر به هم چې له بهر نه راستون شو د فرصت شیبې به له ابو داود سره ؤ، د شپې به بشیر او ابو داود تر ډیره وخته سره ګړیدل، خو بدر له ډوډۍ وروسته په ډیرو خبرو عادت نه ؤ، هغه به معمولاً له ډوډۍ خوړلو نه وروسته لږ څنډ پاتې شو بیا به جګ شو او خپلې کوټې ته به ولاړ.

ربیعې، انجیلا او میریا ډوډۍ په خپله کوټه کې خوړله.

د ربیعې غوږونه به په بله کوټه کې له ابو داود سره . خبرو اترو ته هغه وخت څك شول چې دې به د بدر غږ واورید. دا چې مخ په رغیدو شوه بدر اوس ددې کوټې ته نه راتلو، خو بیا هم چې کله له ابو داود سره مخ کیده لومړی پوښتنه به یې دا وه چې : ستا لور څنګه ده؟

ربیعې به داسې احساسوله چې د هغه لومړۍ پاملرنه یوازې د خواخوږۍ او همدردۍ په وجه وه، انجیلا په هر چاپیریال کې په بې تکلفه کیدو او عادت کیدو روږدې وه، کله به چې په بله کوټه کې له ابو داود سره یوازې بشیر ؤ نو دا به په څه پلمه او پوښتنه ورغله، د ترخې دوا د څښلو نه وروسته یې د غاښو درد په کرار شوی و. بیا یې هم له ځوان طبیب سره

غوښتل خو زما د بیړې له لاملـه یی هغوی رانه وستلای شوای. اوس به غرناطی ته زموږ په رسیدو کی ځنډ پیښ شی، دی بیچاره خپلو اولادونو ته اندیښمن دی، ځکه خو زه غواړم چی دی له همدی ځایه رخصت کړم. ایا تاسو یی د سفر بندوبست کولی شی؟

بدر وویل : زما سړی به دی تر سرحد واړوی. خو دا ضروري ده چی دی باید زما د مصرفیتونو په باب چاته څه ونه وایی.

ابو داود ځواب ورکړ : د کوم بل چاپه باب خو خبره په یقین سره نشی کیدای، خو دده په باب زه وایم چی دی له ما سره له شلو کلونو راسی دی او ما په لسګونو ځله ازمویلی دی، دی زما د ژوند له هر راز نه خبر دی، که ده زما یو راز هم زما دښمنانو ته ویلی وای نو نن به زه ستا په مخکی نه وم. اوس هم ما خپله نیمایی شتمنی دده په کور کی پریښی ده، او زما پردی باوودی چی شل کاله وروسته به هم زما امانت روغ رمټ لاس ته راځی.

حقیقت دا دی چی زه تر خپلی عیسوی میرمن او لور پرده زیات اعتماد لرم، هغه هم له ما سره څه ذاتی مینه نه لری یوازی پردې یی راسره مینه ده چې ما د عیسویانو تر ټولو سخت دښمن ګڼی، کله چی دی څوارلس کلن ؤ پلار یی د قسطلی والی د بغاوت په تور غرغره کړ، ده هغه زړه بوږنوونکی ننداره پخپلو سترګو لیدلی، تاسو په دی خبر نه یاست چی دی له تاسو سره څومره مینه لری، پرون یی ماته ویل چی زه به می میرمن او اولادونه په غرناطه کی تاته پریږدم او راځم له سرحدی عقاب سره په پوځ کی شاملیږم.

بدر بن مغیره وویل : زه خفه شوم چی له ده سره می علاقه نه درلوده،

په هر صورت دی چی هر کله وغواړی زما ملګری به یی تر سرحد واړوی.

انجیلا او میریا په دروازه کی غوږنیولی ؤ او دا خبری یی اوریدلی، او

حکومت مخالف نه وی، نیمه شپه د ربیعی سترګې پټې شوې، خو میریا او انجیلا تر ډیره وخته پس پسک کاوه، میریا په وار وار د خپل خاوند دا الفاظ تکرارول چې هغه تر خپلی عیسوی میرمن او لور په دی کوچوان زيات اعتماد لری.

انجیلا یی مور ته تسلی ورکوله ویل یې : پلار جان دومره احمق نه دی چی پردی هم پوه‌نه شی چی مور یی خبری اوریدای شو.زما باور دی چی هغه د څه مصلحت په خاطر داسی ویل.

میریا وویل : لوری زه په یوه مسلمان هیڅ اعتبار نه لرم، زه داسی احساسوم چی له ده سره می وطن پریښودل غلطی وه. اوس که غرناطی ته ولاړ شو هلته مور په زور مسلمانوی څه کولی شو.

انجیلا : موری ! زه پوهیږم پلار می له مذهب سره هیڅ مینه نه لری کله چی ته له هغه نه د هغو خبرو پوښتنه وکړی پخپله به دې تسلی وشي.

میریا : څو زما زړه تسلی نه شی خوب نه راځی، نن خو دا ډاکتر داسی دروند ناست دی چی د تلو نوم نه اخلی، ته لړ دروازه بیرته کړه پلار ته دی غږ وکړه.

انجیلا : نه موري لږ صبر وکړه هغه اوس ځی.

کله چي بشیر ولاړ میریا دروازه وازه کړه، د شمال د توندی څپی په څیر کوټی ته ورننوته او په ابو داود یی پټکې پیل کړې: هو! نوزه او لور می تر کوچوان هم ذلیل او بی اعتماده یو!

ابو داود : لږ ورو خبره کوه ! بیا جګ شو او زربی بهرنی دروازه وتړله ورپی ویل : زه پوهیدم چی ته زما خبری اوری او له واکه به ووزی، خو د خدای «ج» لپاره لږ صبر وکړه اوس دی زه ډاډه کوم، راځه زه ستاسو کوټی ته درځم، دلته خبری ښنی نه دی که یی څوك واوري مور ټولوته تاوان دی.

که چا زموږ غږ واورید بیا مو خیر نشته، بیابی میریا ته وکتل ویې ویل :
د خدای لپاره لږ شیبه چوپه شه زه دې اوس داډه کوم.

دغې هنګامی ربیعه راویښه کړه، او هغه پرخپله بستره پرته وه، سترګی یې پټې وې خو د دوی خبرې یې اوریدې.

کله چې انجیلا ټولې کړکۍ پورې کړې، نو ابو داود میریا په خپله بستره کېښینوله او ورته ویې ویل : بې عقلې ښځې ! زه ستا لپاره د غرناطی د ملکې خوبونه وینم او ته موږ ټول بربادول غواړې ته لږ صبر وکړه زه کوچوان دلته راولم هغه به پخپله ستا تسلی وکړي، میریا لږ پښیمانه غوندې شوه ویې ویل : ته موږ د هغه دوړاندې ولې ذلیلوې؟

ابو داود وویل : میریا په غور واوره ! کوچوان زه د یوه مهم کار لپاره استوم، او ددې مهم د ترسره کیدونه وروسته زه بنایی غرناطی ته له تګ نه ډډه وکړم، د فردیناند په نظر به زما دا بریٔ د غرناطې له فتحې نه وړوکی نه وی، او کله چې زه هلته دوی ته ووایم چې په دې کار کې ته هم له ما سره ملګری وی نو د ازابیلا په نظر به ته د قسطلی له ټولو میرمنو نه زیاته عزتمنده شی.

میریا لږ نرمه شوه ویې ویل : دلته ته دڅه بری تمه لرې ؟

ابو داود ځواب ورکړ : تا ته معلومه ده چې فردیناند سرحدی شاهین تر ابوالحسن زیات خطرناک ګڼی.

میریا ! نو ته هغه ...؟

ابو داود : هوکی ! که د قسطلی واکمنو ته معلومه شی چې شاهین د خطرناک ځنګل او غره پرځای په دې معمولی کلا کې اوسیږي نو ډیر زر به دوی حمله وکړي او کوچوان زه د همدې لپاره استوم. زه ستا د ډاډینی په خاطر هغه دلته راغواړم.

د ربیعی زړه درزیدو خو د سترګو غړولو او څه ویلو همت یی ونه کړ.

انجیلا وویل : پلار جانه دوی زموږ ژوند ژغورلی، دوی له موږ سره په ډیر اخلاص سلوك کړی، که دوی زموږ ډیر بد دښمنان وای هم زموږ د ښه سلوك حق یی ؤ، او هغه طبیب چې د سرحدی شاهین ملګری دی او سهار او ماښام زموږ د خدمت لپاره راځی یو پرښته دی، آیاته د دوی نیکی هیرولی شی؟

ابو داود ځواب ورکړ : دده په باب تاته ښایی دا معلومه نه وی چی فردیناند خپله نیمایی شتمنی دده د دوستی په خاطر دا وکولی شی. زما باور دی چې که د فردیناند سره هغه بندی وی نو په لاس کی به یی زنځیر طلایی وی او فردیناند به خپل لوی وزیر او یا مشر پاپ ته ووایی چی زما د عزتمن بندی لپاره کرسی پریږده. هغه یو ځل د قسطلی د شهزاده ژوند بچ کړی دی، د قرطبی او اشبیلیی والیان هغه خپل دوست بولی، دغه طبیب له دی اشرارو سره په هستوګنه هسی خپل وخت بربادوی د ده لپاره غوره ځای دغه ویجاړ ځنګل نه بلکی د قسطلی شاهی مانۍ ده، او زه دده د نیکی په بدل کې که څه هم دده رضا نه وی دی همغه دربار ته ور رسوم. او زه په دی هم باور لرم چی دغه ډاکتر له ملکی او پاچا نه د بدر بن مغیره بخښنه وغواړی هغوی به د بدر پخوانی ټولی خطاګانی معاف کړی.

د انجیلا ویره په خوښۍ بدله شوه، تر اوسه پوری ددی دا ګومان ؤ چی له بشیر سره به یی خواخوږی او مینه له دی ځایه د روانیدو سره پای مومی، او دغه پیښه به دی ته د ماضی یو خوږ خوب غوندې وی، بشیر چی دی لومړی ځل ولید په زړه کی یی ډیر عجیب ټکانونه احساس کړل، خو له هغه سره په بلدیدو سربیره پردی پوهیدله چی د دواړو ترمنځ یو مزبوت او دنګ دیوال ولاړ دی، په دی چاپیریال کی ددی د سرګردان نظر لپاره بشیر یو لنډ

مخې په تیارو کې نوې ډیوې بلې شوې نن یې د لومړي ځل لپاره دا سوچ کاوه چې له بشیر سره یې لیدل داسې پیښنه نه وه چې دې ته هیڅ ونه لري، د څو شیبو لپاره دا له دې کوټې نه ووتله او ډیره لرې تله، بشیر بن حسن یې د قسطلې په دربار کې لیده، دې په خپل کور کې د هغه په وړاندې د عیسویت تبلیغ کاوه، بیادقسطلې لوی پاپ هغه ته د نوي دین منلو مبارکي ورکړه، وروسته بیا دواړو په یوه کلیسا کې د ژوند د ګډ سفر د پیلولو لپار د «سپیځلې مریم» د بوت په وړاندې یو له بل سره لوظونه او سوګندونه اوچتول او د کلیسا پاپ پر دې پاکې اوبه ورشیندلې.

دغه خیالي خوبنې انجیلا ته د هوا د یوې څپې په څیر وه، بلکې یو توپان ؤ چې دا یې له کومه ځایه کوم ځای ته وړې وه.

خو د ربیعې حالت بیا بیل ؤ، د هغې د خیال محلونه رانسکور شوي وو هغې بدر بن مغیره د فردیناند په مخکې لاس او پښې زولنې لیده، د هغې د امید غاټول مراوي شوی ؤ، او د هیلو له آسمان نه ځروښانه ستوري یو یو لویدل، او ربیعه د مایوسیو تر بار لاندې ښخیدله، ساه یې بندیدله، دې فریاد کول غوښتل، کاشکې فریاد یې کولی شوای، کاشکې څه یې ویلی شوای خو دې د سترګو غړولو جرئت هم نشو کولی، ابو داود وویل : زه کوچوان را غواړم.

میریا وویل : زما پر تا اعتبار دی، افسوس چې هسې مې پریشانه کړې.

ابو داود : زه هغه ته یو څو خبرې کوم او د داسې خبرو لپاره دغه کوټه ډیره په امن ده.

لږ ځنډ وروسته ابو داود له کوچوان سره یو ځای کوټې ته راغی، او له دروازې ترلو وروسته یې ورو وویل : ربیعې ! ربیعې ! ربیعې چې غږونه کړ هغه وویل : دا ښه ده چې ربیعه ویده ده.

کلا کې پاتې شي، که هغه دلته ژ نو ددې کوټې په دوارو کړکیو کې به شمې بلیږي چې زموږ سپاهیان به یې له لرې لیدای شي.

او که په یوه کړکۍ کې شمه بلیده معنی یې دا ده چې هغه دلته نشته او حمله هیڅ گټه نه لري. که هغه شپه توپانی وه هم موږ به هڅه وکړو چې په یوه یا دوارو کړکیو کې زموږ سپاهیان رڼا ووینی، او په حالت پوه شی، او که زموږ د کوټې دواړه کړکۍ بندې وې معنی یې داده چې وړاندی خطر دی او بیادېراوړاندی نه شي.

هغه ته دا هم ووایه چې که په هغه شپه یې تر نیمې شپې پورې حمله ونه کړه زموږ ټولو ژوند به په خطر کې شي. گوره له سرحد نه تر تیریدو وړاندی دا خبره چاته ونه کړې، تا به تر اوسه کوم عادي کوچوان د شاهي سپارلی مشرنه وی لیدلی خو که ته دا کار په هوښیاری وکړې ځان ته د فردیناند په دربار کې لویه کرسی خالي گوره.

ز،ه ستاسو ادنی غلام یم که زما بادار د غرناطې پاچا شی نو زه به د فردیناند د شاهي سپارلی د مشرتابه پرځای د هغه د دربار عادي پهره داری غوره بولم.

ابو داود ځواب ورکړ : زما له تانه همدا تمه وه، که زما د بخت ستوری وځلید نو زما په وفا دارانو کې به لوړې ستا کور روښانه وی. ته به زما د محل پهره دارنه وی بلکې زما د دربار ښکلا به وی، ته به زما د تاج غمی وی. اوس ورځه ویده شه، سهار وختی به ستا د سفر بندوبست کیږي، هغوی ته ووایه چې د کلا د ساتنې لپاره تر پنځوس تنو زیات سپاهیان نه وی.

د کوچوان د تگ نه وروسته ابو داود یو ځل بیا ټولې دروازې او کړکۍ پوری کړ ې او په کرسۍ کیناست تر ډیره یې له انجیلا او میریا سره خبری کولې، دوی وار و ځانونه د غرناطې راتلونکی پاچا، ملکه، او شهزادگۍ بلل

خپل پلار په بدنیتی او خیانت نن د لومړی ځل لپاره پوه شوه او اوس هغی په دنیا کی بلکل ځان یوازی محسوساوه، یوازی د سرحد دغه یاغی ځوان داسی څوك ؤ چی له دی سره د ډېری لږې پېژندګلو سره ورته نژدی ؤ.

څو ساعته وړاندی چی دا پوهیدله د سرحد دغه یاغی ځوان له هر خطر نه آزاد دی. دی به سوچ کاوه او یوه نامعلومه ویره به یی احساس کړه، یوه داسی ویره چی یو سیلانی یی د یوه خطرناك څو په زړه پوری غره په ګرنګونو کی محسوسوی. بدر بن مغیره هغی ته په یوه یوخت کی یو زړه وړونکی بڼ، یو اور غورځونکی غر او د دواوړویوه لویه غونډۍ وه، د هغه نژدې توب چې څومره ورته زړه وړونکی ؤ هومره یی تصور ورته ویروونکی ؤ.

څو اوس یی چی د پلار ناولی ارادی ورته څرګندی شوی بدر بن مغیره دی ته یوه داسی ونه وه چی په څانګو یی ځاله جوړه کړی وه، دغه ونه د حادثو له توپان سره مخ شوی وه، او دی غوښتل له پریوتویی وړغوری دی په خپلو نازکو لاسونو.کلکه ځمکه کنیدله او ددی ونی په ریښو یی خاوری اړول غوښتل.

ابو داود خپلی کوټې ته ولاړ او ربیعی څو واری له یو بل اړخ اوښتو وروسته سترګی پټې کړې او ویده شوه.

# د ربيعي انديښنه

سهار چي کله د ربيعي سترګې غړېدې، وجود ئې ټوټه ټوټه ؤ ټاټر سر يې درد ؤ له کړکيو نه بهر روښنايي داسې معلوميده چي د لمانځه وخت تنګ دی هغه له بسترې پاڅيده زر زر يې اودس او لمونځ وکړ او بيرته په بستره وغځيده.

بشير بن حسن يوه ورځ وراندې ددې پټې خلاصې کړې وې، او مشوره يې ورکړې وه چي د پښې ټور پاتې تکليف به يې د ګرځېدو او قدم وهلو سره رغيږي، غوره دا ده چي سهار او ماښام له کلا نه بهر لږ او ډيره پلې وګرځي په تازه هوا کې به يې چکر کمزوري بدن ته ډير زر سبك ورکړي.

ابو داود د کوچوان له رخصتولو وروسته نيغ ددې کوټې ته ورغی او ويې ويل : ربيعې ! ته تر اوسه ويده يې ! ولاړه شه لږ له انجيلا سره چکرووهه، ميريا ته هم ورسره ولاړه شه،

کله چي ربيعی څواب ورنکړ انجيلا ووېل : ښايي د ربيعې طبيعت ښه نه وي، راځه موږ دواړه به چکر ووهو.

ميريا ووېل : ماښام ته به ګورو، اوس خو زما سر خوږيږي.

ابو داود د ربيعې نه وپوښتل : ولې ربيعې څه خبره ده ! ښه يې که څنګه ؟

ربیعی وویل : نه نه د طبیب د راوستلو ضرورت نشته زه روغه یم. پلار جانه ! زه غوارم چی موږ سمدستی غرناطی ته روان شو.
: خو تر څو ته د ګرځیدو راګرځیدونه شی موږ به همدلته ایسار وو.
ابو داود وویل او له کوټې نه ووت ، لږ څنډ وروسته یې بشیر بن حسن ورسره راوست.

بشیر د ربیعی په نبض لاس کیښود ویې ویل : زما په ګومان ته د شپی نه یې ویده شوی.

ابو داود ، میریا ، انجیلا تکان وخوړ او ټولو ربیعی ته کتل، هغی ته د دوی د اندیښنی دلیل څرګند ؤ ویې ویل : زما په ګومان زه نن شپه ډیره زیاته ویده شوی یم، سهار می چی سترګی وغړیدی سر می راباندی ګرځیده.
بشیر وویل : امکان لری د ډیر خوب په وجه دی وضعیت خراب شوی وی ، په هر حال زه دوا درته راستوم، ماښام خامخا بهر ته ووزه په بستره پریوتل هم بدن کمزوری کوی.

ابو داود دادمنه ساه واخستله، ویې ویل : زما میرمن هم د سر خوږی نه شکایت کوی.

بشیر د میریا د نبض له لیدو وروسته وویل : ته هم که ډیر لږ نه وی ویده شوی نو د ربیعی په څیر به ډیره زیاته ویده شوی یی. ته که سهار او ماښام بهر قدم وهی نو هیڅ تکلیف به نه وینی.

میریا وویل : ماته رښتیا هم خوب نه راته. بشیر وویل : زه دوا راستوم. کله مو چی د بی خوبی نه شکایت ؤ یوه ګولی وخوری.

ترماښامه د ربیعی طبعت ښه شوی ؤ. دابو داود په اصرار له میریا او انجیلا سره بهر ته ووته ، هغی تر اوسه په ګرځیدو کی په یوه پښه زیات زور راوړ، له کلاته بهر بشیر بن حسن د کوم ناروغ له لیدو وروسته ...

*****

(۲)

دوی ورځې نوری هم ربیعه سخته ناکراره وه، هغې بدر بن مغیره له خطرنه خبرول غوښتل، خو دا په دې هم پوهیده چې که دا کار کوي پلار به ئي له خطر سره مخ کوي، له ډیرو سوچونو وروسته يې يو تدبیر په ذهن کې ورغی اود ی له بدر بن مغیره سره د لیدو اراده وکړه، له بشیر بن حسن نه يې چې پوښتنه وکړه ورته څرګنده شوه چې هغه ځنګل ته خپل مرکز ته ستون شوی او ښایی تر دوو ورځو پوری بیرته راونه ګرځي، جمعې ته څلور ورځې پاتې وی، ربیعې به له هر لمانځه وروسته دا دعا کوله چې هغه څو شپې نور هم له خپل مرکز نه راستون نه شي.

دوی ورځې هغه له انجیلا سره سهار او ماښام د سیل لپاره وتله، لومړی سهار چې دوی وتل بشیر بن حسن چې ډیر وختې بهرته وتلی ؤ او بیرته راستنیده دوی ولیدل، انجیلا هغه ته وکتل ویې ویل : وګوری اوس خو د ربیعې په تګ کی څه کمی نه احساسیږی.

بشیر ځواب ورکړ : بس اوس به د ګرځیدو راګرځیدو سره بلکل روغه شی.

انجیلا وویل : پلار جان ویل چې د هفتې په ورځ موږ له دې ځایه ځو.

بشیر : هو ! موږ له غرناطې نه تاسو ته نوی ګاډی را غوښتی ده، انجیلا لږ له جرئت نه کار واخست ویې ویل : تاسو په ویرانه کې خفه کیږی نه؟

بشیر : زه په ښارونو کی د خلکو بیرو بار نه خوښوم.

انجیلا : ته ډیر وختې د چکر لپاره وزې!

بشیر : هو زه ډیر وختی له خوبه په پاڅیدو عادت یم.

بشیر دا وویل او ولاړ، انجیلا تر څو شیبو مخ وراړولی ؤ او وریسې کتل

دوه متوازي ليكو ته ورته دي چي هيڅكله هم نه سره يوځاى كيږي.

انجيلا خپله انديښنه په خندا كي پټول غوښتل وېي ويل : ربيعي تا گومان كړی چي زما ستا له هم مذهبی سره مينه پيدا شوی ده؟

ربيعه ! نه ! انجيلا مينه ستا له توان نه وتلی خبره ده، زه په دي داده يم چي ته له دي سپيڅلی جذبی نه محرومه يی، خو په اغزيو كي پريوتل هيڅ گټه نه لري، ځينی اغزی ډير عجيب وی د سړی لمن يی تار تار كړی وی خو هغه لا په ځان نه وی خبر.

انجيلا : ربيعی ! ربيعی ! ستا اټكل غلط دی، زه د مينی له جذبی نه محرومه نه يم ، زه چي څوك د خپل زړه خاوند وبولم خپل هر څه په تري ځار كړم. خو هغه به داسی څوك نه وی چي زما هم مذهبه نه وی، له ښارونو نه يی كركه وی، زه دومره ساده نه يم چي د واورو په ډيری كي د اور سپرغی ولټوم، كه زما له بشير سره لږ او ډيره دلچسپی ده يوازی په دي دليل چي هغه ستا علاج كوی، كه ته بده منی نو زه به بيا هغه ته نيغ نه گورم زه به له دي وروسته له تا سره قدم وهلو ته هم نه راځم.

ربيعی وويل : نه نه ! انجيلا ماتوكي كولي.

* * ** *

(۳)

د ربيعی ناكراري ورځ په ورځ زياتيده جمعی ته دوی ورځی پاتی وی ربيعه جگه شوه د سهار لمونځ ئی ادا كړ، انجيلا هم لاسونه او مخ پري مينځل او بهر ته د چكر لپاره تياره شوه، ميريا به هره شپه له ويده كيدو وراندی ويل چي سهار زه هم درسره ځم خو چي سهار به يی پاڅوله دی به د سرخوږ او يا كومه بله پلمه وكړه او پاتی به شوه، بيا به هم انجيلا ته دی دا نصيحت تكرار كړ چي لوری ډيره وړاندی مه ځه دغه خلك ډير خطرناك دی.

له انجیلا سره ملګرې ونکړای شوه، هغې به څلورمه برخه فاصله وهلې وه انجیلا ته ګوویل : انجیلا زه ستړې شوم، که ستا هیله وي سرته وخیژه بیرته راشه، زه به دلته ناسته یم ستا انتظار به کوم.

انجیلا وویل : ډیر ښه زه به اوس بیرته راستنه شم او بیا په منډه په غونډۍ ور پورته شوه، هغې په لاره کې بشیر ونه لید په دې امید وه چې د غونډۍ پرسر به وي، له هرګام سره یې د زړه درزا زیاتیدله.

ربیعه په یوه کمره کیناسته او تر ډیره ئې انجیلا څارله او چې هغه یې له سترګو پناه شوه لاندې په ښکلې او زړه راښکونکې درې یې سترګې ښخې کړې، ناڅاپه یې خپل ښې لاس ته په یوه سپاره نظر ونښت، آس په خپله خوښه ورو ورو روان ؤ ، او سپاره په عربي ژبه په لوړ آواز یوه سندره ویله، د سپاره سپینه چپنه یې چې ولیده د ربیعې د زړه درزا زیاته شوه، او له یوې شیبې سوچ وروسته یې د درې لاره ونیوله، دې اندیښنه درلوده چې که سپور د ویالې نه وړاندې ونه وینې بیایې نشي راګیر کولې، نو له لږ شیبې عادي تګ وروسته یې په ونو کې په منډو پیل وکړ، ویالې ته ورسیده او د یوه پاڼ په سر غلې ودریده، د سپاره د غږ په ورنږدې کیدو یې د زړه ټکانونه زیاتیدل، کله چې سپور ډیر ورنژدې شو، نوریې غوښتل چې دونو له منځه را ووزي او د ګودر پر سر ودریږي، خو همت یې ورسره ملګرتیا ونه کړه، دې سرد ونو له تنو نه ورو ونیست ګودر ته یې وکتل سپور بدر بن مغیره ؤ او پرسر یې د خول پرځای سپینه لونګۍ وه، سره له دې چې د سرحدي عقاب هغې ته پام نه ؤ دې له یوه نظر نه زیات هغه ونه لیدای شو، له حیا ، اندیښنې او هیبته یې تریوې شیبې پورې هیڅ پریکړه ونکړای شوه، خو کله چې هغه تیر شو د خپل مسئولیته په ترسره کولو کې یې خپلې ناتوانۍ ته پام شو، په زړه کې یې له ځان سره وویل : ښایي داسې موکه بیا

شوه، او له منډو سره یې غږ هم اوچت شو چیغې یې کړې : ودرېږه !

سپور ودرید شاته یې راوکتل او د آس قبضه یې راکش کړه.

د ربیعې څیره له حیانه سره خوټیده او یو ځل بیا یې پښې په ځمکه کې میخ شوې.

بدر حیران شو وېې ویل : ته ... یوازې یې !

ربیعې سمدستي څه ځواب ورنکړای شو ، بدر خپله نیزه په ځمکه ښخه کړه له اس نه راښکته شو له لږې چوپتیا وروسته یې وویل : ته پرېشانه ښکارې ماته دې غږ کاوه ؟

ربیعې زړه نا زړه سر پورته کړ هغه ته یې وکتل او دبدر په موسکا کې یې اندیښنه، همدردي او مینه احساس کړل ورو ورو ورنژدې شوه او په غریو نیولي غږ یې وویل : زه تاته څه ویل غواړم.

بدر : ووایه !

بدر د لومړي ځل لپاره هغې ته په ځیر وکتل، هغه د روغتیا،حسن، ځواني او سپیځلتیا تیاره مجسمه وه، په مخ کې یې د حیا سرې او سپینې څپې په بدر بن مغیره اغیزه وکړه،

بدر بن مغیره بیا وویل : تا ماته څه ویل ؟

د ربیعې په سترګو کې چې د محبت او اطاعت سمندر تم ؤ ورو ورو پورته شوې وېې ویل : زه له انجیلا سره قدم وهلو ته راوتلې یم، هغه په دې غونډۍ ختلې ده،

بدر وویل : ته اندیښنه مه کوه هغې ته دلته هیڅ خطر نشته،

ربیعه : زه د هغې په وجه پرېشانه نه یم، زه تاته دا وایم چې ستاسو دا کلا سرحد ته ډیره نژدې ده، که نصرانیان خبر شي چې دلته لږ کسان اوسي

بدر : ته زما په باب چرت مه وهه ما څو ځلی نصرانیانو ته درس ورکړی.

ربیعه : بیا هم په دې کلا کې له دومره لږو سپاهیانو سره اوسیدل له خطره خالي نه دی، ستا ژوند قیمتي دی زموږ نوکر ولاړ هغه نصرانیانو ته ونه وایي چې ته د ځنګل پرځای په دی کلا کې اوسیږې.

بدر : ستا پلار خو ماته وویل چې دی ډیر با اعتماده سړی دی.

ربیعه پریشانه شوه ویې ویل : زما پلار ډیر خوش باوره دی، امکان لري زموږ نوکر په لاره کې ونیول شي یا تر تهدید او یا طمعې لاندې راشی او ټول راز ووایي : په داسې حالاتو کې احتیاط په کار دی.

د ربیعی په لهجه کې تر نصیحت هیله زیاته وه، د یوی مسلمانی نجلی اندیښنه او خواخوږی د بدر د هیلی پرخلاف نه وه، هغه ربیعی ته تسلې ورکړه ویې ویل : دا کلا د غرناطی په حدودو کی ده او ترڅو چی نصرانیانو له غرناطی سره د جګړې اعلان نه وی کړی دلته حمله نه کوی، که دوی په دی هم خبر شی چی زه کله کله دلته اوسیږم نو دوی به د سمدستی یرغل اشتباه نه کوی که ستا د ځان په باب اندیښنه وی هم زه په یقین درته وایم چی د هسپانیی د مسلمانانو وینی لا دومره نه دی سړې شوې چې د خپلو میلمنو ساتنه ونکړای شی، ترڅو تاسو غرناطی ته نه وی تللی زما پوځیان به مو ساتنه کوی.

ربیعه خفه شوه ویې ویل : تا پرما غلط ګومان وکړ، زه د ځان په باب هیڅ اندیښنه نه لرم، زما سره یوازی ستا اندیښنه ده، یوازی زه نه بلکی د قسطلې او ټول اندلس هره پیغله د سرحدی شاهین د سلامتی دعا کوی، ته ددی بدبخته اولس وروستی تکیه یی، د هغی غر په ستونی کې بند شو او په لیمو کی ئی اوښکې وځلیدی.

پرخلاف نه ده، دوی به په هیڅ لحاظ هم ما ویده ونه ګوري، دا کلا دومره په خطر کې نه ده لکه ته یې چې خیال کوې.

ربیعی له لږ ځنډ وروسته وویل : ته په خوبونو باور لرې؟

بدر : هو زه د ځینو خوبونو پر حقیقت باور لرم ، ما په وړوکتوب کې د خپل پلار په باب یو خوب لیدلی ؤ چې رښتیا شو خو له هغه وروسته ما د خپل خوب تعبیر په توره لیکلی دی، که تا زما په باب هم څه خوب لیدلی وی نو زه به ئې د تعبیر لپاره په خپله توره بروسه کوم.

ربیعه هیله منه شوه ویې ویل : زما ستا په توره باور دی د اندلس هر مسلمان ستا په توره باوری دی، او ما چې کوم خوب لیدلی دی د هغې تعبیر یوازې ستا توره ورکولی شی ما په خوب کې لیدلی چې دښمنانو ستا په کلا یرغل راوړی وی ستا د سپاهیانو په پرتله د هغوی شمیر ډیر زیات وی ما د شپې په تیاره کې د کلا د ننه او بهر ویرونکی کریږې او ریدلې داسې مې محسوسوله چې هغوی د کلا دیوال سوری کړی او دننه راغلی دی، له ویرې می سترګې وغړیدی، کیدای شی دا خوب زما د پریشانه خیالونو نتیجه وي، خو تا ته مې له ویلو پرته زړه نشو په کراریدای.

بدر بن مغیره وویل : زه ستا شکریه ادا کوم، که ستا خوب رښتیا شونو انشا الله ته به بیا په کلا کې دننه د چیغو پرځای له کلا نه بهر فریادونه واوری.

ربیعی ورو « آمین » وویل او غمجنه ځیره یې په خوښۍ وځلیده.

بدر بن مغیره وویل : ددې خوب د تعبیر لپاره ښایی څو ورځې دلته پاتې شې، زه به ستا پلار ته ووایم چې څو ورځې په خپل سفر ځنډولو رضا شی.

ربیعی په زړه کې، د خوښۍ درزا احساس کړه او له ځانه سره یې وویل :

مه وایه.

بدر : ښایي تاته د تسلي لپاره الفاظ کافي نه وي، دایې وویل بیا یې یوی او بلي خواته وکتل او خو شپیلی یې ووهل په څواب کې یې شاوخوا له ګڼو ونو نه څو تنه سپاهیان راووتل او تر دوی راچاپیر شول.

بدر یوه ته مخاطب شو ویې ویل : سلیمانه ته همدا اوس ځنګل لوري ته ولاړ شه، زه نن د ماښام نه وړاندې د خپل پوځ نیمایي برخه ددي غره شاته راټولول غوارم د کلا د سپاهیانو نه هیڅوك هم باید له هغې نه خبر نه شي.

د بدر بن مغیره په اشاره سپاهیان چې څه وړ راوتلي وو هغسې سمدستي بیرته په ونو کې پټ شول، هغه په موسکا ربیعی ته وکتل او ویې ویل : اوس به داده وې! تر څو ته دلته یې زما نیمایي پوځ به پردې کلا پهره کوي.

ربیعه ناڅاپي وروړاندې شوه د هغه د اس جلب یې ونیو او ویې ویل : د خدای «ج» په خاطر داسې مه انګیره چې زما سره د ځان ویره ده، زما سره پوازې ستا اندیښنه ده، ته د قوم شتمني یې، ته د اندلس د خلکو د ژوند سرمایه یې. کاشکې ما ته د خوب د اندیښنې پرځای په بل څه پوهولی شوای، کاشکې زه د هغو سرښندویانو نه یو وای چې ستا په دروازه پهره کوي خو زه یوه خیال پالونکې او وهمي نجلۍ یم چې ستاله پاره له ما سره د دعا او خوږ ونو نه پرته هیڅ نشته، د ربیعی آواز کیناست او په سترګو کې یې اوښکې راوخوتیدې.

بدر بن مغیره تر ډیره دا پریکړه نه شوای کولی چې څه ورته ووایي. د بې پایه سادګي، عاجزي او انکسار سره د ربیعی په څیره کې یو داسې درونډ والي، جدیت او وقار ؤ چې په بدر یې اثر غورځاوه، هغه پښیمانه غوندې

(٤)

انجیلا چې ربیعه پریښوده او په غونډۍ وختله چې سرته وختله څو گامه وړاندې ئې بشیر ولید چې بیرته ښکته کیدو، بشیر ناڅاپي دې ته ور وکتل او ودرید، انجیلا ورو ورو ورنږدې شوه، بشیر ورته وویل : نن ته یوازې راغلې یې؟

انجیلا ځواب ورکړ : ربیعه هم راسره ده هغه لاندې پاتې شوه زه د غونډۍ سرته راختلم زما دا تمه نه وه چې ته به دلته یې، دغه لاره ډیره سخته او نیغه وه،

بشیر : په سړه لهجه ځواب ورکړ : تا ډیر همت وکړ چې دلته راوختلې هغې بیا ورته وویل : زه چې دلته راوختلم نور مې همت ځواب راکړ، دا مې نیکمرغي ده چې ته مې دلته ولیدې که درته زحمت نه وي نو تر څوکې راسره ولاړ شه،

بشیر بن حسن : درځه!

انجیلا : مننه ! زه ویریدم چې په بیرته راگرځیدو کې لاره ورکه نه کړم

بشیر په بې پروایي ځواب ورکړ : دا لاره دومره کږه وږه او پیچلې نه ده چې څوك یې ورکه کړي.

بشیر ډیر گړندی له انجیلا نه وړاندې روان ؤ ، او د ساه د سوځیدو له امله انجیلا سره له دې چې زړه یې غوښتل له هغه سره خبرې نشوای کولی، چې څوکې ته ورسیدل د انجیلا ساه ستومانه شوه، مخ یې په خولو لوند ؤ، بشیر بن حسن د یوه با کرداره او نیك خویه طبیب په څیر د ځوانۍ او حسن مجسمې ته یو ځل ترشا وروکتل او بیایي مخ وگرځاوه لاندې یې په شنه او سمسوره دره سترگې ښخې کړې.

انجیلا په دسمال خولې پاکې کړې او ساه یې لږ آرامه شوه ورته یې ویل :

بشیر : هغې ته تر اوسه پورې د دومره ستونزو ګاللو ضرورت نشته، انجیلا په یوه ډېره کیناسته ویې ویل : که دې اجازه وي یو څو شیبې دمه جوړوم زه ډېره ستومانه شوم،

بشیر ځواب ورکړ : ښېړه کوه خور به دې انتظار کوي.

انجیلا د خبرو د موضوع بدلولو هڅه وکړه ویې ویل : څومره ښکلې ده دغه ننداره ! ته هره ورځ دلته راځې؟

بشیر : هوکې ! خو دا نن هسې تصادفي له دې ځایه بېرته ستنیدم که نه زه هره ورځ تر هغه وړاندې څوکې پورې ځم.

انجیلا : دا تصادف ښایي ددې، لپاره ؤ چې تقدیر به زه ستا په لارښوونې دلته را رسولم.

بشیر : ته زما نه پرته هم دلته راتلای شوای.

انجیلا : نه نه ، زه رښتیا وایم، زما همت ځواب راکړی ؤ، مور بله ورځ روانیږو که ته نن نه وای نو ما به ددې څوکې دنه لیدو ارمان راسره وړی ؤ.

بشیر : دا خو دومره مهم ارمان نه ؤ چې تا به له ځانه سره وړ .

انجیلا : زه به دغه ښکلې منظره هیڅکله هم هیره نه کړم، ما اوریدلي چې د سرحدي شاهین په ځنګل کې ډیر ښکلي ځایونه دي.

بشیر : هو ! هغه سیمه ډیره ښکلې ده.

انجیلا : ښایي همدغه سبب وي چې تاسو ښارونو ته تلل نه خوښوی.

بشیر : انسان همیشه هغه ځای‌خوښوي چې ګټور کارېکې کولی شي.

انجیلا : زما په ګومان ته ددې غرونو او ځنګلونو پرځای په قسطله، قرطبه او اشبیلیه کې ډیر ګټور کار کولی شې، هلته به پاچا هان، والیان او امیران ستانه راضي وي. که ته بده نه منې نو زه خو وایم چې ته دلته هسې خپل جوهر او کمال ضایع کوی، پلار جان مې ویل چې که ته قسطلې ته

داسې نه وایې چې د عیسویانو نه کرکه لرې؟

بشیر : د یوه طبیب په حیث د هر انسان خدمت خپل فرض گڼم، خو د یوه مسلمان په حیث زما لومړنی مسئولیت دا دی چې له هغه چا سره ملگرتیا وکړم چې د اندلس د مسلمانانو د عزت او آزادی په خاطر جنگیږي، تاته انسانیت د قسطلې په دربارونو کې ښکاری چې هلته د مسلمانانو د غلامۍ زنځیرونه جوړیږي او ماته انسانیت په هغو جېرونو کې ښکاری چې اوسیدونکی ئې د نورو تر غلامۍ نه مرگ غوره بولي.

انجیلا غمجنه شوه ویې ویل : ستا دا باور دی چې زموږ د پاچا مقابله به تر ډیره وکړای شی؟

بشیر : مقابله یوازی د برې په امید نه کیږي، په ځینو حالاتو کې جگړه د کمزور لپاره فرض شی، زموږ باور دی چې ترڅو ژوندی یو څوك مو مړیان کولی نه شی، خیر اوس راځه ناوخته کیږي.

انجیلا وویل : زما په گومان که ته د قسطلې په شاهی دربار کې واوسی او پاچا خوښ وساتی هغه به پر مسلمانانو له یرغل نه وژغوری.

بشیر : آزادی په چاپلوسی نه، په وینو اخستل کیدای شی.

انجیلا وویل : د یوه طبیب په حیث به ته پاچا ته د چاپلوس نه، د یوه محسن په حیث معرفی شی.

بشیر لږ په تروشه لهجه ځواب ورکړ : موږ ته ستا سوله پاچا سره د احسان همدا یوه لاره پاتې ده او هغه دا چې له لاسه یې د ظلم توره واخلو، او کله چې هغه زموږ رحم او کرم ته محتاج شی موږ به د خپلو پلرونو په څیر هغه معاف کړو.

زه د خپل قوم د تلپاتې ژوند لپاره د یوه سپاهي ژوند له هغوی نه په

ونو کې تیریدل انجیلا ورګرځنده شوه چې ورنژدې شوه ویې ویل : زه نه پوهیدم چې ته به دومره خفه کیږې، خدای شاهد دی چې زه ستا دښمنه نه یم، ته چې هر څه کوې زما دعا ستا سره ملګرې ده ما وبخښه.

بشیر بن حسن مخ وروګرځاوه انجیلا ته یې وکتل ، د هغې له سترګو اوښکې بهیدې، ده ورته وویل : نادانې ته ژاړې!

هغې بیا وویل : ما وبخښه

بشیر : زه خو ستا د اوښکو په وجه نه پوهیږم! که د نصرانیانو لخوا د یوه فاتح د دوستی پیغام راکول غواړې نو زما ویره ده چې دغه ملغلرې به خوشې تویې شي، او که داددې لپاره وې چې ته زموږ هلې ځلې بې فایدې ګڼې هم د خوا خوږې دغه پیغام بې وخته دی او که ته دا ګومان کوې چې د بشیر بن حسن ژوند دومره قیمتي دی چې د مرګ او ژوند په دغه کشمکش کې باید له خپل اولس سره ملګرې نه شي بیا هم ستا ګومان غلط دی.

انجیلا تر احساساتو لاندې راغله ویې ویل : زه نه د مسلمانانو او نه دنصرانیانو او نه د دوی د پاچا هانو پروا لرم. زه یوازې ستا خیر غواړم، زه په دې افسوس کوم چې زما په خبرو خفه شوې، زه ناپوهه یم، ته زما خبرو ته اهمیت مه ورکوه.

د ربیعې غږ اوچت شو؛ انجیلا ! انجیلا !

انجیلا چوپه وه بشیر بن حسن ځواب ورکړ : ستا خور دلته ده.

بیا یې انجیلا ته وویل : راځه ! خور دې یارې وهي.

انجیلا د بشیر نه وړاندې روانه شوه، لږ څند ورروسته درې واړه د کلا په لورې روان شول.

له ویالې نه چې پورې وتل ابو داود یې مخې ته راغی هغه انجیلا او ربیعې ته وویل : تاسو تر دېرې وخندېدې!

# د ربیعې د خوب تعبیر

د جمعې د ورځې زیات وخت بدر بن مغیره او بشیر بن حسن له ابو داود سره په مجلس تیر کړ، د دوی له خبرو ابو داود داده شو چې دوی به شپه په کلا کې تیروي، خو له دوو ورځو راهیسی هغه حیران ؤ چې د کلا زیات سپاهیان ناڅاپه ورك شول.

ملسپینن چې کله ده له بدر او بشیر سره دودې خوړله ویې ویل : په کلا کې د سپاهیانو شمیر ډیر لږ پاتې دی، زما نظر خو دا دی چې کله تاسو دلته اوسیږی نو د ساتنی مو پوره خیال کوی.

بدر په بې پروائي ځواب ورکړ : موږ ه ځان د ساتنی لپاره هیڅکله هم د سپاهیانو ضرورت نه دی احساس کړی.

ابو داود : ستا په میرانه کی خبره نه شته، خو ددی کلا د ساتنی لپاره هم پوره شمیر سپاهیان ضروری دی، که د نصرانیانو لخوا د ناڅاپی یرغل ویره نه وی هم ته باید هوښیار وې.

بدر بن مغیره ځواب ورکړ : تاسو فکر مه کوی، د خطر په وخت کی به تاسو دلته پوره سپاهیان وګوری، په دی کلا کی زما هستوګنه هسی موقتی ده، سبا ته به تاسو غرناطی ته روان شی او زه به انشا الله خپلو غرونو او ځنګلونو ته ورځم.

ابو داود : نو په همدی خاطر دی پوځیان دری ورځی وړاندی استولی دی.

بدر : هو هغوی دلته بی کاره پراته وو.

له دی وروسته بیا په نورو چارو ډیری خبری وشوی.

سپاهي وویل : د پاچا ورور او د غرناطې د پوځ یو شمیر افسران له تا سره د لیدلو لپاره راغلي دي، او هغوی ستا هستوګنځي ته د تلو او ستا د انتظار پرځای نیغ همدلته را روان دي.

بدر : هغوی به له دې ځایه څومره لرې وي؟

سپاهي : اته میله به لرې وي، هغوی وویل چې د شپې ډوډۍ به له تاسره خوري.

بدر بن مغیره بشیر بن حسن ته وکتل وې ویل : تاسو د دوی د هستوګنې او ډوډۍ بندوبست وکړئ، زه یې ښه راغلاست ته مخې ته ورځم.

لږ څند وروسته چې بدر په اس سپور او چارګام له کلا ووت ابو داود ګړندي خپلې کوټې ته ولاړ، تر لږ څنډه په ژورو سوچونو کې ډوب شو او په کوټه کې یې قدم واهه، بیا یې دننه کوټې دروازه خلاصه کړه میریا ته ئې غږ کړ: لږ شیبه دلته راشه.

میریا له کرسۍ نه پورته شوه د ابو داود کوټې ته ورغله هغه زر دروازه بنده کړه، ربیعې او انجیلا یو بل ته وکتل ربیعې ورو وویل : انجیلا ! پلار جان له سهار راسې څه اندیښمن دی.

انجیلا په معنی دار نظر ربیعې ته وکتل ځواب ئې ورکړ : د هغه د اندیښنې سبب ښایي د سبا ورځې سخت سفر وي خو ربیعې ماته تر هغه نه ته زیاته پریشانه ښکاري، کله چې مونږ له قسطلې نه غرناطې ته روان وو ته ډیره خوښه او تازه وې، خو اوس داسې بریښي چې تاته تر غرناطې نه دغه شاړه کلا ښه در لګیږي.

ربیعه : زما له غرناطې سره مینه ده، زه په دې اندیښنه کې یم چې پلار جان سبا د غرناطې پرځای بلې خواته مخه نه کړي،

انجیلا : تا ته معلومه ده چې پلار جان د غرناطې د تګ اراده نه څنډوي، سرحدي شاهین نوی ګاډۍ هم زمونږ لپاره راغوښتی ده، ستا د

دا دی چې له دې ځایه د رخصت تصور وکړی څیره دې مړاوې شي.

رښتیا وایه ربیعي! له سرحدی شاهین سره دی مینه نه ده؟

ربیعه : انجیلا ! زه چیرته ویلی شم چی زه له هغه نفرت کوم خو زما او د هغه نړې‌بیلې دی، بدر بن مغیره د اندلس پر اسمان د ځوارلسمی سپوږمی ده، خو زه د هغو لکونو لیدونکو نه یوه یم چی د هغه له ځل بل تر اغیزی لاندی خامخا یم خو د هغه له اسمانه راکوزولو او د خپلی جونګړی زینت کولو خیال په زړه کی نشم راوستلی، بشیر بن حسن هم د اندلس د آسمان یو ځلاند ستوری دی. که ستا هوس یوازی د هغه تر لیدو او ننداری پوری وای نو ما څه غرض نه درلود، خو انجیلا ته دغه ستوری له اسمان نه راشکوی او د خپلی لمنې سینګار جوړول ئی غواړې، ته له هغه فاصلو نه سترګی پټوی چې ستا او د هغه ترمنځ دی، زه ستا سترګې درخلاصول خپل فرض ګنم.

د انجیلا ښکلی بنه مړ اوې شوه، په شونډو ئی غمجنه موسکا خپره شوه وبی ویل : د پخوانی بد سلوك سره سره زه اوس هم دا احساسوم چې په دی دنیا تر تا زیات زما بل خیرخواه نشته، خو بده مه ګنه ته یوه شاعره یی، ما هغه پر اسمان نه پردې ځمکه لیدلی دی او زه په دی ویلو نه شرمیږم چی خوښیږی مې. که ما هغه د خپلی لمنی زینت نه کړای شو هم زه به د هغه لمنی ته په لاس ور غځولو کی دوه زړی نه شم، ربیعې ما چی هغه لومړی ځل ولید زړه می ګواهی راکړه چی هغه یوازې زما دی، کله یی چې غړ زما له غوږو سره ټکر شو داسی می احساسوله چی زما غوږ ونه له دی غږ سره بلد دی، ترڅو چی زما سترګې هغه لیدای شی او غوږونه مې د هغه غږ اوریدای شی زړه به می همدا وایی چی هغه زما دی، هغه زما دی، ربیعی رښتیا ووایه ته د بدر بن مغیره په باب همدغسی احساس نه لرې چې هغه یو میړه دی او ته ښځه یی؟

ربیعې وویل : فرض کړه که نن د قسطلې او غرناطې ترمنځ جګړه ونښلي نو ستا او بشیر بن حسن ترمنځ به تولې لارې ونه ړلې شي؟

انجیلا : کېدای شي د لنډ مهال لپاره ز موږ ترمنځ تولې لارې بندې شي، خو ددې جګړې نتیجه به له دې پرته بل ، څه وي چې په ټول اندلس به عیسویان قبضه وکړي او زموږ ترمنځ به پاتې ، دیوالونه راپرېوزي.

ربیعي وویل : انجیلا ! ته ګومان کوې چې بشیر بن حسن غونډې سپاهي به د خپل قوم له بربادۍ او ماتې وروسته ل تا سره د مینې لپاره ژوندی پاتې وي؟

د انجیلا په څېره د خفګان نښې جوړې شوې، له لږ چوپتیا وروسته یې وویل : ربیعې ! فرض کړه که حالاتو هغه قسطلې ته په تګ مجبور کړ او هغه ته د ژوند د پاتې شپو ورځو تیرولو له پاره له دې پرته بله لاره نه وي نو آیا بیا به هم زما او د هغه ترمنځ د نفرت دیوالونه ولاړ وي؟!

ربیعې ځواب ورکړ : دا په دې پورې مربوطه ده چې قسطلې ته پر تګ هغه په څه مجبور شوی دی، د یوه بندي په حیث به هغه د دښمن قوم د یوې نجلۍ په سپارښت خلاصون او د ذلت نه ډک ژوند په هیڅ صورت هم نه مني، البته د یوه فاتح په حیث بنایي هغه ستا د مینې زنځیر ومني، خو دا تا څنګه احساس کړه چې حالات به هغه قسطلې ته په تګ مجبور کړي؟!

انجیلا پر خپله اندیښنه د پردې اچولو هڅه وکړه ویې ویل : د یوه ګل سم ځای بڼ دی، بنایي هغه پخپله دیر وخت په دې بیدیا کې اوسیدل ونه غواړي.

ربیعې څه ویل غوښتل چې د یلې کوټې دروازه بیرته شوه او ابو داود او میریا کوټې ته ورننوتل، د ابو داود په لاس کې دوه بلې شمې وې، او کله یې چې د دوارو ګرکیو مخې ته شمې کیښودې ربیعې په معصومانه لهجه وویل : بلار جانه په کوټه کې د فانوس ښه رڼا ده شمو بلولو ته څه ضرورت

ابو داود : نه د تازه هوا لپاره کړکی خلاصی پرېښودل ضروری دی، بیایی میریا ته وکتل او ویی ویل : که دا مړې شوې زر تر زره یې بیا بلې کړی، زما په کوټه کی نورې شمې هم شته که دا خلاصی شوی نوری راوړی او په همدی ځای یی بل کړی.

ابو داود دا وویل او له کوټې نه ووت.

* * * * *

(۲)

د ماسخوتن د لمانځه په وخت بدر بن مغیره د غرناطی د پاچا له ورور الزغل او د دوو لویو پوځی افسرانو موسی او الزیغری سره یو ځای کلا ته ننوت، د غرناطی پنځلس تنه سپاهیان او معمولی افسران هم ورسره وو،

دغه وخت موذن د ماسخوتن د لمانځه آذان کاوه او دوی له جومات سره له اسوتو نه پلي شول۔

او جومات ته ننوتل، بشیر بن حسن د جومات په دروازه کی ورسره ستړی مشی وکړل، الزغل له بشیر بن حسن سره تاوده ستړی مشی وکړل او ابو داود ته ئی وکتل بدر بن مغیره وویل : دا ابو داود دی ما په لاره کی دده په باب تاسو ته یادونه کړی وه،

الزغل ابو داود ته د مصافحی لاس ورروغځاوه ویی ویل : بدر ستا ډیری ښیګړی یادې کړې، خو زما په نظر ستا تر ټولو ستر کمال دا دی چې زموږ سرحدی شاهین درته عقیدت لری.

ابو داود مسکی شو ویی ویل : زما ترټولو ستره ښیګڼه دا ده چی د یوه ډیر شریف او سخی ځوان میلمه یم، چی د یوه بی کسه میلمه ستاینه یی هم د میلمه د خدمت په مسئولیت کی ګڼلی ده، هغه پیښه چې ماته یی د سرحدی شاهین سره د خو شپو ورځو تیرولو فرصت را په برخه کی زما د

الزغل له هغو نیک خصلته انسانانو نه ؤ چې له چاپلوسی نه یې کرکه کوله خو د ابود داود لهجې او خبرو په هغه اغیزه وکړه د خپل لاس ور ټولولو هڅه یې ونه کړه، ابو داود په ډیرو تودو احساساتو د هغه لاس ښکل کړ، له دې سره یو ځای د وخت له ضرورت سره سم دوې څاڅکی تودې اوښکې د هغه له سترګونه د الزغل په لاسو ورو څڅیدې.

نژدې د همدغسې احساساتو په بدرګه ابو داود له موسی او الـزیغرې سره معرفي شو، ټول بیا جومات ته ننوتل ، امامت ابو داود وکړ، له لمانځه نه وروسته چې کله دوی په یوه بالاخانه کې پر ډوډی خوړلو بوخت شول ابو داود پر هغوی د خپل اغیزی اچولو لپاره په دماغ او ژبه زور واچاوه او خپل ټول استعداد یې په کار واچاوه، الزغل چې پخپله هم په ډیرو علومو کې د غیرمعمولی استعداد او پوهې خاوند ؤ د ابو داود له علمي پانګې نه زیات تر اغیز لاندې راغی، او کله چې هغه د قسطلې د ظالم حکومت پرخلاف د خپلو پټو فعالیتونو یادونه و کړه نو الزغل وویل : د خدای «ج» احسان دی چې تا د خپل فعالیت لپاره داسې ځای ټاکلی چې هلته تاته زیات ضرورت دی، په غرناطه کې تاسو له مورږ سره ډیر څه کولی شی، بدر بن مغیره چې ستا په باب ماته څه ویلي دي زه پوه شوم چې ته د ځوانانو جلبولو په چل پوهیږی، په غرناطه کې به زه یو داسې ځوان تاته وسپارم چې سمې لارې ته راوستل ئې د اندلس د لاسه وتلې پاچاهې د بیا ترلاسه کولو نه کم نه دی زما مطلب د غرناطې د ولیعهد، زما ورا ره عبدالله دی، هغه ډیر زیات بیړنی، چاپلوسی خوښوونکی، پرځان مین، ویرېدونکی او وهمی دی د هغه تر جوړولو ورا نو ل زیات خوښیږی، که هغه ته اصلاح کړای شی نو دا به د قوم ډیر لوی خدمت وی.

ابو داود د خپلې خوښې د پټولو هڅه وکړه ځواب ئې ورکړ: د غرناطې د

ابو داود : انشا الله موږ سباته روانیږو .

الزغل : نو چې تاسو کله ورسیږئ زه هم در رسیږم.

زما ورور به ستاسو په شان سړی د خپل زوي د استاد په حیث ومنی او څه اعتراض پرې نه لرئ، خو ابو عبدالله ته دا مه وایئ چې دغه مسئولیت تا زما په ویلو منلی، هغه زما په هر څه شك کوي.

ابو داود : تاسو بیغمه اوسئ.

له دې وروسته الزغل ، موسی او الزیغری له ابو داود نه د قسطلی د پوځې تیارۍ په اړه پوښتنې کولې، او هغه د حقایقو پرځای د دوی د خوښې سره سم ځوابونه ورکول، نژدې نیمه شپه چې کله دوی دجګیدلو اراده وکړه د کلا څلورو خواو ته نغارې پورته شوې، دوی پریشانه شول یو بل ته ئې وکتل، الزغل په سوالیه نظر بدر ته وکتل، او د نورو خلکو سترګې هم د هغه په څېره ونښتې ، د بدر په څېره کې د حیرانۍ او اندیښنې څرك نه ؤ ویې ویل : تاسو مه ویریږئ او بیا په داډه زړه له ځایه اوچت شو، ویې ویل: زه اوس حالات معلوموم ، بشیر هم جګ شو خو هغه ورته وویل :.ته له میلمنو سره پاتې شه زه سمدستي بیرته راګرځم. بدر بن مغیره چې دروازې ته ورسید یو پهره دار په منډه راغی او لنده لنده ساه یې وکاږله ویې ویل : نصرانیانو حمله کړې ده له دې سره تول اوچت شول توری یې وکښلې خو بدر بن مغیره دوی ته مخ واړاوه ویې ویل : نصرانیانو به په تیرو شلو کلونو کې دومره لوی حماقت نه وي کړی، تاسو بې غمه کښینئ، د شپې مهال د دوی ډیر لوی لښکر هم دکلا خواته نژدې نشي راتلای، زه به ښایی په خپل تیر تول ژوند کې هم دومره د-دوی د ناځاپي حملې لپاره تیار نه وم،

ابو داود وویل : په کلا کې خو ما نن له شل پنځه ویشت سپاهیانونه زیات نه دي لیدلي.

یوازې د کلا ساتونکو ته یو څو ضروری هدایات ورکوم.

الزغل داده شو ویی ویل : نو تا ددی حملی ئمه درلوده؟

پردی پوښتنه ابو داود ټکان وخوړ بدر ته ئی وکتل ، بدر ځواب ورکړ : ماته د تقدیر لخوا یوه اشاره وشوه او د خدای «ج» فضل دی ما هغه یو وهم او خیال ونه باله.

بشیر بن حسن له بدر سره د تلو ټینګار وکړ خو هغه ورته وویل : زما زیات سپاهیان یوازې په دی د غشو باران ته دریدلی شی چی ته د هغوی د ټپونو علاج کوی، ته همدلته اوسه او د زخمیانو د زخمونو د پټی سامان چمتو کړه.

بدر بهر ته ووت، له یو ساعت وروسته بیرته راغلی او ویی ویل : تاسو که غواړی داده ویده کیدای شی، نصرانیان له کلا نه دوه میله لری چی له مقابلی سره مخ شول د تیښتي هڅه یی وکړه، خو که له هغی نه لس تنه په تیښته بریالی شی هم معجزه به وی.

ما تاسو ددی فتحی په ویاړ کی له ګډون نه نه ایسارولی، خو د سپیده چاود نه وراندی ستاسو بهر وتل مناسب نه دی د سهار په رڼا کی به تاسو هم د بندیانو په راغونډولو او تښتیدونکو پوځیانو پر غشو ویشتلو کی زما له سپاهیانو سره ملګری وکړی.

بدر بن مغیره بیا ابو داود ته وکتل ویی ویل : ته خپلی کوټی ته ولاړ شه او بهر ته خلاصی کړکی بندی کړه، او یا ټولی شمی مړی کړه.

نجونو ته ووایه چی د کړکې په مخ کی نه دریږی، پهره دارانو وویل چی د حمله کوونکو یوه وارخطا ډلګی کلا ته نژدی لیدل شوی، که څه هم له هغوی نه په کلا کی څه خطر نشته خو دا اندیښنه شته چی که هغوی رڼا ووینی غشی به پرې ورلی.

ابو داود لږ وړاندې ولاړ په اندیښنه کې شو او سمدستي یې پښې ورو شوې د بدر بن مغیره له خبرونه یې پردې باور شو چې دده راغوښتي لښکر له تباهي سره مخ دی، ځکه خو یې د شمې بلول او نه بلول بې معنی بلل، له دې سره یې په زړه کې اندیښنه ور پیدا شوه چې له یرغل کوونکو سره دده نوکر نه وي چې ده د سرحد والي ته د استازي په توګه استولی ؤ، ظاهراً ددې کار امکان ډېر لږ ؤ بیا هم د تشویش وړ وه خو دې تر دې هم زیات پر دې اندیښمن ؤ چې د یرغل کوونکي لښکر مشر نیول شوی نه وي، او د بدر بن مغیره په مخکې د ابو داود رازونه افشا نه کړي.

په دې وخت کې هغه ځان ته دا تسلې ورکوله چې د سرحدي شاهین والي دی د فردیناند ځانګړی سړی بولي او د راز له افشا نه به ئې ډډه وکړي.

هغه ته په هر ګام نوې نوې اندیښنې رامخې ته کېدې، او بیا به یې بیرته ځان ته تسلې ورکوله، کوټې ته نژدې یو نوی خیال ور پیدا شو او په بدن یې لږ زه راغله، آیا دا امکان نه لري چې د سرجد والي د شهرت او نومیالي توب په خاطر پخپله د حملې مشري کړې وي او کله چې ژوندی ونیول شي د الزغل او بدر په وړاندې اعتراف وکړي چې ستاسو مجرم زه نه ابو داود دی، چې ماته یې پر کلا د یرغل بلنه راکړې ده.

هغه په ډېره پریشاني د خپلې دفاع سوچونه کول چې ناڅاپه یې کمزورې چیغه واورېده، هغه په بیړه د کوټې دروازه خلاصه کړه او ور ننوت، له بلې کوټې نه د یوې بلې چیغې سره سم څوك په ځمکه ولوېدل، په دې ځنډ کې هغه کوټې ته ور ورسید یوه شیبه یې سترګې توري او وینې یې په رګونو کې ودرېدلې، انجیلا او میریا په غولي بې سده پرتې وې، د انجیلا په ټټر کې یو غشی ښخ و، ربیعه بې حرکته ورته ولاړه وه، ابو داود په ډېره پریشاني ربیعي ته وکتل، هغه په واخطابي کړکۍ ته اشاره وکړه، ابو داود

ددې په لويدو بې سده شوه، انجيلا د کړکۍ له مخې تيريدله چې له بهرنه چاپه غشي وويشتله لږ زر کوه د انجيلا وينه بهيږي.

ابو داود جګ شو او په بيړه بهر ته ووت.

*****

(٤)

لږ څند وروسته له ابو داود سره بدر بن مغيره او بشير بن حسن کوټې ته راننوتل، بشير انجيلا او ميريا ته له سرسري نظر وروسته دواړې په خپلو خپلو بسترو واچولې، په دې څند کې د هغوی يوه نوکر دوا او ضروري د طبابت سامان راوړ بشير خپله کڅوړه خلاصه کړه، يو بوتل يې را ويوست، څو څاڅکي يې په يوه دسمال وڅڅول ابو داود ته يې ونيو ورته وويل : دوادې ميرمن ته ور بوی کړه، په هوښ به يې راولې، له دې نه وروسته يې انجيلا ته پام واړاوه، هغې په رنورنو سترګو ده ته کتل، بشير بن حسن د زخم له ليدو وروسته غشي ته لاس ور وغځاوه، انجيلا په دواړو لاسونو دده لاس ونيو او په چيغو يې وويل : نه نه !

بشير بن حسن وويل : څومره چې دغه غشی وځنډيږي هومره به ته زيات په زحمت شې، ته مه ويريږه ، لاس مې مه نيسه کنه نو زه به د بيهوشي دوا درکړم.

بشير بن حسن خپلوملګرو ته اشاره وکړه.

انجيلا ووې: نه نه لاس او پښې مې مه نيسئ، زه هيڅ نه کوم.

بشير وويل : ما مخکې هم دا ګومان کاوه چې ته زړه وره نجلۍ يې يوازې يوه شيبه سترګې پټې کړه، ويريږه مه.

خو انجيلا ډېرد عقيدت او اطاعت په نظر د هغه په ځيره سترګې ښخې کړې، بشير بن حسن بيا غشي ته لاس ور اوږد کړ هغې دا ځل هيڅ

کړې او بیا یې بیرته وغړولې، او په یوه چیغه په خپله بستره کې کښیناسته، د انجیلا په لوري یې ورمنډه کړه ویې ویل : زما لورې ! زما انجیلا ! انجیلا ته ښه یې که نه ! زما لور به روغه شي! ووایې ! د خدای «ج» لپاره راته ووایې ! هغې د لیونو په څیر د بشیر بن حسن متې نیولې وې او په زوره زوره یې خوځولې.

میریا بیا هغه پریښود او بدر بن مغیره ته یې پام شو ویې ویل : د خدای «ج» په خاطر زما د لور ژوند وژغورې.

ابو داود راوړاندې شو میریا یې ترمټ ونیوله، په زور یې بسترې ته کش کړه ویې ویل : میریا لیونۍ کیږه مه، له صبر نه کار واخله! انجیلا به ډیره زر روغه شي زخم ډیر معمولي دی، میریا چیغې کړې، ستا په سینه کې د زړه پرځای کاڼی دی، انجیلا که مري که پایي ستا یې پرې څه! ستا خو د غرناطې ...؟

میریا د غرناطې له نامه سره ژبه ونیوه، ابو داود احساس کړه چې د تقدیر لاس د هغه تر مړه‌پورې ور ورسید او بیا ودرید، هغه سر ترپایه هیله او ستمه شو او میریا ته یې کتل، د میریا لیمو هم دا څرګندوله چې په دې خطرناکه موضوع نور څه ویل نه غواړي، ابو داود بیا په لوړ آواز وویل : هو کې ! له ماسره د غرناطې غم دی، د داسې وحشیانو له یرغل نه د غرناطې ژغورل د هر مسلمان فرض دی، چې په نجونو د غشو ویشتلو نه هم نه شرمیږي، او د انجیلا زخمي کیدل زما د غرناطې له تګ سره هیڅ اړه نلري.

تا ته باید معلومه وای چې له بهرنه دیرغل ویره وی کړکی باید پورې وې، او ستا له لاسه دا هم پوره نه شوه چې انجیلا له کړکۍ نه لرې کړې، ربیعی ته خو هوښیاره نجلۍ یې تا به انجیلا له کړکۍ نه منعه کړې وې؟

نه وه، هغه په ویروونکو سترګو ویل چې لا تر اوسه زما خبره پای ته نده رسیدلې، زه یوازې د ډګر د خالي کیدو انتظار کوم په کومه څیرکۍ او دقت چې بشیر بن حسن د انجیلا پر زخمونو پټۍ تړلې تر هغې نه په زیات ژور نظر ابو داود میریا ته کتل.

بدر بن مغیره په دې څند کې څو څلې، ربیعی ته وکتل، هغه تر اوسه پورې په وارخطایی د انجیلا د بسترې خواته ولاړه وه، هغه د انجیلا تر زخمي کیدو زیاته دې ته حیرانه وه چې د نصرانیانو د ناڅاپي حملې سره سره د بدر بن مغیره او بشیر بن حسن په څیره کې د اندیښنې او پریشانی نخښنې نشته، هغې زړه نازړه او په ویره ویره وپوښتل: داسې ښکاري چې دا کلا د دښمن تر یرغل لاندې راغلې؟

بدر بن مغیره پخپله هم له هغې سره خبرو اترو ته ناکرار ؤ د ربیعی غږ یې پام ور واړاوه او په تسلي ډوله غږ یې وویل : داسې ښکاري چې د دښمن کوم تښتیدلی سپاهي د شپې په تیارو کې دلته رسیدلی او چې په خپل مرګ یې باور راغلی نو دې خواته یې غشی راویشتلی، که هغه تر اوسه وژل شوی نه وي نو ضرور به نیول شوی وي، لږ دوخته ماته خبر راغی چې د دښمن یوه ډلګی سپاره کلا ته نژدې لیدل شوي دي، کیدای شي له همغوی نه کوم یو وي.

زه ستا د خور په ټپي کیدو افسوس کوم، که له مانه لږ تنبلي نه وای شوې او ستا سو د کوټې کړکۍ مې دریاندې بندې کړې وای نو دا پیښه به نه پیښیدله، او کښینه مه ویریږه، ستا خور به هم ډیر زر روغه شي ربیعه څوګامه شاته شوه او په خپله بستره کیناستله، بدر بشیر ته وویل : زه به میلمنو ته لږ تسلي ورکړم بیا به راشم.

بشیر هم وویل : زه هم نور خوشې یم، دې ته اوس یوازې دوا ورڅښل

که اجازه وی د پاچا د ورور په وړاندی يی نوم واخلم!

ربيعه وويريده يو ځل يی په ډيره وارخطايی د کوټی هغی برخې ته چې مور، پلار، او خور يی وو وکتل او بيا يې په هيله من نظر بدر ته وکتل او په خپ غږ يی وويل : نه نه ! ذ خدای «ج» لپاره نه ! بيايی خپل پلار ته وکتل چې له دنيا او مافيها نه بی خبره يی ميريا ته داسی کتل له مار چی خپل ښکار ته گوری.

بدر وويل : نو زه بايد الزغل ته دروغ induvidual ووايم، زه به ددی ناڅاپه تياری لپاره کوم دليل جوړوم.

ربيعی لږ له جرئت نه کار واخست سترگی يې پورته کړې او له خولې نه يی ناڅاپه ووتل : زما خوب يوازې ستا لپاره ؤ.

په همدی يوه جمله کی ربيعی هغه ټول رنگين داستان واوراوه چی د ژوند له پيله يی تر ننه د حوا لوراني د آدم (ع) زامنو ته اوروی، د ويلو په وخت کې يی ددی الفاظو ژوږ والی ته پام نه شو خو د زړه نرمو او خوږو ټکانونو هغه زر پوه کړه چی يو لوړ ټوپ يی وهلی دی. د هغی سترگې ټيټی شوی او څيره يی له حيانه تکه سره شوه.

بدر تللی ؤ، خو دی داسی احساسوله چی هغه تر اوسه همالته ولاړ دی او دی ته گوري، يوازی هغه نه بلکی کوټه ټوله دی ته گوري، په خپلو گوتو کی يی يو ډول لړزه احساس کړه له ځايه جگه شوه او د انجيلا د بستری ترڅنگ ودريده.

بشير بن حسن او د هغه نوکر بهرته روان شول، ابو داود وويل : ودرېږی زه هم درسره ځم.

بشير وويل : نه ته آرام وکړه،

ابو داود : نه اوس سهار کيږي، بدر وويل چی سهار به حمله کوو که څه

ابو داود وویل : لږ به د الزغل په مجلس کی کښینم د داسی خلکو مجلس هر وخت نه په نصیب کیږی.

اصلاً ابو داود د خپلی میرمنی د قهر جن نظر نه ځان ژغورلو، دی پوهیدلو چی هغه د کوټی د خلوت کیدو په انتظار ده، او بیا به د قسطلی په عام فهمه ژبه د غشو باران د تم کیدونه وی، میریا د نظر جال اچولی ؤ خو چې هغه جگ شو او روان شو نو دې وویل : ته د انجیلا د زخمونو پروا هم نه کوی؟ هغه له زخمونو نه زگیری کوی او ته د چکر شوق په مخه کړی یی.

انجیلا هم د خپلی مور په طبیعت پوهیدله، هغی هم ددی په سترگو کی د راتلونکی توپان لومړی نخښی لیدلی وی، هغی وویل : پلار جانه ! ته ولاړ شه زه اوس روغه یم.

ابو داود په داډ ساه وکښله ویی ویل : ربیعی لورې ته دننه خوانه د کوټی دروازې بندې کړه.

بشیر بن حسن وویل : د دروازو بندولو ته اړتیا نشته، په برنده کی ډیر سپاهیان گزمه کوی، زه به ورته ووایم که د دوی څه ته ضرورت وی دننه نه دی غږ وکړی، هو کړکی دی خامخا بندې کړی او داده اوسی چې د یرغل کوونکو کلا ته رارسیدل ممکن نه دی، هغوی ډیر وراندی درول شوي دی.

ابو داود چی ولاړ میریا ، ربیعی ته د وړی لیوه په خیر کتل، انجیلا ژر د وضعیته نزاکته پوه شوه، زگیروی یی وکړ ویی ویل : ربیعی سرمی چاپی کړه، سخت درد پرې راغی.

ربیعه ورجگه شوه سرته یی کښیناسته، میریا هم ور جگه شوه او د انجیلا په بستره کیناسته ویی ویل : زما لورې ! کوم ځای دې درد کوی؟ بیا یې ربیعه تر مټ ونیوله، تیل وهله یی او ویی ویل : ته ورځه!

ربیعه به په داسي الفاظو سمدستي نرمه شوه ویې ویل : مور جانې! آیا د انجیلا لپاره دعا هم له تا سره نیکی ده ؟ آیا انجیلا زما خور نه ده؟

میریا : ربیعي ته پرښته یې ، کښینه د خپلې خور سره دې، او بیا دا یوه څنګ ته شوه .

انجیلا وویل : مور جانې ته ویده شه

میریا : لور جانې ترڅو ته روغه نشې زه خوب چیرته کولې شم.

انجیلا : نه مورې ته ولاړه شه زه روغه یم.

میریا وویل ؛ زه پوهیږم چې ته دې له خور سره بیا یو نه ختمیدونکی داستان پیلوې.

ربیعي وویل : مور جانې ته ویده شه، هغوی ویل چې کلا ته هیڅ خطر نشته.

میریا جګه شوه په خپله بستره کیناستله ویې ویل : خدای دوکړي چې هغوی بیرته وګرځي که نه مور به له انجیلا سره په همدې حالت سفر ته مجبور شو.

ربیعي وویل : هغه ویل چې له یرغل کوونکو نه ښایي یو هم ژوندی بیرته ولاړ نه شي

میریا مایوسه شوه ویې پوښتل : چا ویل ؟

ربیعه : سرحدي عقاب چې له کوټې نه وت ویې ویل چې زه ستاسو د تسلې لپاره راغلی وم.

لږ څنډ وروسته میریا پرمخې په بستره وغځیدله، انجیلا په ټیټ آواز ربیعي ته وویل : ربیعي ستا باوردې چې دا کلا به نه فتحه کیږي!

ربیعي ځواب ورکړ : هوکې زما یقین دی .

انجیلا : ربیعي مور ښایي څو ورځې نور هم دلته پاتې شو.

انجیلا : ته په څه شي پوهیږې؟

ربیعه : تا زه د مور له غوسې نه ژغورلم.

انجیلا : د خدای «ج» شکر دی چې پلار جان بهر ته ولاړ که نه مور به آسمان پر چیغو پرسر اخیستی ؤ.

ربیعه : انجیلا له زخم نه به په تکلیف شوی وی؟

انجیلا : نه ! په کوم زخم چې د هغه د لاس پټې کیښودل شي هغه درد نه لري، ربیعې رښتیا وایه ته په دې خوشحاله نه یې چې سفر مو وځنډیږې؟

هغې ځواب ورکړ : زه ستا په زخمي کیدو خفه یم.

انجیلا : ایا ستا د ژوند ترټولو لویه هیله دا نه وه چې سبانۍ سفر مو وځنډیږي؟

ربیعه : دا ډیره بده هیله ده، زه چیرته دا امید کولی شم چې ته دې زخمي شې.

انجیلا له لږ سوچ وروسته ویل : کله چې هغه ستا د ټپونو د پټې لپاره راتلونو ما داسې ګڼله چې ته زما حق رانه اخلې، که رښتیا ووایم، زه په خپل ټپي کیدو هیڅ خفه نه یم، هغه نن ډیر پریشانه ؤ او زه له دې زیاته هیله بله نه لرم چې هغه دې زما لپاره اندیښمن شي، خو زه ویریږم چې زما زخمونه روغ شي د هغه اندیښنه به لري شي.

ربیعه : زما په ګومان به د هغه اندیښنه په علاقه بدله شي.

انجیلا : خو ته وایې چې ستا او د هغه لارې بیلې دي.

ربیعه : زه بیا داسې نه وایم.

انجیلا : ربیعې ما ته هغه وخت لیدلی چې سرحدی عقاب ورو ورو څه درته ویل ! ستا سترګې په څمکه ښخې وې، ستا څیره له حیا نه تکه سره خوټیدله.

ربیعه : هغه ویل چې د خدای احسان دی.ته به څو ورځی نوره هم دلته پاتی شی.
انجیلا په خندا شوه ویی ویل : دروغجنې!

*****

(٦)

الزغل، موسی او الزیغری چی سهار د بدر بن مغیره د جګړی نقشه ولیده حیران شول، له یرغل کوونکو نه ډیر لږ په تیښته بریالی شوي وو، د بدر غشی ویشتونکو یرغل کوونکی په ناوونو او کندونو کی را ایسار کړی وو
عیسویان به چی دیوی دری نه د غشو له باران نه وتښتیدل او بلی دری ته به ورسیدل لا به یی داده ساه نه وه اخستی چی بیا به پری د غشو باران شو، د سپیده چاود سره چی بدر بن مغیره له خپلو ملګرو سره له کلا نه ووت د کلا نغاره وکړنګیده او ورسره سم څلورو خواو ته په لسګونو نغاری وکړنګیدی، له شاوخوانه د اسونو د پښو ترپهار اوچت شو او د سترګو په رپ کې نژدې درې زره تنه پوځ د کلا په دروازه کی راټول شو.
الزغل وویل : که زما په جادو باور وای نو ما به ویل چې ته ترټولو لوی جادوګر یی، دا پوځ له کومه راغی!
بدر : دغه سپاره د شپی په مناسبو ځایونو کی غلی وو، دوی د شپی په جګړه کی برخه نه ده اخستی، د دوی کار به اوس پیلیږی، زما غشو ویشتونکو په مختلفو ځایونو کی یرغل کوونکی را ایسار کړی دی، او دا نیزه بازان به هغوی ټول یوځای ته راټول کړی.
ترماسپښین مهال پوری د بدر سپاهیانو د دښمن د پوځ اسیران ټول یوی دری ته راټول کړل، ابو داود همزغر ه او خولې پرسر کړی وو او له ځانه یی سپاهی جوړ کړی ؤ.

تر نظر تیر کړ، او بیا په اس سپور شو د نیزه بازانو په ډله ورګډ شو، د یوی دړې په ځنګل چې ورګډ شول ناڅاپه یې څو تنه سپاهیان ولیدل چې د بندیانو یوه ډله ترمخ کړیوه، هغه له خپلی ډلی نه بیل شو او آس یې د بندیانو په لور ور وځغلاوه، پرېندیانو یې چې نظر وزغلاوه د خپل خول نقاب یې لرې نور هم په ځیره راکوز کړ یو بندی دده کوچوان و، سپاهیانو چې دده د لاس اشاره ولیده ودریدل، هغه یو ځوان ته چې د ډلګی مشر ښکاریدو په خطاب کې وویل : ایا تاسو دا سړی د دښمن په ډله کې نیولی؟

هغه ځواب ورکړ : هوکې : دی په یوه ونه خوت او د پټیدو هڅه یې کوله.

ابو داود وویل : دا ډیر لوی ملعون دی، دایی ویل او له اس نه راکوز شو د اس جلب یې یوه سپاهی ته ورکړ او کوچوان ته ورنژدی شو ، په لوړ غږ یې وویل : ما دا ګومان نشو کولی چې زما خپل نوکر به دومره نمك حرام او منافق وی، ووایه ددی کلا په لوری تا د دښمن د پوځ لارښوونه نه کوله؟ ته زخمی وی، هغوی تا ته پنا ه درکړه، ستا علاج یې وکړ، او تا د دوی د نیکی بدله داسی ورکړه! اوس به ته په کومو سترګو ورسره مخامخ کیږی، تا خو زه هم وشرمولم.

کوچوان چې په خول کی د هغه ځیره نه پیژندله د هغه غږ یې واورید ویې پیژاند او هلك پك شو، دا غږ دده د بادار ؤ خو الفاظ او خبرې د بل چا وې ، بیا یې ناڅاپه دا په زړه ور وګرځیدل چې ښایی په دی کی به څه مصلحت وی، هغه په ویریدونکی غږ وویل : زما باداره ! ته پوهیږی چې زه بی ګناه یم زه...

هغه نور څه ویل غوښتل خو ابو داود په ډیر زور د توری ګوزار پری وکړ او د هغه سر یې له تنې والوزاوه

وېيژنې !

ځوان افسر ووېل : زه تا پېژنم، ته زموږ د امير ميلمه يې، زه دا هم احساسوم چې تا به دغه سړي په يوه معقوله وجه وژلي وي، خو هغه اوس يو بندي ؤ.

ابو داود ووېل : دا سړى له شل کالو راسې زما مزدور ؤ، زه د ډېر بد مصيبت په وخت کې قسطلې پرېښودلو ته اړ شوم ده موږ تعقيبولو خو سرحدي شاهين زموږ ژوند وژغوره، څو ورځې دې هم زموږ سره ميلمه ؤ، ما هغه خپل کورته رخصت کړ، خو ده د نصرانيانو د پوځ لارښوونه کوله او دلته يې راوستل، زه يې كه نيولى واى نو ډېر بخشش به يې يو څو درهمه ؤ چې ترلاسه کول به يې ، خو كه خداى «ج» ناخواسته تا سو يرغل ته تيار نه واى نو د هغه سړي ژوند هم په خطر کې ؤ چې د اندلس ورو ستي تكيه ده، كه دې عيسوي واى نو ما به نه وژلو، خو دا مسلمان ؤ، د داسې سړي لپاره د دنيا په هيڅ قانون کې د رحم تكى نشته، وراپى كه ستاسو څوك زما پرځاى واى له دې سړي سره به مو څه کول؟

ځوان افسر بې ځوابه شو ويې ويل : وبخښې ماته دانه وه معلومه چې دې مسلمان دي، بيشكه د داسې سړي سزا همدا ده، ابو داود له دې پوځيانو نه وړاندې بدر بن مغيره ته ورغى او د خپل نوكر د وژلو كيسه يې په داسې الفاظو ورته تيره كړه چې هغه يې په نيك نيتې باوري شو، خو چې كله بشير بن حسن دا كيسه واوريده تر لړ ځنډه له ځانه سره په كشمكش کې پاتې شو، بيا هم ابو داود پخپله له هغه سره دا كيسه راوچيړله او د هغه شکونه يې لرې کړل.

* * * * *

(۷)

دی، تاسو په کلا کی استراحت وکړی زه چې له خیره وزګار شم ستاسو خدمت ته به راشم، ددې ورو‌کی پروګرام لپاره ستا شخصیت ډیر لوی ګنم ځکه تا ته زحمت نه درکوم پر دی سربیره غرناطی تر اوسه د قسطلی پرخلاف د جګړې اعلان نه دی کړی، زه غواړم چی تاسو د تیاری لپاره زیات فرصت ولری، او دښمن په دی غلط فهمی کې وی چې د دوی جګړه سمدستی یوازی له موږ سره ده.

الزغل ورپل : ته په کوم ځای د حملی اراده لری؟

بدر ځواب ورکړ :ما کوم ځانګړی ځای نه دی ټاکلی ، ددښمن ګومان دا ؤ چی موږ به ویده وو موږ پردی باوری کړی چی بیدار یو، موږ په دی باور ؤ چی عملیاتو کی ښایی جګړه لږ خو سفر به ډیر وی، الزغل خپله چپنه او پګړی لرې کړل یوه سپاهی ته یی ورکړل او ویی ویل : ماته د یوه پوځې د جامو ضرورت دی، موږ به ټول له تا سره ځو، نن ورځ ته زموږ قوماندان یی، هغه ورځ راتلونکی ده چی ته د غرناطی بیرغ اوچت کړی، خو نن زه د سرحدی شاهین بیرغ اوچتوم، بدره! ویریږه مه، زه یوازی په حکم کولو نه پوهیږم، په حکم منلو هم پوهیږم.

موسی، الزیغری او د دوی نورو ملګرو هم د الزغل په څیرد بدر د پوځ دریشی واغوستی او له دوی سره تګ ته تیار شول.

لږ څنډ وروسته بدر بن مغیره له دری زره تنو سپرو سره له کلا نه ووت او خپل امتیازی نښان یی چی سپینه چپنه او سپینه پګړی‌وه له لری ځرګنده وه.

مابنام مهال د فردیناند د پاچاهی د سرحدی ښارونو او کلیو اوسیدونکی د خپل لیږل شوي پوځ د فاتحانه راستنیدو د ښه راغلاست پرځای د بدر د لښکر له توپانی یرغل سره مخ شول.

راتلونکی سهار دغه پوځ د سرحد ډیر ښارونه او کلی تر خپلو برمیالو ګامونو لاندې کړي وو او بېرته فاتحانه خپلې کلا ته ستانه شوي وو، د دوی

لور واستول هغوی ته یی امر وکړ چی د دښمن پوځیان تر سرحد واړوی او خوشی یی کړی، یو ځانګړی پیغام یی بشیر بن حسن ته واستاوه چی د دښمن هغه تېپیان چی دتګ نه وی په اسونو تر سرحد ورسوی او د کومو چې حالت ډیر خراب وی د هغه دی علاج جاری وساتی، زه به یوه دوې ورځې همدلته پاتې شم.

له دی نه وروسته هغه له الزغل، موسی او الزیغری سره د غرناطی په راتلونکو پروګرامونو وګړید الزغل وویل چی له دی وروسته ښایی فردیناند د غرناطی پرخلاف په یرغل کی زیات ځندونه کړي، که هغه دغه کلا نیولی واي نو سمه جګړه به پیل کیدله، هغه ته باید د ډیر تیاری نوره موکه ورنه کړو.

ستا ددې شاندارې فتحې خبر چې د غرناطی خلك واوری حوصلې به یې اوچتی شی، زما اراده ده چی زه پخپله هغوی ته ستا ددی برمیالی سوبې خبر واورم. بیا به ته غرناطی ته راشی، د غرناطی اوسیدونکو له کلونو راسی د خپل قوم د کوم فاتح ښه راغلاست نه دی لیدلی.

د غرناطی شاعران له ژوندیو نه مایوسه دی او په قبرونو کی د ویدو مړیو په ستاینه کی قصیدی وایی، تا چی هغوی ووینی نو خامخا به یی باور شی چی خدای «ج» دوی ته له کلونو وروسته د حوادثو د توپان د مخ اړولو لپاره یو سپاهی را استولی دی. او چی د اولس جوش او جذبه وګوری نو زما ورور به خامخا د جهاد اعلان وکړی، هغه له پخوانه سر په تلی کی نیولی ، خو هغه ویریږی چی اولس به راسره ملګری نه شی.

بدر بن مغیره وویل : له تیرو لیدوکتونه وروسته زه ځان د غرناطی د لښکر یو سپاهی بولم، په دی سرحدونو کی زما د پرله پسی جګړونه مقصد دا ؤ چی تر څو د غرناطی خلك نه وی را بیدار شوی د فردیناند پام زموږ په لوری وی.

ماتې شي،

الزغل وویل : حقیقت دا دی چې موږ د صخره د نیولو پریکړه کړې وه، او زه د همدې مقصد په خاطر ستا د بیولو لپاره راغلی وم.

بدر وویل : زما د پوځ ټول سپاهیان ستا په خدمت کې حاضر دي، زه همدا اوس ستا سره تلوته چمتو یم.

الزغل وویل : نه ! ستا سپاهیان باید په همدې محاذ پاتې شي، سمدستي ته دوی ته یو مناسب سړی مشر وټاکه او غرناطې ته ولاړ شه، امکان لري ستا له تګ نه دوی ورځې وروسته ابوالحسن د جګړې میدان ته په ورکوزیدو راضي شي.

موسی وویل : زما په نظر خو که دې د خپل پوځ له یو څو ډلګیو سره یو ځای غرناطې ته ولاړ شي پر خلکو به یې اغیزې ډیرې ښې وي، او زه دا هم غواړم چې په لومړیو جګړو کې د غرناطې د فوځ د توپانې ډلګی مشرتوب هم بدر ته وسپارل شي، دده په موجودیت کې به د خلکو حوصلې ډیرې اوچتې شي، ددې په بدل کې به موږ د غرناطې د پوځ څو ډلې دلته د سرحد د ساتنې لپاره راواستوو.

بدر وویل : زموږ هدف پر غلیم بریځ دی، او زه به هر هغه محاذ ته ځان رسوم چې ماته ضرورت وي. سمدستي خو زما باور دی که دوه زره تنه پوځ هم له دې ځایه له ځانه سره بوزم زموږ دغه مورچل به کمزوری نه شي، بیا هم زه ستا له دې تجویز سره موافق یم چې په دغه محاذ باید سپاهیان کم نه شي، که له دې ځایه زر تنه تجربه کار جنګیالي بوزو له غرناطې نه باید همدومره دلته راوستل شي، په دې صورت کې به دا سیمه زموږ یو دفاعي مرکز هم وي، او په سرحد کې به د فردیناند پرخلاف هلته دلته یوه نیمه حمله کوي او د فردیناند پام به د یوه محاذ په لوري نه اوړي.

الزیغري پوښتنه وکړه : ستا دا باور دی چې فردیناند به ددې تازه ماتې نه وروسته له غرناطې نه وړاندې ددې سیمې د فتحه کولو اراده ضروري نه بولي؟

پوری دوی دلته مصروف وساتلای شو که د غرناطی اولس د ځان وژنی اراده نه وی کړی نو په دی موده کی به خامخا یو ځل په بل اړخ واوړی.

الزیغری بیا وپوښتل : که گستاخی نه وی زه دا پوښتم چې له تاسو سره څومره پوځ دی؟

بوړ وویل : تر اوسه دی چی څومره سپاهیان لیدلی دومره به نور هم وی.

موسی وویل : فرض کړه که حالات داسی وی چی ته له اتکل زیات په غرناطه کی پاتی کیدوته اړ شی، نو ستا په سپاهیانو کی داسی څوك شته چی ستا په غیاب کی له همدومره هوښیاری نه کار واخلی لکه پرون چی تا د دوی د ناڅاپی یرغل په مقابل کی ښودلی ده؟ زما مطلب دا دی چی داسی څوك شته چی د هغه په موجودیت کی ستا پوځ ستا د غیابت احساس و نه کړی.

بدر : په دی کی شك نشته چی زما پوځیان له ما سره مینه لری، خو دا د خدای «ج» فضل دی چی زما سره له سلو تنو نه زیات داسی کسان شته چی زما ځای نیولای شي.

الزغل وویل : ستا په نظر په دوی ټولو کی غوره څوك دی؟

بدر : زما مرستیال منصور بن احمد.

الزغل : منصور بن احمد خو هغه ځوان نه دی چی له تا سره په مشکی آس سپور ؤ؟

بدر : نه هغه اوس دلته نشته، هغه قرطبی ته تللی.

الزغل : قرطبی ته ! هغه د قرطبی اوسیدونکی دی؟

بدر : نه هغه د اشبیلیی اوسیدونکی دی خو قرطبی ته په دوره تللی دی.

الزغل : په دوره!

بدر : د نویو پوځیانو د جلبولو لپاره !

الزغل : هغه له اشبیلیې نه پخپله دلته څه رنگه راغی ؟

# اولس او د هغه سرتیری

سرحدی شاهین له زرو تنو سپرو سره غرناطی ته ننوت، د هغه د وروستی بری خبر د پاچهی ټولو ښارونو ته رسیدلی ؤ، د غرناطی اولس د کلونو کلونو هیله ترسره شوی وه او د شاهین د لیدو موقع په لاس ورغلی وه، له کلونو وروسته یی د یوه بریمن او فاتح جلوس ویوست، موسی او د پوځ یو شمیر نور مشران چی د پاچا په هدایت له غرناطی نه یو پړاو مخی ته ور وتلي وو له بدر سره همرکاب وو، د غرناطی پاچا ابوالحسن، د هغه زوی او ولی عهد ابو عبدالله محمد او د پاچا ورور ابو عبدالله الزغل د شاهی مانۍ د دروازی په برج کی ولاړ وو او ددغه شاندار جلوس ننداره یی کوله، د خلکو جوش او ولولی د هغو وختونو یادونه تازه کول چی د اندلس غازیان به په شمال کی له سوبو وروسته بیرته راستنیدل.

خلکو د کورونو له بامونو په هغوی ګلونه ورشیندل، بدر بن مغیره د معمول په شان سپینه چپنه اغوستی وه، خو نن یی پر مخ نقاب نه ؤ، د هغه ښی لاس ته موسی او کیڼ لور ته یی الزیغری وو، د غرناطی د پوځ یو بل سرتیری سپاهی نعیم بن رضوان د هغه د اس جلب نیولی ؤ، د ټولو نه وړاندی یوه بل مجاهد د سرحدی شاهین بیرغ اوچت نیولی ؤ او روان ؤ.

دغه ولي ګلونه تر پښو لاندی کړل او د کلا په دروازه کی ودریدل. ابوالحسن الزغل ته وکتل ، په سترګو کی یی له خوښی نه ډډند شوی

لاسونه بنکل کړی وای.

ابو عبدالله : مگر د شاهی کورنی عزت او وقار؟

ابو الحسن : د شاهی کورنی وقار او عزت د همداسی مجاهدینو د توری په سیوری او برکت پوری تړلی.

الزغل وویل : تاسو دربارته ولاړشی، هغه به زه دربار ته درولم.

ابو الحسن وویل : نه اوس چی ابو عبدالله د شاهی کورنی د وقار او عزت خبره راپورته کړه ددی ساتل ضروری دی، د بدر بن مغیره د بنه راغلاست لپاره زه پخپله ورځم، تاسو په دربار کی راغوندوشوو سرادرانو ته ووایی چی تول بهر راووزی ماته د گلونو یو امیل هم راواستوی، موسی ته ووایی چی جلوس تر لږ ځنده په دروازه کی ایسار کړی.

خلك د دروازی په مخه کی تر بدر بن مغیره راچاپیر شوی وواو آسمان لړزوونکی ناری یی وهلی، موسی وراندی شو لاره یی تشه کړه، خو پخوا له دی چی د بدر قافله پری ورشی پادشاهی ناظم راووت او په منډه موسی ته ورغی ویی ویل : د پاچا فرمان دی چی زموږ عزتمن میلمه لږ په دروازه کی ایسار شی.

لږ ځنډ وروسته ابو الحسن د خپلو سردارانو سره په دروازه کی راښکاره شو، او خلك له حیرته پر خپل ځای ودریدل، او هغه ته یی کتل، ابوالحسن چی له زینو نه ښکته شو موسی او الزیغری له اسونو نه راکوز شول، نعیم بن رضوان چی د بدر بن مغیره د آس جلب نیولی ؤ هغه ته یی وکتل او ویی ویل : اعلیحضرت پاچا پخپله تشریف راوړ، بدر بن مغیره په بیړه له اس نه راکوز شو.

* * * * *

اولس ته زیری ورکړه چی له نن نه وروسته به زموږ په محل د سرحدی شاهین بیرغ رپیږی، زموږ بیرغ ورروست شوی دی، بدر بن مغیره موږ ته له یوه نوی بیرغ سره راغلی دی، زموږ توری زنګ وهلی وی تقدیر د هغوی د بیرته ځلولو لپاره څوك راولیږل، موږ خپل غیرتی میلمه ته سبه راغلاست وایو او مننه تری کوو، موسی په زینو وخوت ګنې ګونې ته یی مخ واړاوه خلکو یو بل چوپول، هغوی موسی د غرناطی ژبه (۱) باله.

کله چی هغه لاس اوچت کړ، خلك ټول چوپ شول او ده ته یی کتل موسی په خبرو پیل وکړ:

د غرناطی خلکو ! نن ستاسو په منځ کی هغه د لوړ عزم خاوند مجاهد ولاړ دی چی د اندلس په تاریخ کی یی خپل نوم په توره لیکلی، هغه څوك چی په لږ شمیر مجاهدینو یی څو ځلی د فردیناند سترو لښکروته ماته ورکړی، بدر بن مغیره، ستاسو سرحدی شاهین تاسو ته یو پیغام راوړی، هغه پیغام دا دی چی هغه تولی چی د آزادی په خاطر په خپلو وینو لمبیدلو او د اور لمبو ته ور غورځیدلو ته تیار وی د دنیا هیڅ ځواك یی نشی ماتولی، په قرطبه، اشبیلیه او طلیطله کی ځکه زموږ بیرغونه نسکور شول چی موږ پخپله هغه لاره غوره کړه چی اولسونه د عروج او کمال نه د ذلت او بد مرغی کندو ته پریباسی.

---

(۱) د موسی بن ابی غسان تبلیغ او د ژبی روانی تر اوسه مشهوره ده، په میرانه کی هم هغه د سلطان ټیپو او ترکی انور پاشا سره پرتله کیدای شی، مورخینو د هغه په اړه ډیر څه لیکلی دی، کله چی د اندلس کبنتی د حوادثو په توپان کی رچیدله، د موسی شخصیت د نور د ځلی په څیر ؤ ، د اندلس د مسلمانانو زوال هغه وخت پیل شو چی ذدغه الولعزم مجاهد توره

زمونږ پلرونو چې په خپلو وينو موږ ته هلته کوم يادګارونه پريښي و، هغه موږ په خپلو اوښکو پرې مينځل.

مسلمانانو ! که تاسو د قرطبې د اوسيدونکو له انجام نه عبرت وانه خست نو په ياد ولرئ چې راتلونکي تاريخ ليکونکي به يوازې د ماضي په کنډوالو کې ستاسو د داستان شليدلې پاڼې لټوي.

د قرطبې او اشبيليې لويې پاچاهۍ کوم دښمن په زورله موږ نه دي نيولي، هغه موږ پخپله له لاسه ورکړي.

زموږ د پرمختګ او خلاصون راز په هغه سپيڅلې لار غوره کولو کې ؤ چې موږ ته خپل خواږه پيغمبر محمد مصطفی «ص» ښودلی وه، موږ په هغه لاره د عربو له بيابانونو نه د هسپانيې تر ګلبنونو پورې راورسيدو، په هماغه لاره نيغ روان وو چې د قيصر او کسرى تاج او تخت موتر قدمونو لاندې شول، هماغې لارې د افريقا تر تبجنو دښتو او د البرز تر واورينو څوکو پورې ورسولو.

زموږ زوال هغه وخت پيل شو چې موږ له دې لارې نه کاږه شوو، اسلام موږ ته د پروردګار د نعمتونو دروازې بيرته کړې، خو موږ په خپلو لاسونو د رحمت دغه دروازې بيرته بندې کړې، اسلام موږ ته د خدای «ج» په لار کې د جهاد حکم کوی خو موږ په خپلمنځي جګړو کې بوخت شوو، اسلام موږ ته د يو والي امر کوی، خو موږ په ګوندونو او ډلو وويشل شوو، اسلام د نسل او قوم بوتان مات کړل د اسلامي ورورلي او اخوت تداو يې کيښود عربي او عجمي يې په يوه کتار کې ودرول، خو موږ د غوبوتانو ته بيا په خپلو لستونو کې ځای ورکړ، موږ د خدای «ج» رسې پرېښوده او بيرته مو د نسل او وطن بوتانو ته سرونه ټيټ کړل، په هر وطن کې د يوه نسل توری د بل نسل د مسلمانانو له تورو سره وجنګيدلي، عربي د عجمي او عجمي د عربي مړي پرې کړه، ترکان او ايرانيان يو له بل سره ټکر ته راووتل، او د

پردي سربيره مو له دی پيښو نه عبرت وا نه خست.

د غرناطي مسلمانانو ! زه له تاسو نه پوښتم ايا له پيړيو، پيړيو حکومت نه وروسته، اشبيليه، قرطبه او د اندلس نور ښارونه زموږ له لاسه پردی ونه وتل چی موږ د نسل پالنی په فتنو اخته شوو، دا د عبرت ځای دی چی کله د عيسويانو لښکرو زموږ ښارونه کلابند کول دننه د اندلس مسلمانان د عربی ، هسپانوی او بربری په نامه يو د بل مرۍ پرې کولې، د اندلس ښارونه يو يو زموږ له واکه ووتل، مسلمانان د هغه قوم غلامان شول چی پيړۍ پيړۍ يی پری حکومت کړی ؤ، اوس د غرناطی يو وړوکی حکومت موږ ته پاتی دی، دا زموږ وروستی مورچل دی او دښمن پر دې هم د قبضې کولو په خيال کې دی، خو که موږ تر اوسه پورې را په خود نشوو.په موږ کی تر اوسه د نسل او نسب پالنی روحيه لاژوندی ده، موږ اوس هم د عربي، بربري او هسپانوي د توپير لرې کولو ته تيار نه يو.

د اندلس هغه مسلمانان چې د عيسويانو په غلامی کی پراته دی او دير ذلتونه وريانديې تپل شوی دی اوس هم په همدی تمه ژوندی دی چی د غرناطی مسلمانان به د دوی د مرستی لپاره ورځی تاسو د دوی وروستی تمه ياست، خو که خدای «ج» مه کړه تاسو خپل ځان ونشو ساتلای نو د اندلس د مسلمانانو تاريخ به راتلونکو نسلونو ته يو عبرتناك داستان وی او سيلانيان به دا ويجاړ محلونه گوري او وايي به ايا د ددې جوړوونکی مسلمانان وو؟!

فردیناند له موږ نه جزيه غوښتی، خو موږ هغه ته دا ځواب ورکړی چی زموږ په ضراب خانو کی تورې جوړيږی او دا ځواب موږ په دی باور ورکړی چی زموږ توری زموږ ساتنه کولی شی.»

د موسی له خبرونه وروسته خلکو شورماشور گډ کړ، چی موږ د سرحدی

حالت کي ښکته کتل او بيا يې له مجبوري خبرې پيل کړې:

د غرناطي ميړنيو ! د موسی بن ابي غسان له خبرونه وروسته ماته د نورو خبرو ضرورت نشته، او ښايي تاسو هم د غفلت له خوبه د راپورته کيدو لپاره د اسرافيلي شپيلۍ نه وروسته د کومې بلې هنګامې ضرورت احساس نه کړی، زه خو وايم چې کوم اولس چې د خپل زوال په وخت کې هم موسی غوندې مجاهد پيدا کولی شي هغه هيڅوك هم له منځه نشي وړای، خو د دی لپاره دا ضروري ده چې تاسو کوم سړئ خپل لارښود بولی د هغه حکم پوره عملی کړی، هغه چې څه وايي عمل پرې وکړئ، په ياد ولرئ!

د دنيا ترټولو نه لوی طبيب هم هغه ناروغ ته ګټه نشي رسولی چې هغه پخپله د ځان وژلو اراده کړې وی، تاسو له خپل شاوخوا نه پوره خبرياست، ستاسو پر افق له هر لوری توری وريځې راخورې دی، په قرطبه او اشبيليه کې زموږ د عظمت محلونه رانسکور شوی دي په دې هيواد کې له اته سوه کاله پاچاهی وروسته ، زموږ د قوم په لکونو خلك د يوه داسې دښمن په غلامۍ کې راګير دی چې نه يې په موږ رحم راځي او نه ترې د عدل هيله کيدای شي، نن يوازې غرناطه زموږ وروستی برج او مورچل پاتې دی، او که موږ هماغه غلطي تکرار کړی چې په قرطبه، اشبيليه، او طليطله کې زموږ ورونو کړې وی نو زه ويريږم چې دغه وروستی مورچل به هم يوه ورځ زموږ له لاسه وزی.

کله چې په شمال کې عيسوی اميران يو له بل سره په جګړو بوخت وو، يو کافر له بل کافر سره غاړه غړی کيدو، خو يوه مسلمان د بل مسلمان څټ پرې کاوه، زموږ دښمنانو دا ثابته کړه چې ټول کفار سره يو دی خو موږ دا ثابته نکړای شوه چې که ټول کفار سره يو دی ټول مسلمانان هم سره ورونه او يو دی.

دفاع ونه کړای شوه نو په اندلس کې به د مسلمانانو یوازې نوم پاتې شي، دا ټولې خبرې موسی تاسو ته کړې دي، زه یوازې یوه خبره درته کوم، چې اوس د الفانسو پرځای فردیناند له موږ سره د توري په ژبه خبرې غواړي، او مسلمان ته دا ثابتول په کار دي چې اوس هم دوی د توري په ژبه خبرې کولی شي، د غرناطې اوسیدونکو ! دا ولسونو په ژوند کې یو داسې مهال هم راځي چې د قلم د ژبې پرځای د توري ژبه ډېره غوره وي، او ستاسو لپاره اوس همغه مهال راغلی دی، بدر بن مغیره چې خبرې پای ته ورسولې خلکو احساساتي نعرې وهلې، ابو الحسن بدر ته وویل : زه له تا سره خبروته ناکرار یم، د خلکو د غونډې د تیت کیدونه وروسته به دې موسی راولې.

* * * * *

(۳)

د سرحدي شاهین له راتلو لس ورځې وروسته د غرناطې اوسیدونکي له ښار نه بهر راټول شوي وو او د ابو الحسن پوځ ته یې مخه ښه ویله له کلونو وروسته د غرناطې پوځ د کوم مسلمان امیر د ټکولو پرځای له دښمن سره د جګړې لپاره محاذ ته روان ؤ، او له کلونو وروسته هسپانوي، بربري، او عربي مسلمان امیران د یوه قوماندان تر بیرغ لاندې راټول شوي و.

ابو الحسن د روانیدو له حکم ورکولو نه وړاندې پوځ وکوت او بدر ته یې وویل : بدره تا مات زړونه بیرته سره روغ کړل، په خدای سوګند که عربي، هسپانوي او بربري مسلمانان همدغسې سره یو وي نو هیڅ داسې سبب نشته چې موږ به د قیامت په ورځ خپلو نیکونو ته شرمیدلي ولاړ وو، موږ به یو ځل بیا فرانسې ته رسیږو.

بدر بن مغیره ځواب ورکړ : زما پلار [illegible]

مصلحتونو له مخې ابو الحسن د مرکز د ادارې او د خپل زوی د څارنې په خاطر هغه په غرناطه کی مناسب باله.

ابو الحسن په دی عملیاتو کی خپل پیاده پوځ شامل نه کړ، او په یوه حیرانوونکي رفتار د لکـرتر درې پورې پر مخ ولاړ موسی بن ابی غسان دهغه مرستیال ؤ ، او د ضربتي قوی دتوپاني ګروپونو مسوولیت د بدر بن مغیره پر غاړه ؤ. ابو الحسن دسرحد د یو شمیر سیمو له نیولو نه وروسته «صخره» کلابنده کړه او کله چې غرناطې ته ددې ښار دکلابندی خبر راغی په خلکو کی دخوښی جذبات توپاني شول د «صخره» عیسوي حاکم په مسلمانانو دظلم او ستم په وجه د فردیناند په ټولو حاکمانو کی ډیر بد نام ؤ . دغرناطې خلکو له کلونو کلونو دصخرې نه را تبتیدلیو مسلمانانو له خولې هلته پر مسلمانانو د ظلم او تیري کیسې اوریدې، کله یې چې د «صخره» دکلابندی خبرواورید په جوماتونو کې یې د ابوالحسن د بريا و دعمر داوږدوالي دعا ګانې کولې.

دابو الحسن ګومان داؤ چې دصخره کلابندي به دوام وکړي خو څلوروړځې وروسته یوه شپه دښار یو شمیر مسلمانانو بغاوت وکړ په پهره دارانو یې حمله وکړه او دښار یوه دروازه یې خلاصه کړه ، دابوالحسن پوځ چې دوی د مخه له دې اقدام نه خبر کړي وو له معمولي ټکر وروسته په ښار قبضه وکړه.

په دې جګړه کې دتېپیانو شمیر ډیر لږ ؤ ، هغوی یې د ابوالحسن په امر دښار دوالي محل ته یوړل، ماسپښین مهال ابوالحسن له موسی، بدر او یو شمیر نورو افسرانو سره د ټپیانو لیدوته ورغی ،خو طبیبان چې دزخمیانو پټی یې تړلی کله چې دوی ولیدل په احترام پاڅیدل او لاس په نامه ودریدل، خو یو تن چې په ډیر پام یې د یوه ټپي پر سر او ورمیږ پټی ور ایښودلی د

زموږ کار دی، کله چې زغره اغوستونکي پردي هم نه شو، نو هغه ورته وویل : که ته زما پروا نه لرې هم خیر دی خو لږ د پاچا صیب خیال وکړه، د سپاهي ځای د جګړې میدان دی دا نه دی.

زغره اغوستونکي یوه شیبه سر اوچت کړ ویې ویل : تاسو زما وخت مه ضایع کوی، د زخمي حالت نازك دی، بدر بن مغیره چې دزغره پوښ غږ واورید تکان یې وخوړ، خو د هغه مخ له سترګو پرته په خول کې پټ وو ځکه خو یې هغه سمدستي ونه پیژاند د طبیبانو مشر وارخطا غوندې وویل:

که ستا د پټې ترلو مینه وي، بهر ولاړ شه د دښمن په کوم ټپي او یا وژل شوي خپل شوق پوره کړه.

زغره اغوستونکي زخم وګنډلو وروستي غوټه یې ور واچوله ویې ویل : زما د پټې له ترلو سره مینه نشته د زخمیانو له علاج سره مې مینه ده.

د ابو الحسن حیراني په مینه او دلچسپي بدله شوه خو د طبیب حوصله ختمه شوې وه، د ټپي په نبض یې لاس کیښود او یوه بل طبیب ته ئې غږ کړ : دا بهر ته وباسی ماته کوم لیوني غوندې سړی ښکاري.

دوهم طبیب را وړاندې شو خو د ابو الحسن په اشاره یې د خپل مشر د حکم تعمیل پریښود.

د طبیبانو مشر د ټپي د پټې خلاصولو هڅه وکړه خو زغره اغوشتونکي د هغه لاس ونیو ویې ویل : که دې پټې ترې خلاصه کړه مرګ یې حتمي دی، ما ستاسو په کار کې مداخله کوله، خوکه ستا په یادوی تاسو دی لاعلاجه وباله او پرې مو ښود.

په دې موده کې د بدر ټول شکونه لرې شول، له غږ نه پرته هغه د زغره پوښ کځوره هم وپیژندله، هغه دغه لاس هم پیژندل او ورسره بلد ؤ چې څو واره یې دده په زخمونو هم پټې ایښې وې.

موسی تکان وخوړ وېی ویل : بشیر بن حسن ! ته دلته څه وخت راغلی؟
هغه ځواب ورکړ : زه نن راورسیدم.
موسی ابو الحسن ته مخ ور واړاوه وېی ویل : دا بشیر بن حسن دی دا زموږ د شاهین د ښکو ساتنه کوي.
ابو الحسن په مینه بشیر بن حسن ته لاس ورکړ وېي ویل :
ما ستاسوصفتونه ډیر اوریدلی دی.
بشیر د هغه لاس ښکل کړل وېی ویل : وبخښی زما له طرفه د احترام پرځای کول وځنډیدل د زخمی حالت خراب ؤ.
د طبی ډلی مشر په پریشانی، وار خطایی او پښیمانی ته ورته حالت کی ولاړ ؤ، بشیر بن حسن هغه ته وویل : زه د بی ځایه مداخلی گناهکار یم، خو دغه سړی په بازار کی بی سده پروت ؤ، سپاهیانو پر هغه دمړه گومان وکړ، مایی په بدن کی د ژوند نښی ولیدې، او دلته مې را وړ، تاسو ډیر مصروف وی، ده ته مو پام نه شو، د طبی ډلی مشر ده ته په مصافحه لاس ور وغځاوه وېی ویل : د بشیر بن حسن په وړاندی د خپلی کمزوری اعتراف هم زه د ځان ویاړ بولم، کله چی تاسو هغه دلته راوړ زما په گومان یی وضعه خرابه او مایوسوونکی وه، هغه له طبیب نه زیات معجزه کوونکی ته ضرورت درلود، او په اندلس کی یوازی د بشیر بن حسن له نامه سره د داسی معجزو منسوبول رواج دی، زموږ سره څو نور تپیان هم دی چی ستا د پاملرنی مستحق او محتاج دی.
یو بل ځوان جراح راوړاندی شو وېی ویل : ما پخوا یو ځل په قرطبه کی ته لیدلی یی خو د خوَل په سبب می تر اوسه نه پیژندلی.
بشیر بن حسن وویل : زه ویریږم چی له خول نه پرته به تاسو ما پردی وبولی، پردی سړیره په تپیانو کی زموږ څو ملگری هم دی زه ویریدم چی

زخمیانو په ټپونو په مرهم پټی لګولو مشغول شو.

د اندلس د نورو ښارونو په څېر غرناطې ته هم د هغه د نامه شهرت رارسیدلی ؤ، د طبی ډلی ټولو غړو له هغه سره د روغبړ، او دهغه د هدایت پرځای کول د ځان لپاره ویاړ باله، له هغه نه د دوی تر اغیزی لاندی راتلو یو سبب دا هم ؤ چی بشیر د سرحدی شاهین ملګری ؤ.

د طبی ډلی مشر تر ډیره پخپل چلند پښیمانه او پریشانه ؤ، بالاخره یی بشیر ته وویل : زه تر اوسه پوری د بخښنی لپاره توری او مناسب الفاظ لټوم، زه ویریږم چی تا به زما په باب ډیر بد اټکل کړی وی.

بشیر ځواب ورکړ : ته مه اندیښمن کیږه، امکان لری که زه ستا پرځای وای له یوه بیګانه سره به می زیاته توندی کړی وه، لږ شیبه وروسته هغه زخمی چی بشیر بن حسن یی ټپونه ورتړلی وو، لږ په سد شو او په زګیروبو یی پیل وکړ، بشیر بن حسن له خپلی کڅوړې لږ دوا رواخستله په پیاله کی یی واچوله او یوه طبیب ته یی ورکړه ویی ویل : دی به لږ شیبه وروسته را په خود شی ته سمدستی دا دوا پری وخوره هغه به ورسره ویده شی، ماښام به پخپله راشم او احوال به یی واخلم، اوس تاسو پام کوی چی څوك یی ویښ نه کړی او له هغه سره د خبرو هڅه ونه کړی.

*****

(٤)

ماسپښین مهال چې له بشیر بن حسن سره بدر د ځانګړی مجلس موکه ومونده نو بدر له خپل دوست نه د ناڅاپی راتګ پوښتنه وکړه، بشیر بن حسن ځواب ورکړ دا زما د ژوند ترټولو لویه آرزو وه چی زه له غرناطی نه د ابو الحسن د پوځ د روانیدو ننداره وکړم، خو ماته دا خبر هغه وخت رارسید

بدر بن مغیره موسکی شو ویی ویل : او زه زخمی نه وم ستا دوا ګانو د نورو په درد وخوړل، ربښتیا ووایه ستا دا مندې او ستومانی زما په خاطر نه وې؟

بشیر : ستا سلامتی زما د ژوند یو ستر هدف دی.

بدر : د یوه تن سلامتی زما په خیال دومره ستر هدف نشی کیدای چې فخر پرې وشی.

بشیر بن حسن له مینی نه په ډک نظر خپل ملګری ته وکتل ویی ویل :

بدره ! ته ما ته یو فرد نه یی، یو قوم یی، او که زه د یوه ډاکتر ژبه استعمال کړم نو ویه وایم چی ته د هسپانیی ناتوانه بدن ته یو خوځنده زړه یی.

بدر : دا د یوه شاعر ژبه ده.

بشیر : د خدای «ج» شکر دی چی زه شاعر نه یم، ما د الزغل په دسترخوان د غرناطی له څو شاعرانو سره لیدلی دی هغوی ستا په ستاینه کی یو تر بل مخ کې کیدل.

بدر : هغوی زما په باب څه ویل ؟

بشیر : بس دا چې ته په هوا کی الوتلی شی، د اوبو پرمخ تلاشی شی تا چې ووینی د سمندر توپانی څپې تم شی سیندونه ...

بدر : سیندونه څنګه ...؟

بشیر : ښه می نه دی په یاد لکه چی داسې یې ویل چې سیندونه بیرته د غرونو په لور بهیږی...

بدر وویل : ساده ګان دی دوی.

بشیر بن حسن خپله خندا راقابو کړه ویی ویل : نه هغوی ټول ساده ګان

دليل لرى؟

بشير : بدره ! زه رښتيا هم ډير خوښ يم، داسى ګنم لکه چى د کلونو کلونو د خوبونو د تعبير وخت رارسيدلى دى.

بدر پوښتنه وکړه : انجيلا څنګه ده ؟

بشير ځواب ورکړ : هغه ښه ده خو تا د ربيعې په باب پوښتنه ونه کړه.

بدر : په هغه څه شوى؟

بشير حق په جانب ښه ونيوه ويى ويل : واه واه ته په دې نه يې خبر ؟

بدر : بشيره تا خو به د هغې په اړه کوم بد خبر نه وي راوړى؟

بشير وخندل.

بدر وويل : ته لوى مسخره يى.

بشير وويل : ربيعى تا ته سلام وايه.

بدر : دروغ !

بشير ښه درووره داسى وګڼه چى هغى ستا د سلامتى دعا کوله،

بدر : ددى خبرى په منلو کى مى اعتراض نشته، خير اوس تهوکى پريږده ، ابو داود څنګه ؤ ؟

بشير : هغه ډير خوښ دى، غرناطې ته په رسيدلو الزغل هغه د شهزاده ابو عبدالله استاد ټاکلى، په الحمرا مانۍ کې يې د هستوګنى لپاره ځاى ورکړى، زما په ګومان به شهزاده هغه ډير زر د ځان مل کړى.

د موسى په ورتګ د دوى دواړو د خبرو موضوع بدله شوه، هغه ورته ووئل چى ابو الحسن مو غواړى.

# نوی ارادې

د صخره له فتحې وروسته ابو الحسن له عیسویانو سره د پریکنده جګړې لپاره په پراخه تیاری لاس پوری کړ، د پاچاهی ټول سر مشران او سرداران چې تر اوسه د عربی، بربری، هسپانوی نسلونو په جګړو کې مشغول وو د شریك دښمن پرخلاف سره یوشول، هسپانوی او بربری سرمشرانو ته ابو الحسن د یوه پاچا پرځای یو مسلمان پاچا شو، هغه د صلیب د بیرغ پرځای د هلال بیرغ اوچت کړی ؤ، د غرناطې د علماؤ یوی زیاتی ډلې دغه جګړه جهاد وباله، د صخره له فتحې وروسته چې ابو الحسن غرناطې ته بیرته ستون شو هغه لومړی ځل دا احساس کړه چې په رښتیانی معنی د غرناطې واکمن دی، خلکو له پوځې قرار ګاه نه تر الحمرا پوری په لاره ګلونه شیندلی وو، د شپې مهال هغه د الحمرا په اوچت منار وخوت او ځلورو خواو ته یې نظر واچاوه، ټول ښار په ډیوو روښانه ؤ، او خلکو په کوڅو او بازارونو کې د خوښی ناری وهلی، ابو الحسن آسمان ته وکتل لاس یې اوچت کړل او دعایی وکړه:

د عزت خاوند پروردګاره!

زما په کمزورو متو کی قوت پیدا کړه، ماته د طارق بن زیاد اراده او د موسی بن نصیر حوصله راکړه، زما قوم ته یو ځل بیا د هغو غازیانو ولولی ویخښه چې اسونو یې یوی خواته د فرانسې او بلی خواته د چین په سیندنو

اوبه ښخښلي، زموږ [illegible] اتفاق [illegible]

وی نو ما ته ددی توفیق راکړه چی د غرناطې د پاچاهی لپاره یو مناسب جانشین وټاکم.

کله چی ابو الحسن په منار ودریدلی ؤ دا دعایی کوله، د هغه زوی ابو عبدالله دخپل نوی استاد ابو داود سره په محل کی په یوه کوټه کی ناست ؤ، په څو ورځو کی استاد او شاګرد یو له بل سره ډیر بلد شوی وو، او د ابو عبدالله تره الزغل په جامو کی نه ځائیده چی دایی لیدل چی کوشه ډب وراره یی د نوی استاذ په اشارو خوځی او هغه له ځانه یوه شیبه لری هم نه شی پریښودلی، ابو داود فطرتاً ډیر محتاط ؤ، هغه په دی پوهیده چی د شاګرد په رګونو کې یې عربي وینه چلیږی، ځکه هغه د خپلو ارادو او هدف په روښانولو کی بیړه مناسبه نه بلله.

هغه ځان د ابو عبدالله یو بی تکلفه دوست څرګند کړ او د هغه د خیال او نظر معلومولو هڅه یی کوله ، په څو ورځو کی هغه پردی پوه شو چی په مناسب وخت کی د غرناطی شهزاده د خپل لاس آله ګرځولی شی.

ابو عبدالله یی په خپل لومړنی ځانګړی ملاقات کې پرځان عاشق کړ، هغه د شهزاده لاس وکوت او د ورغوی څو کرښو ته یی اشاره وکړه ویی ویل : شهزاده ! ته د غرناطی د پاچاهی لپاره نه یی پیدا شوی.

د ابو عبدالله په څیره د خفګان آثار راښکاره شول خو هغه موسکی شو ویی ویل :

دا کرښې ستا لپاره د سکندر د بخت او د لوی عبدالرحمن د دبد بې او مقام ګواهی ورکوی، که زما علم ماته دوکه رانه کړی نو د پیرنی له غرونو نه تر جبیل الطارق پورې به ستا د اقتدار بیرغ رپیږی، د مراکش او فرانسی پاچاهان به تاته جزیه درکوی.

همغی ورځې ابو عبدالله خپل ځان سکندر او خپل استاد یی ارسطو ګاڼه ، دواړه په خپل خپل خیال کی د مناسب وخت په انتظار وو، په څو کتنو کی استاذ ته دا څرګنده شوه چی شاګرد یی د کوم وخت په انتظار دی، خو شاګرد ته د خپل استاد د ارادو علم نه ؤ او نن چی هغه د ابو عبدالله پیغام واورید له خپل هستوګنځی نه راووت، هغه ته ورغی نو په یوه نظر یی احساس کړه چی د هغه شاګرد په کومه نوی پریشانی کې راګیر دی.

*****

(۲)

ابو عبدالله د خپل استاذ درناوی پرځای کړ، ملازم ته یی وویل : چی دروازه بنده کړی، استاد او شاګرد په شاهانه کرسیو کښیناستل.

ابو داود وویل : شهزاده! زما هیله وه چې ته به اوس د غرناطی په بازارونو کی د خوښۍ نارې وهې، دا کومه اندیښنه ده چې اوس یې ولی عهد دومره پریشانه کړی؟

ابو عبدالله وویل : ایا زما د استاذ هم دا حکم دی چې زه د موسی، الزیغری او بدر بن مغیره په بری ناری ووهم.

آیا ددی لپاره زما ناسکه ورور بس نه دی چې نن یی په جلوس کی د نوکرانو په څیر د دوی د اسونو په مخکی پلې منډې وهلې، دا ټول ددی لپاره کیږی چی دوی زما په باب دپلار ذهنیت واړوی، څکه چې داسی چاپلوسی او تملق نشم کولی، او هغوی زما پلار ته یو ځل بیا د اوربنیی چی زه نالایق او نا اهله یم.

ابو داود وویل : ستا د ناسکه ورونو په باب زه څه نه شم ویلی خو ستا د تره الزغل په اړه دا ویلی شم چی هغه ستا بده نه غواړی، او که هغه ستا

کړی نو نن به دې که زړه نه غواړی هم باید د هغوی په غاړو کې د ګلونو امیلونه ور واچوی، تر څو د دوی په رګونو کې سختی پاتې نه شي، بیا هم د الزغل په باب زما باور دی چی هغه ستا مخالف نه دی.

ابو عبدالله ووبل : ته زما د تره په باب تل د نیك ګومان نه کار اخلی، تاته دا نه ده معلومه چی هغه پخپله اقتدار غواړی، زما له پلار نه یی هم یوه نانځکه جوړه کړی، هغه پردی پوهیږي چی زه دده د لاس آله نشم کیدای ځکه خو به د هغه دا هیله وی چی زما ناسکه ورور په تخت کښینی او حکومت دی وکړی.

ابو عبدالله سوړ اسویلی وکیښ ویی ویل : زه نه پوهیږم چی هغه به په خپل ژوند داسی پریکړه کړی وی چی زما له تره نه یی مشوره نه وی غوښتی، او زما تره به هیڅکله هم زما په حق کی فیصله ونه کړی.

ابو داود تر لږ شیبي سرښکته واچاوه او له ښه سوچ وروسته یی وویل: شهزاده ! ما چی دتا لاس ولید یوه خبره می درته ونه کړه، زه وویریدم.

ابو عبدالله : د خدای «ج» لپاره زر یی راته ووایه !

ابو داود یوه او بله خوا وکتل او ویی ویل : زه ویریږم که دا خبره زما او ستانه پرته دریم غوږ ته ورسیده نو له تاسره به زه هم په مصیبتونو کی راښکیل شم.

ابو عبدالله ووبل : ته غم مه کوه دلته څوك اوریدونکی نشته.

ابو داود : زما علم ګواهی راکوی چی ته به د پلار په ژوند د تخت او تاج خاوند شی، د هغه د رضایت پرخلاف به تقدیر تاته موکه درکوی، دا پریکړه بنایی ترخه وی خو ته به یی کوی، د اندلس بیرته نیول د ابو الحسن په نصیب کی نه دی دا ستا برخه ده،

ابو داود : تا ته ضروری ده چې خپل بایللی اعتماد بیرته ترلاسه کړی، د تاج او تخت لپاره ډیر څه کول په کار وی، او دا هم په یاد ولره چې که پلار او یا تره پرتا بدګومانه شول نو د تل لپاره به زما له مرستې نه محروم شې.

ابو عبدالله : زه به ستا په نصیحت عمل کوم.

ابو داود : چې داسې ده همدا اوس دې پلار ته ورشه که ویده شوی نه ؤ همدا اوس د بری مبارکی ورکړه. او دا هم ورته ووایه چې زه ددې جګړې له سعادت نه په محرومیدو افسوس کوم له دې نه وروسته سهار وختی ټولو لویو لویو افسرانو ته ورشه، که ممکنه وي هغوی ته انعامونه ورکړه پاچا به په دې ډیر خوښ شي، په دې خلکو کې به ځینې ستا په کار درځي.

ابو عبدالله : زه اوس پلار جان ته ورځم.

سبا ته ابو الحسن الزغل ته وویل : تا چې ابو عبدالله ته کوم نوی استاذ تاکلی زه له هغه سره یو ځل وینم، هغه ډیر هوښیار سړی معلومیږی، ما نن د ابو عبدالله په فکرونو کې ډیر بدلون احساس کړ، هغه پر دې خبره خفه ؤ چې ولې مې په جګړه کې راسره شریك نه کړو.

الزغل ځواب ورکړ : د خدای «ج» شکر دی چې موږ داسې سړی وموند، له دې پیښو نه دری ورځې وروسته بدر بن مغیره ته خبر ورغی چې عیسویانو پر سرحدی سیمو بیا ګواښونه پیل کړی دی، هغه سمدستي خپلو سپاهیانو ته د تیاری حکم ورکړ.

له رخصتیدو نه وړاندې هغه چې له ابو الحسن سره ولیدل هغه ورته وویل: ما په پوره تیاری په صخره د همدې لپاره حمله وکړه چې خلك د غفلت له خوبه راویښ شي، اوس ددې فتحې ګټه دا شوه چې زه به دوی په څو میاشتو کې پریکنده جګړې ته تیار کړم، په دې موده کې ته خپل سرحد

وو.

نوی بری دی مبارکه شه.ربیعه .

د یوی شیبی لپاره د بدر بن مغیره په زړه کې خوندور تکانونه راپیدا شول او یوه لیدلی او مانوسه څیره یی سترګوته ودریده بدر نوکری ته وکتل ويې ویل : زما لخوا هغی ته شکریه ووایه او ورته وایه چی ماته دعا کوه.

ماښام ربیعی له خپل پلار نه واوریدل چی سرحدی عقاب د خپلی ځالی په لوری تللی دی.

* * * * *

(۳)

فردیناند له سرحدي شاهین نه د بدل اخستلو تیاری نیولوچی هغه پر صخره د ابو الحسن د قبضی خبر واورید، هغه خپلو ټولو والیانو او امیرانو ته د تیاری حکم وکړ، د یهودی سوداګرو په جامه کې دده جاسوسانو د ابو الحسن د راتلونکو ارادو نه خبر ورکړ ، هغه یو دیر لوی صلیب د خپل محل په دروازه ټینګ کړ او د قسطلی د اولس په وړاندی یی دا تعهد وکړ چی ترڅو دغه صلیب د الحمرا په دروازه ټینګ نه کړم دمه به ونه کړم، د پاچاهی ټولو امیرانو دده په تقلید دا سوګند وکړ، له هغه نه وروسته دده د پاچاهی له هری ګوښی نه خلك قسطلې ته ورتلل او ددی صلیب په مخکی به یی تعهد کاوه چی د غرناطې د فتحې نه وړاندې به خپلې توري په تیکی کې نه کړی.

یوه ورځ د غرناطی یو یهودي فردیناند تهِ ورغی یو لیك یی ورکړ، فردیناند لیك ولوست، استازي ته یی وویل تا زموږ ډیر لوی خدمت ترسره کړ، که ددی لیك ځواب غرناطی ته ورسوی ډیر لوی انعام به درکړم.

یهودی ځواب ورکړ زه په خوښی دی خدمت ته تیار یم.

[illegible]

فردیناند وویل : ته هوښیار سړی ښکاری خو په تالاشی کې دې لیک چیرته پټ کړی ؤ؟

یهودی وویل : دا لیک ابو داود زما په پښو کی دننه ایښی ؤ،

فردیناند وویل : دیر ښه سبا ته به بیا راشی، دایی وویل او بیا یی یوه سپاهی ته حکم وکړ چی استازی شاهی میلمستون ته ورسوه.

داستازی له تلو وروسته فردیناند دوهم ځلی په غور لیک ولوست او له لږ سوچ وروسته جگ شو د ملکی کوټې ته ورغی.

فردیناند د خپلی میرمن څنگ ته کیناست او ویی ویل : ملکی تا بایلوده!

ملکه : ستا مطلب!

فردیناند : تا د ابو داود په باره کی شرط تړلی ؤ چی هغه به له موږ سره غداری وکړی، واخله دا لیک ولوله، ستا ټولی بدگومانی به لرې شی، او لیک یی ملکی ته ورکړ.

ملکی لیک ولوست له لږ سوچ وروسته یی وویل : له دی لیک نه خو داسی ښکاری چې زموږ بدگومانی بې اساسه وی، خو دا باید هیر نه کړو چی لیکونکی ابو داود دی، او هغه له دروغو نه د رښتیا جوړولو توان لري، هغه موږ ته په الحمرادناڅاپی حملې مشوره راکړې، خو زه ویریږم چې په دې کې هم کوم خطرناك چل نه وی.

فردیناند ځواب ورکړ : د ابو الحسن د ارادو او تصمیمونو په باب ماته د خپلو جاسوسانو له خولی هم پوره معلومات راغلی، زه له ابو داود سره په دې نظر کی متفق یم چی موږ د صخره له لاسه ورکولو په بدل کی باید د غرناطی کوم سرحدی مهم ښار ونیسو، پردی به د مسلمانانو احساسات د څه مودی لپاره ساړه شی، او زموږ د پوځ مورال او حوصله به اوچته شی، زما په نظر که د قادس والی په ناخبری کی پر دوی حمله وکړی نو لکه به

فردیناند : زما زړه گواهي راکوي چې ستا اندیښنې بې ځایه دي، او که فرضاً همداسې وي هم هغه به زموږ د ارادو د پوهیدو لپاره زموږ د ځواب انتظار کوي، د ابو داود دا خبره ربښتیا ده چې الحمه د غرناطي کونجي ده، او که موږ هغه ونیسو نیمایي جګړه به مو ګټلې وي، زه همدا نن د قادس والي ته پیغام وراستوم او سبا ته پخپله د لوښه په لور روانیږم، ددوی تول پام به ماته را اوړي او د قادس پوځ ته به پر الحمه د قبضې موقع په لاس ورشي.

زه د قرطبې او اشبیلیې پوځونو ته هم د پرمختګ امر کوم، که موږ په کوم محاذ تاواني کیږو نو یقیناً هغه به د الحمه محاذ نه وي.

* * * * *

(٤)

ابو الحسن ته یې جاسوسانو خبر ورکړ چې فردیناند د قسطلې نه له لوی پوځ سره روان شو. له دې سر هغه ته د قرطبې او اشبیلیې د پوځ د حرکت خبر هم ورسید، هغه خپل پوځ په درې برخو وویشه، یوه برخه یې د الزغل په مشرۍ د اشبیلیې د پوځ د پرمختګ د مخنیوي په خاطر واستاوه، د بلې برخې د مشرۍ لپاره یې تر موسی غوره څوک تر نظر ورنه غلل ، خو د ځینو امیرانو په مشوره یې موسی د ابو عبدالله سره په غرناطه کې پریښود او د پوځ د مشر تابه لپاره یې بدر بن مغیره راوغوښت.

بدر بن مغیره د خپل پوځ له نیمایي نه زیات ورسره ملګري کړل او غرناطې ته ورسید او د قرطبې د سرحد په لوري د پوځ د مخنیوي لپاره وخوځیدل.

د پاتې پوځ قیادت ابو الحسن پخپله واخست او له روانیدو نه وړاندې یې خپل زوي راوغوښت ورته ویې ویل :

زویه ! زما او الزغل په غیاب کې ستا پر اوږو ډیره درنه ذمه واري

ترلاسه نه کړي زما اروا به ناکراره وی.

ابو عبدالله وویل : دا زما بدنصیبی ده چی ستا د پوځ د یوه سپاهی ویاړ نشم ترلاسه کولی، بیا هم چی تا زما په اوږو د مسئولیت کوم پیتی واچاوه زه به ځان د هغی اهل ثابت کړم، خو زه داسی احساسوم چی په هره جبهه کی به تاته د موسی په څیر تجربه کار جنرال ضرورت وی، دی له تا سره ضرور دی، ماته به دی بل څوك د مرستی لپاره پریښی وو.

ابو الحسن ځواب ورکړ : ستا نظر تیك دی، خو دلته د موسی د پریښودونه یو مقصد دا دی چی هغه به د مرستی لپاره نوی پوځ تیاروی.

له غرناطي نه د خوځیدونه وروسته ابو الحسن د سرحد په یوه ښار کی واړول او د فردیناند د پوځ د راتگ په انتظار شول، د موسی پرځای له هغه سره د غرناطی د پوځ دوه غوره سالاران الزیغری او نعیم بن رضوان هم وو.

دوې هفتې تیرې شوې ابو الحسن ته احوال ورغی چی د فردیناند لبکر له سرحد نه اخوا په یوه سیمه کی واړول ، د الزغل او بدر بن مغیره له لوری هم همدغسی احوالونه راغلل چی د اشبیلیی او قرطبی نه راغلی پوځونه له سرحد سره نژدی ودریدل.

خو دریمه اونی یی ناڅاپی خبر ترلاسه کړ چی د قادس والی په یوه ګړندی حمله الحمه ونیوله، له دی سره هغه وپوهید چی د سرحد په دری برخو کی د قرطبی، اشبیلی او طلیطلی د پوځ دریدل د څه لپاره وو، د الحمی له فتحی سره جوخت ابو الحسن ته داسی خبرونه راورسیدل چی د قادس والی ددی ښار په زرگونو اوسیدونکی ووژل.

الحمه د غرناطی ددفاع لپاره ډیره مهمه کلا وه ، له هغه ځایه دښمن هر وخت پر غرناطه حملی کولای شوای، د غرناطی په ساره او اوږدو کی دوزما الحمه څیغی پورته شوی. تولو همدا ویل چی د غرناطی «کنجی» د دښمن په لاس کیوته.

بهرنه یې د مرستې او اکمالاتو لارې تولې وتړلې، فردیناند چې د الحمه د کلابندۍ خبر واورید خپلو پوځونو ته یې له درې لوریو د پرمختګ امر وکړ.

له ټولو نه وړاندې د قرطبې پوځ له بدر بن مغیره سره ټکر وکړ، بدر بن مغیره ددې پرځای چې هغوی تر برید وروړاندې پخپله پر دښمن حمله وکړه، د قرطبې د لښکر په پرتله دده د لښکر شمیر ډیر لږ وو خو دده د جنګي پلان په وړاندې دقرطبې دلښکر چال ونه چلید، بدر بن مغیره په کوم میدان کې دخپل پوځ د زور ازمویلو پرځای د خپل پوځ د ګرندیو ګروپونو په واسطه د قرطبې پر پوځ له شاته حملې کولې او هغوی ته یې درانه تاوانونه ورواړول، دده د سپرو ګرندی یو ګروپ به ناڅاپه د دښمن په مخکینۍ پوځ حمله وکړه وهغوی به چې دوی ته پام شو او د مقابلې په نیت به پرې راپریوتل ناڅاپه به نورو ګرندیو سپرو ګروپونو پر دښمن له ښي او کیڼ لوري نه حمله وکړه او له درنې مرګ ژوبلې وروروسته به د سترګوپه رپ کې پناه شول، دا کار به د ورځې څو ځلې تکراریده، د قرطبې سپاهیانو ته دا څرګنده شوې وه چې د غرناطې د پوځ لعلی قوماندان سرحدي شاهین دی، هغوی پردې هم وپوهیدل چې که پرمخ ځي او یا شاته تیښته کوي، بشپړه نابودي یې په دواړو صورتونو کې په برخه ده.

بلې خواته د الزغل و اشبیلیې د پوځ ترمنځ ټکر پیل شو، فردیناند چې د قرطبې د پوځ د قوماندان له پریشانۍ نه خبر شو هغه په لوشه حمله وکړه، ابو الحسن د هغه په اراده پوه شو له خپل پوځ سره یې ځان د «لوشه» ښارو ته ورساوه، خو دده جاسوسانو خبر ورکړ چې د فردیناند پوځونه دده له معلوماتو نه څو چنده زیات دي، ابو الحسن له غرناطې نه د ډیرې مرستې هیله نه درلوده، ځکه خو یې الزغل ور وغوښت، الزغل خپل ورور ته د مرستې په خاطر له ورتلونه وړاندې د اشبیلیې په پوځ یوه سخته حمله وکړه او هغوی ته یې درونډ تاوان ور واړاوه او بیایې لوشه ته مخه کړه، له دې

مسئله مهمه وه، چی له څلورو خواو د اشبیلی د بی شمیره پوځونو له خوا ورو ورو پرې د کلابندی کړی تنګیده الزیغری د مایوسی په حال کی هم د وسلی ایښودلو پرځای جګړه غوره وبلله، پوځ یی تنظیم کړ او په یوه لوری یی فشار واچاوه، له تولونه وړاندی د نیزه بازانو ګروپ ؤ، پر هغوی پسې پلی پوځ ؤ، نیزه بازانو کلابندی ماته کړه پلی پوځ ته یی لاره خلاصه کړه او د الزیغری پوځ په جګړه جګړه بیله څه ځانی زیانونو د یوی ویالی تر پله پوری ورسیدل خو د دښمن د پوځ یوه ډله د پله نه پوری غاړې ته مورچل نیولی ناست ؤ، د الزیغری پوځ بیا د دښمن تر کلابندی لاندې راغئ، او پر هغوی له څلورو خواو د دښمن د پوځ لخوا د غشو باران اوریده ، ناڅاپه د پله له پورې غاړې د تکبیر نارې اوچتې شوې، او د سترګوپه رپ کی پنځه سوه تنه سپاره د ګردونو له منځه راووتل، هغوی د پله په پوری غاړه د الزیغری پرخلاف مورچل نیولی پوځونه را ایسار کړل او د سترګو په رپ کی یی هغوی تر تیغ تیر کړل.

کله چی د الزیغری پلی او سپاره پوځونه د ویالی بلې غاړې ته امن ځای ته ورسیدل، نو هغوی ته معلومه شوه چی د دوی مرستندوی پوځ له غرناطی نه راغلی او چی دوی دډغه ډلی له سالار سره دلیدو هیله وکړه یو تن سپور چې نقاب یی پرمخ غوړیدلی ؤ په آمرانه لهجه ورته وویل : دا د خبرو وخت نه دی تاسو زر ځانونه لوشه ته ورسوی.

الزیغری د نقاب پوښ غږ وپیژاند تکان یی وخوړ ویی ویل : له ما سره په داسی لهجه خبری له موسی بن ابی غسان پرته څوك کولی شی.

نقاب پوښ وویل : مګر دلته زما په راتګ باید څوك خبر نه شي، پاچا به دیر خفه شی، هغه ته زما نوم مه اخله ، ماته د غرناطې یوازې پرېښودل له خطرنه خالی نه وو، خو ابو عبدالله ګومان کوی چی زه په پوځی قرار ګاه کی یم.

(۵)

بدر بن مغیره ته چې کله دا خبر ورسید چې د غرناطې تول پوځ د وروستی او پریکنده جګړې لپاره لوشه ته رسیدلی نو ده د قرطبې پر پوځ د وروستی ګوزار پریکړه وکړه، او نائب منصور بن احمد ته یې پیغام واستاوه چې له خپل دوه زره تنو پوځ سره د قرطبې د پوځ شاته ځان ورسوه.

منصور بن احمد د لارې د سربنار ګوتې او کلې ورسره تر پښو لاندې کړل او په یوه حیرانوونکې ګړندیتوب سره د قرطبې د پوځ شاته ورسید، بدر بن مغیره یې چې پیغام ترلاسه کړ خپل پلې پوځ یې څو میله شاته کړ، او سپروته یې د ښمن په ښې او کیڼ لورې د حملې امر وکړ، د قرطبې د پوځ سالار ګومان وکړ چې سرحدې عقاب هم د الزغل او الزیغرې په څیر خپل پو ځ له دې ځایه لوشه ته لیږدوې او دا محاذ پرېږدې.

هغه ته فردیناند دا حکم کړی ؤ چې د لوشه د جګړې تر نتیجې پورې به دوې د دښمن پوځ مشغول ساتې، هغه تر اوسه د منصور بن احمد له راتګ نه بې خبره ؤ، خپل لښکر ته نې د بدر بن مغیره پر شاتلونکو پلیو پوځونو د حملې امر وکړ، خو په دې ځند کې د بدر د پلې پوځ غشو ویشتونکو په یوه کنده کې مورچل ونیول.

د قرطبه نیزه بازان چې وراندې ولاړل او کندې ته ورنژدې شول د غشو باران پرې جوړ شو او د هغوی قوماندان د شاتګ نه پرته بله څه چاره نه لیده، خو دغه مهال منصور بن احمد له شانه حمله وکړه او د قرطبې لښکر له شانه مخې ته ماته وکړه، له ښې او کیڼ لورې نه بدر بن مغیره او له شانه د منصور بن احمد سپرو د قرطبې پوځ په تنګه ساحه کې راګیر کړی ؤ، د هغوی په مخ کې هغه کنده وه چې غشې ویشتونکو پکې سنګر نیولی ؤ، د قرطبې د پوځ حالت هغه ډبرې ته ورته ؤ چې د سمندر توپانی څپې یې د

خطرناکو [illegible]

کې له یوه عجیب وضعیت سره مخ شول، ماسپښین مهال د دوی له مړونه غونډۍ جوړې وې او ډیر لږ شمیر یې په تیښته بریالي شول، نورویې له مایوسۍ نه وسلې کیښودې.

*****

(٦)

د لوشه په محاذ ابو الحسن له دیرش زره پوځ سره د فردیناند له پنځوس زره لښکر سره مقابل شو، دوې ورځې د فردیناند افسرانو او د غرناطې د سرتیرو ترمنځ د تن په تن جګړې او غیرت ښودلو په ننداړو تیرې شوې جګړه داسې پیل شوه چې د فردیناند یو پوځې پهلوان چې له سره تر پښو په اوسپنو کې پټ ؤ اس پورنده کړ او میدان ته راغی، هغه توره اوچته کړه او د مقابلې لپاره یې ځوك وغوښتل، نعیم بن رضوان چې پر سریې خول ؤ او په بدن یې یوه نرۍ زغره اغوستې وه آس ور وزغلاوه.

د دواړو سپرو تورې وجنګیدې، د قسطلې جنګی پهلوان د درنې زغرې په وجه دومره چست او چالاکه نه ؤ لکه نعیم بن رضوان خو د هغه په پرېړه زغره د نعیم توره څو ځلی ولګیده خو هیڅ پرې ونه شول، د هغه څو ګوزاره نعیم پر ډال واخستل او بیا یې په پوره ځواك د هغه په مټ د توری وار وکړ، د زغرې په سبب هغه زیات تپی نه شو خو د ګوزار له زوره په یوه خوا خم شو، نعیم هغه ته د بیا سمبالیدو موکه ورنکړه څو ځلې یې پرله پسې ګوزارونه پرې وکړل، د هغه آس وترهید او پهلوان د آس له شانه لاندې ولوید، هغه د بیا جګیدو هڅه وکړه، خو نعیم له اس نه پلی شو د هغه له سره یې خول لرې کړ او په توره یې سر ترې قلم کړ، له دی سره د ابو الحسن پوځ د تکبیر نارې اوچتې کړې.

د فردیناند دوهم پهلوان را ډګر ته شو، له دی لوری الزیغری نیزه

بایلود اوله اس نه راوغورځید، الزیغری له اس نه پلی شو او د هغه کار یې هم پای ته ورساوه.

د دوارو پهلوانانو له مرگ وروسته فردیناند د عامی حملې حکم وکړ، ترماښامه تن په تن جگړه روانه وه، د شپې په تیاره کې دواړه لښکر خپل خپل پراوته ستانه شول، دوهمه ورځ هم همدغسې جگړه له تن په تن جگړې نه پیل شوه، له دواړو خواونه څو تنه راغلل او د همت او میړانې ننداره یې وړاندې کړه او بیا عامه جگړه ونښته ، تر ماښامه څه پریکړه ونه شوه، له دواړو خواو نه د لومړۍ ورځې په نسبت د مړو او ژوبلو شمیر زیات ؤ، دریمه ورځ دواړو پوځونو ته د اندیښنې او پریشانۍ ورځ وه، خو ابو الحسن تر دښمن نه څو چنده زیات پریشانه ؤ.

له غرناطې نه موسی دوه زره تنه د مرستې لپاره استولی ؤ ، خو په تیرو دوو ورځو کې دده پنځه زره تنه سپاهیان مړه او ټپیان شوی وو د ابو الحسن پوځ د افسرانو د اټکل له مخې د فردیناند د لښکر مړه او ټپیان تر شل زرو کم نه وو، خو پدې دوو ورځو کې هغوی ته د اندلس له هر لوری تر پنځلس زرو تنو پوری مرستندوی پوځ را رسیدلی ؤ.

د بدر بن مغیره په اره خو د ابو الحسن گومان دا ؤ چې په خپل لږ شمیر پوځیانو یې د قرطبې د لښکر لوی سیلاب درولی دی خو پردې تولو سربیره د ابو الحسن حوصله ماته نه شوه، د هغه د پوځ هر سپاهی له فتحې او ماتې نه بې پروا تر وروستې سلگۍ جگړې او مقابلې ته ملا تړلې ؤ، هغوی پردې باورو چې که له جگړې نه مخ وگرځوی او وتښتي هم په څو ورځو کې به دښمن تر غرناطې پوری وررسیږی.

دریمه ورځ چې دواړه پوځونه سره مخامخ شول، نو د قسطلې له پوځ نه یو

پوځ د خوښۍ ناري وهلې.

زغره اغوستونکی توره اوچته کړه او په میدان کی یی لنډه دوره وکړه ، د غرناطی د پوځ په لوری مخ واړاوه او د مقابلی لپاره یی د سیال په انتظار شو.

نعیم بن رضوان له ابو الحسن نه د اجازې غوښتو په خاطر ور وړاندی شو، خو په دی څنډ کی له یو لوري یو سپور راښکاره شو، د هغه د اس له خولونه ښکاریده چی له لیری راغلی دی، د هغه جامی هم د غرناطی د سپاهیانو نه بیلی وی، د زغری پرځای یی سپینه چپنه اغوستی وه او پر سر یی د خول پرځای سپینه پګړۍ تړلې وه، له سترګو پرته یی نور مخ په سره نقاب کی پوښلی ؤ، هغه د غرناطی د لښکر په صفونو کی لاره وکړه ، او وړاندی ولاړ د مقابلی ډګر ته ووت، خپله توره یی په تیکی کی کړه، خلکو ګومان کاوه چی هغه به په نیزه حمله وکړی خو ده بیا نیزه هم په ځمکه کی ښخه کړه، دواړو خواو ته ننداړچیان د هغه پردې کار حیران شول.

نقاب پوښ ناڅاپه اس پړنده کړ، عیسوی پهلوان نیزه برابره کړه او د هغه په لور ورغی، خو هغه ځان چپ کړ او وړاندی تیر شو، خپل ګرندی اس یی له یوه وړوکی چکر وروسته بیرته راوګرځاوه

او د زغره پوښ پهلوان په لوري ورغی هغه چې تر اوسه پورې خلکو تش لاسی ګانه اوس یی ورسره یو کمند ولید، پخوا له دې چې د زغره پوښ هغه ته پام شوی وای او آس/یی راګرځولی وای هغه د برښنا په څیر ور وړاندی شو پری یی د هغه په غاړه کی ور واچاوه د عیسویانو دغه پهلوان چې په پوځ کی یو بی سیاله سپاهي ؤ او د درندې وسلې او زغرې په وجه څلورو تنو په اس سپور کړی ؤ د غره په څیر له اس نه را پریوت، د کمند بل سر د نقاب پوښ په زین پورې تړلی ؤ

هـغه به خامخا ډیره شانداره وي، خو زه تر فتحې هم زیات ستا په راتګ خوښ شوم، زه د غیبي مرستې په انتظار وم، څومره پوځ دي سلامت رارسولی دی؟

بدر : زموږ یوازې پنځه سوه تنه زیانیدلي دي، خو دوه زره تنه مو نور زیات شوي دي، منصور هم رارسیدلی دی.

ابو الحسن ناڅاپه اندیښمن شو ویې ویل : مګر پوځ دي ولې نه دی راوستی نن د وروستي پریکړې ورځ ده.

بدر ځواب ورکړ : ته چورت مه وهه، هغوی به لږ وروسته راورسیږي.

الزغل د تکبیر ناره اوچته کړه ویې ویل : مسلمانانو ! نن ستا سو لپاره مبارکه ورځ ده، د قرطبې پوځ میدان پریښود او وتښتیدل، او ستاسو سرحدي عقاب ستاسو مرستې ته راورسید.

سپاهیانو چې دا واوریدل د خوښۍ نعرې یې اوچتې کړې، بدر الزغل ته وویل : ویخښنې تاسو دوی ته خبر بشپړ ونه رساوه، موږ د قرطبې پوځ ته د تیښتې فرصت ورنه کړ، هغوی نژدې ټول په میدان پراته دي، یوازې پنځه یا شپږ سوه تنه به تښتیدلي وي، نعیم بن رضوان الله اکبر نعره اوچته کړه او د خپل آس جلب یې سم کړ ویې ویل : ددې برې په خوښۍ کې نن زه د قسطلې د پنځلسو سپرو د وژلو تعهد کوم، خو د نیك شګون لپاره ستا نیزه راسره اخلم، دایې وویل ور وړاندې شو خپله نیزه یې بدر ته ورکړه او په میدان کې ښخه د بدر نیزه یې را وایستله د فردیناند څلور جنګي پهلوانان یو پر بل پسې راغلل او نعیم څلور واره یو پر بل پسې ووژل. د وروستي پهلوان له وژلو سره سم هغه د عامې حملې حکم ورکړ.

*****

(۷)

بن مغیره ئې تر ملا لاس راتاو کړ او هغه یې په خپل مخ کې کیناوه، غوښتل یې د ټپیانو خیمې ته یې ورسوي او د جګړې له میدان نه یې وباسي، خو نعیم ورته ووېل : بدره زه پوهېږم چې زما نور ژوند پوره شوی، خو ما تر اوسه پورې خپله عهد نه دی پوره کړی ، ما د دښمن څوارلس سپاهیان وژلي او یو لا پاتې دی، زما په زخم لاس ونیسه چې وینه ترې راونه وزي، خپله نیزه ماته راکړه اوما دښمن ته نژدې بوزه، پرې مې ږده، چې خپل تعهد ترسره کړم بیا مې چې چېرته بیایې بومې زه.

بدره ! دا یوه هیله ده!

په بدر د هغه خبرو اِثر وکړ، نیزه یې په لاس کې ورکړه او د هغه په زخم یې لاس ټینګ کړ اس یې ددښمن د پوځ په لوري ورنژدې کړ، خو کله چې د دښمن د یوه سپاره په لوري ورنژدې شول بدر احساس کړه چې د هغه لاس په نیزه کمزوری کیږي، هغه د نیزې نیغې ساتلو په خاطر د نعیم لاس په خپل لاس کې ونیواو ویې وېل : پام کوه! دا د پنځلسم ښکار دی.

نعیم په نیم بې هوښې حالت ووېل : بدره ! ما له ځان سره ونیسه کاشکې ما خپل عهد پوره کولی شوای.

بدر ووېل : تا خپله وعده پوره کړه، دایې ووېل او بیا یې نیزه د یو سپاره په سینه کې چې مقابلې ته یې را روان ؤ ور ښخه کړه، عیسوی سپور له آس نه لاندې ولوید، او ورسره سم نعیم هم بې سده شو او سر ئې ځوړند شو، بدر اس پونده کړ او د ټپیانو خیمو ته ورنژدې شو، څو ځوانانو نعیم بن رضوان له اس نه کوز کړ او یوې خیمې ته یې یوړ.

بدر بن مغیره له اس نه پلی شو خیمې ته ور ننوت، بشیر بن حسن د زخمیانو په پټې مصروف ؤ د هغه ژر نعیم بن حسن ته پام شو،

مرگ لاس نیولی ، دی په هوښ راځي.
که په هوش راغی ورته ووایه چی وعده دی پوره کړی ده.
بدر دا وویل نیزه یی واخستله او په منډه له خیمی نه ووت او په یوه توپ په آس سپور شو.
لږ ځنډ وروسته چی بدر د فردیناند په پوځ کې د ماتې نخښې ولیدلې خپل دیرغل سپاره یی راټول کړل ورته ویې ویل د دښمن تعقیب ته ځانونه چمتو کړی.
له ماښام نه لږ وړاندې د فردیناند پوځ د مړیو انباروته پریښودل او وتښتیدل، کله چی سپاهیان پر ابو الحسن راټول شول د بری نعری یی وهلی ، هغه له آس نه راکوز شو او سر یی په سجده کیښود ، او کله چی راپورته شو له سترګو یې د شکر اوښکی روانې وې.
ابو الحسن یوې او بلې خواته وکتل بیا یې وویل : زموږ سرحدی شاهین چیرته دی؟
الزغل ځواب ورکړ : هغه له خپلو سربښندویانو سره تللی دی.
ابو الحسن : چیرته تللی؟
الزغل : په ماته خوړلیو پسې.
ابو الحسن : موږ منعه کړی ؤ سپاهیان ډیر ستومانه وو.
الزغل : خو هغه ماته وویل چی له تاسونه معذرت وغواړم، هغه په نیمګړې برې قایل نه دی، بیا هم هغه ستا د حکم په درناوی د غرناطې یو سپاهی هم له ځان سره نه دی ملګری کړی.
ابو الحسن وویل : تا غلط ګومان وکړ، په خدای سوګند چی که هغه زما ټول پوځ ورسره بیولی وای زه به پری خفه نه وم، زه دده د یو سړی زیان هم ډیر ستر زیان بولم.

ځان خبرول غواړم، عباسه ! ته له دوی سره وی، ده خو به د پوځ د حوصلې مزېوتولو په خاطر مبالغه نه وی کړی؟

عباس د غرناطې د پوځ یو افسر ؤ، هغه وویل : دا داسې پېښې دی چې یوازې د لیدونکو سترګې پرې باور کولی شی، د اورېدونکو غوږونه بنایی پرې باور ونه کړی، له دې نه وروسته عباس د جګړې ټوله کیسه وکړه، کله یې چې د منصور بن احمد د کارنامو یادونه وکړه ابوالحسن وویل : که زه پوهېدای چې د بدر بن مغیره په ځولۍ کې داسې غشې دی نو څو کاله وړاندې به مې د جګړې اعلان کړی ؤ.

د شپې له آرام نه وروسته چې کله ستومانه پوځیان د سهار په آذان راوېښ شول ابو الحسن له ډېرو ورځو وروسته پوره خوب وکړ، کله چې د ماښځه لپاره له خیمې نه راووت لومړنی پوښتنه یې دا وه چې بدر بن مغیره راستون شوی خو پهره دارانو ځواب ورکړ چې نه تر اوسه لا نه دی راغلی.

له ماښځه نه وروسته د ابو الحسن په غوښتنه د بدر بن مغیره او د هغه د ملګرو د سلامتۍ دعا وشوه، ترماسپېښن پورې د ابو الحسن پرېشانی په اندېښنه بدله شوه، هغه څو سپاره د بدر بن مغیره او دهغه د ملګرو د احوال په خاطر ولیږل ، او پخپله له خپلو جنرالانو سره په یوه غونډۍ وخوت د دوی د راتګ لاری یې څارلی.

ناڅاپه یوه افسر چیغې کړی هلته وګوری!

د ابو الحسن زړه له خوښۍ په ټوپونو شو، د سترګوتر څاره ګردونه اوچت وو، ابو الحسن څو تنه سپاهیان همغه لوری ته واستول، لږ ځنډ وروسته هغوی بېرته راستانه شول او د سرحدی شاهین د راتګ خبر یې راوړ.

الزغل وویل : دا زیری هم واوری!

ابو الحسن : د څه زیری!

# پلار او زوی

کله چې د لوشه په جگړه کې نعیم بن رضوان غوندی غازیانو په خپلو وینو د اندلس د برخلیك پریکړه لیکله د غرناطې په شاهي ماڼۍ کې یوه بله پریکړه لیکل کیده.

پر الحمه د عیسویانو د قبضې له خبر سره سم ابو داود خپل شاگرد ته ورغی او هغه یې چې غمجن ولید وی ویل :

شهزاده ! ما نه درته ویل چې د غرناطې د سلطنت د بیا جوړونې لپاره تقدیر ابو الحسن نه ته ټاکلی یې د اندلس د مسلمانانو ستوری به هغه وخت وځلیږي چې ستا پرسر د غرناطې د پاچهۍ تاج کیښودل شي، شهزاده ! ستا دوران راتلونکی دی.

ابو عبدالله : زما دوران خدای «ج» خبر دی څه وخت راځي، الحمه له لاسه ووته، او دا دی هغوی اوس هر وخت پر غرناطه حملې کولی شي.

ابو داود : مگر تا دانه ده احساس کړې چې دالحمه د لاسه وتلو سره څینو سردارانو دا احساس کړی چې په دې نازکو شیبو کې د غرناطې د امارت بدلول ضروري دي.

ما له څو بربري او هسپانوي سردارانو سره لیدلي دي، هغوی خپل قیمت ډیر درونډ نه دی ایښی.

ابو عبدالله : خو د موسی په موجودیت کې څوك سوڼ نه شي وهلی.

ابو داود : دوخت په رارسیدو به د هغه چاره هم وکړو، هغه سرداران چې

ابو داود : د مناسب فرصت په رارسیدو به بیا گورو.

ابو عبدالله : وخت په څه وخت راځي ؟

ابو داود : د ابو الحسن له ماتي وروسته به د غرناطي د خلکو پام ستا په لور شي.

ابو عبدالله : که هغه بريالي شي نو بيا ؟

ابو داود : زه گومان نه کوم، بري يوازي ستا په برخه کي دي، که د هغه يوه نيمه کاميابي هم په برخه شي نو دا به ئي د ډيري بدي ماتي پيش خيمه وي، هغه به ستا د ناسکه ورور په تخت کينولو هڅه کوي، ځکه خو يي هغه ددي لپاره چي په خلکو کي گران شي جگړي ته ورسره بيولي دي،

ابو عبدالله : که داسي وشول زه ددي جرئت نه لرم چي له خپل پلار سره جگړه وکړم.

ابو داود : ته بيغمه اوسه جگړي ته ضرورت نه پاتي کيږي.

څو ورځي وروسته چي ابو عبدالله د قرطبي د لښکر د تباهي خبر واوريد خپل استاد ته يي وويل : استازي خبر راوړي چي سرحدي شاهين د قرطبه له جبهي نه وزگار شوي او د لوشه محاذ ته روان شوي دي.

ابو داود وويل : شهزاده ! آوس هغه وخت رارسيدلي چي زه تري ويريدم.

امکان لري ابو الحسن د لوشه په محاذ بريالي شي دا بري به ستا د راتلونکي لپاره ډير خطرناك وي، کله چي پاچا ښار ته راننوزي نو د غرناطي اولس به يي د هري سهي او غلطي پريکړي تائيد کوي، د هغوی په نظر به ستا ناسکه ورور تر تا ډير د احترام او عزت خاوند وي د هغه په نظر به د هر عادي سپاهي درجه او احترام تر تا زيات وي،

ابو عبدالله مايوس شو ويي ويل : ماته هيڅ لاره په نظر نه راځي، کله چي ستا خبري اورم پريشانه کيږم، زما دماغ ما په داسي سمندر ور کوزيدو

کی پری نږدم. زه به دا درسره ومنم چی ستا پلار ستا په باب نیکه اراده لري، مگر اوس ستا عمر ٤٠ کلونو ته رسیدلی، فرض کړه ستا پلار شل کاله نور هم ژوندی وی تر هغه وخته به ستا عمر ٦٠ کاله شی او دا دعمر هغه وخت وی چی د ژوند تولی/هیلی مړی او تولی جذبی سړی شی ، او انسان په هنداره کی د خپلی څیری له لیدو ویریږی، او هغه وخت د انسان تر تولو لوی ضرورت یوه بستره وی، که هغه بیا په ماڼۍ کی وی او که په یوه څپره کی. هغه وخت به ستا عقل یقیناً دیر پوخ وی، خو هغه وینه چی انسان د دنیا لاندی کولـو ته چمتو کوی سړیږی، او دا بیا څوك ویلای شی چی پاچا به په راتلونکو شلو کلونو کی ستا په باب څوك خپلی پریکړی ته ارنه باسی.

شهزاده ! د عزت، شهرت او نومیالیتوب دروازه داسی نه ده چی څوك یی هیله وکړی ورته بیرته شی، هغه به تکوی، او کله کله به ئی ماتوی.

د لویو خلکو په ژوند کی یوه پریکنده مرحله راځی، څوك چی په سوچ کی وخت له لاسه ورکوی هغوی وروسته پاتی کیږی، د وخت په ریگونو کی د هغوی د پلونو خاپونه ورکیږی او څوك چی له جرئت نه کار اخلی هغوی سرمنزل ته رسیږی.

که څه هم تا ما ته د خپل زړه حال نه دی ویلی خو زه پوهیږم چې ته د غرناطی تخت او تاج ته ناکرار یی. تا که تر اوسه د ژوند ترتولو لویی هیلی د بشپړولو جرئت نه دی کړی سبب یې دا نه دی چی ته خپل پلار ته احترام لری، بده یی مه منه ویخښنی ددی دلیل دا دی چی ستا په زړه کی نامعلومه ویره ده، ددی خبری ویره چی دنیا به څه وایی، اولس به ستا په باب څه فتوی ورکړی، خو په یاد ولری، دا دنیا یوه کامیاب ډاکو ته فاتح وایی او ناکام مصلح د باغی په نامه پیژنی، که ابو عبدالله د غرناطی تخت

کې خپل ټول ژوند له لاسه ورکوی نو سر له نن نه زموږ لارې سره بیلې دی.

ابو عبدالله وړیل : د خدای «ج» په خاطر داسې مه وایه.

ابو داود : نو نن باید پریکړه وکړې بیا ښایي داسی موکه برابره نه شی.

ابو عبدالله زه چمتو یم : مگر زه اوس ددې توان لرم چی د خپل پلار پرخلاف بغاوت وکړم؟

ابو داود : ته په شل کلنی ددی ور وې،مگر تا د ژوند ډیر کلونه هسی ضایع کړی دی، پولیس زموږ په واك کې دی، د شاهی محل د ساتونکو مشر ستا دی، بربری او هسپانوي سرداران زیاتره ستا د امر منتظر دی، خزانه ستا په لاس کی ده.

ابو عبدالله وړیل : او موسی ؟!

ابو داود : مگر د ښار خلك !

ابو داود : په هغوی کی درز اچول کیدای شی، د عربی، بربری او هسپانوی ترمنځ داختلاف اور قابو شوی خو مړ شوی نه دی، زه له عربونه د مرستی هیله نه لرم په هغوی کې څو تنه پیرودل کیدای شی، خو ته عربی سرداران برطرف کړه پرځای یی بربری او هسپانوی سرادران وټاکه په دی کار کی دوی گټمی دی، یوه دا چی هغوی به ستا ملاتړی شی او بله دا چی د بربری او هسپانوی مسلمانانو او عربی مسلمانانو ترمنځ به د اختلاف اور بل شی، لومړی دوی ډلی به ستا ملاتړ وکړی ته د هغوی د لاخوښی په خاطر د هغوی بندیان ور خوشی کړه، ستا سره د وروستی پریکړی لپاره یوازی دوی ورځې فرصت دی، له هغی وروسته ښایی بیا موقع په لاس رانه شی، د موسی د نیولو په اړه ما سوچ کړی دی.

* * * * *

(۲)

ویی وویل : زه په پوازیتوب کی تاته څه خبره کوم.

ابو عبداله چی د هغه حالت ولید وویریده ، خو له یوی شیبی وروسته سمدستی بیرته راسنبال شو ویی ویل : ته چی څه وایی همدلته یی ویلی شی دا ټول د خدای «ج» پر فضل او کرم سره مسلمانان دي.

موسی وویل : ځینی خبری د هر چا د وړاندې نشي کیدای .

ابو عبدالله : مگر اوس زه دا مجلس رخصتولی نه شم، ته که څه خبره کوی نو دلته یی وکړه.

موسی مجلس سر تر پایه وکوت، په دوی کی زیاتره داسی څوك وو چی د لومړی ځل لپاره الحمرا ته راغلی وو تر اوسه پورې د پاچهی کوم امیر دا جرئت نه ؤ کړی چی موسی وینی خو دوی په کرسۍ ناست وی، د ابو عبدالله الفاظ یی چی واوریدل داسی یی گڼله چی غوږونو یی اشتباه کړی وی، د موسی بڼه له قهره وځلیده ، خو بیا یی هم له زغم نه کار واخست ویی ویل:

شهزاده : ما اوریدلی چی باغیان دی خوشې کړي دي.

ابو عبدالله : تاسهی اوریدلی دی.

موسی : او تا د پاچهی څو تنه وفادار سرداران برطرف کړی دي .

ابو عبدالله : زه د هغوی په وفا داری شکمن وم.

موسی : او تا د غرناطی لوی غداران په مهمو منصبونو ټاکلی دی.

ابو عبدالله په دروند غږ ځواب ورکړ : موسی ! له ما سره گستاخی ستا دنده نه ده.

موسی: د مسئولیت احساس کله کله انسان دیر بی باکه کوی.

ابو عبدالله : زه دا بی باکی نه خوښوم، تا په غلا مانی ته د ننوتلو جرئت ولی وکړ؟

گوابښ لاندی ده؟

موسی مخ ور واړاوه، هغه ته یی وویل :

هغه څوك دی چی زما په وړاندی د ابو عبدالله د سربښندویی دعوه کوی؟

یو بل سردار اوچت شو ویی ویل :

ولی عهد که اجازه وکړی زموږ توری دديِ گستاخ چوپړلو ته تیارې دی.

د موسی غږ له غوسی نه لړ زیده ویی ویل : ستا دومره جرئت؟

ایا ته هماغه غدار نه یی چی بربری مسلمانان دی د عربو پرخلاف پارول، آیا ته له بندي خانی نه الحمرا مانۍ ته راتگ د خپلو گناهونو تلافی گڼې؟ او ته چی په الحمرا کی څو غداران راغونډ گوری نو فکر کوی چی د موسی د توری او سپنه نرمه شوی ده؟

زه ابو عبدالله ته راغلی یم، که په تاسو کی څوك دا گومان کوی چی ما به له ابو عبدالله سره له خبرونه په توره ایسار کړی نو را وړاندی شی، زه وگورم څوك دی چی له خپل ورمیږنه د سردبوج لری کولو په تکل راوتلی دی؟

او ای شهزاده ! ته له بزدلانو نه د سربښندنی هیله لری، چی زما بوټیو شکولو ته تیاردی خو له ویری خپلو تورو ته لاس نشی ور نژدی کولی، ته د غرناطی دښمنان خپل دوستان گڼې؟

د ابو عبدالله حوصلی ځواب ورکړ له ځایه اوچت شو لږ وړاندی ورغی ویی ویل : موسی زما د وژلو په اراده دلته راغلیٔ یې؟

موسی خپله توره راوکښله ویی ویل : زه او ستا د وژلو اراده دا ته څه وایی ! دایی وویل او خپله توره یی ابو عبدالله ته ور وړاندی کړه.

ابو عبدالله توره واخسته یوی خوته یی وغورځوله او بیا یی لاسونه وپړکول، اته تنه وسله وال بربری او افریقایی غلامان ورننوتل او د ابو

ماشومتوب یې یو ځای سره تیر شوی ؤ، هغه چې د آس سپرلی او د توری او نیزی استعمال یې ورښودلی ؤ، هغه حیران ؤ څه غلطی تری شوی ده، سهار ابو عبدالله پخپله ده ته ورغلی ؤ چې شاوخوا کلیو او دروته ولاړ شه او سپاهیان تری راټول کړه.

او ماښام چې کله بیرته راستون شو خبر شو چې ابو عبدالله باغیان خوشی کړی دی او څو تنه وفادار منصبداران یې برطرف کړی دی.

هغه په دې خبر پریشانه ؤ خو پردی یې باور ؤ چې هغه به د خپلی غلطی جبران ته چمتو کړی، له دودی خوړلو پرته له کوره ووت د الحمرا دروازی یې پرمخ بندې وی، او نوی پهره داران پری دریدلی وو خو موسی په یوه پټه لاره محل ته ننوت له ابو عبدالله سره هغه پخوا هم څو ځله دیر تووند تللی ؤ، خو نن چې کوټی ته ورننوت دا یې احساس کړه چې دده د ووکتوب دوست بدل شوی دی.

او کله یې چې توره را وکښله او ور وړاندی یې کړه نو دده باور ؤ چې ابو عبدالله به دی ترلاس ونیسی بلی کوټی ته به یې بوزی او ورته وایی به : ته په دومره ووکی خبره په غوسه شوی ؟ خو کله چې هغه توره وغورځوله موسی په زره گوزار وخوړ هغه ابو عبدالله ته کتل او پړغوړوکی یې دا جملی کړنګیدی: زه داد درکوم چې ته په کومه لاره راغلی یې په هغه لاره به بیرته نشی تلای.

هغه وسله والو سپاهیانو ته وکتل داسی یې ګڼله لکه دا ټول چې ابو عبدالله هسی په ټوکو له ده سره کوی.

موسی په موسکا وویل : ابو عبدالله زه ستا مجرم یم.

زه د لوشه د جګړی لپاره د رضاکارو غازیانو د راټولو مجرم یم، زه الحمرا ته له پټی لاری نه په راننوتلو مجرم یم، او زه دی غدارانو ته په غدار

ابو عبدالله سپاهیانو ته وکتل او په غمجنه لهجه یی وویل : دی بوزی ! موسی سر اوچت کړ، د سپاهیانو د لوڅو تورو په منځ کی دریدلی ؤ او هغو سردارانو هم چی تر اوسه یی د ابو عبدالله په مستقل مزاج شك کاوه توری ایستلی وی.

موسی چی د دروند غږ آزانگو به یی د هسپانیی دیوالونه لړزول په حیرانی ابو عبدالله ته کتل د غرناطی د مجاهد ژبه گونگه شوی وه،

ابو عبدالله ددی ننداری د لیدو تاب نه درلود، مخ یی واړاوه او په زوره یی چیغه کره : دی بوزی ؟ خو د هغه په غږ کی د غوسی پرځای درد ؤ.

موسی د څه ویلو نه پرته د سپاهیانو نه وړاندی روان شو، او ابو عبدالله په دسمال خپلی سترگی پاکولی او بلی کوتی ته ننوت ابو داود تورو سردارانو ته وویل : تاسو همدلته اوسی زه اوس بیرته راځم.

بلی کوتی ته ورغی ابو داود خپل شاگرد ته وویل : شهزاده !

د لویو خلکو زړه باید لوی وی.

ابو عبدالله په دردناکه لهجه وویل : خو هغه زما ملگری ؤ زما دړوکتوب ملگری.

ابو داود وویل : هغه ستا د لاری یو بنکلی ازغی ؤ چی ستا ورسره مینه وه، خو خپل هدف ته د رسیدو لپاره به ته دی غوندی ډیر ازغی له مخی لرې کوې، که موسی وغواړی اوس هم ستا د تاج غمی کیدای شی، خو له هغه نه دا تمه هغه وخت کیدای شی چی د غرناطی د پاچهی بل دعوه دا رنه وی، کله چې دی پر دې پوه شی چې تا د ابو الحسن ځای نیولی دی نو هغه که له بندیخانی راوباسی ستا پرخدمت به یی اعتراض نه وی، اوس پاڅه دا د چورتونو وخت نه دی د کار وخت دی.

* * * * *

رایه زور واچاوه چې فردیناند ته د دمی کولو او ساه اخستلو موکه باید ورنکړو.

هغه وویل : له دې فتحې نه وروسته چې سمدستي موږ په هره سیمه حمله وکړو نو دښمن به په هیڅ دګر هم زموږ مقابله ونکړای شي په دې کې شك نشته چې که موږ غرناطې ته ستانه شو څو زره نور پوځیان به راټول کړای شو، خو دا باید هیرنه کړو چې د دښمن وسایل تر موږ څو چنده زیات دي، هغوی به له دې ځند نه زیاته ګټه واخلي، نه یوازې د اندلس عیسویان بلکې د فرانسې او ایټالیا د صلیب پالونکې به هم د دوی مرستې ته راودانګي، تر ټولو زیات د اندیښنې ټکې دا دی چې فردیناند به ددغې ماتې بدل له مسلمانانو نه واخلي، چې همدا اوس هم د غرناطې له نفوس نه زیات دي، ددې پرخلاف که موږ سمدستي حمله وکړو د اندلس د هرې سیمې مسلمانان به زموږ مرستې ته تیار وي او د هغوی شمیر به له هغو سپاهیانو نه ډیر زیات وي چې موږ یې غرناطې ته له ستنیدو وروسته نوي راټولولای شو، موږ ته تر ټولو لویه مسئله د خوراك او جبه خانې رسولو ده، ددې ذمه واري زه اخلم، الزغل د بدر بن مغیره د رایې تائيـــد وکړ ويې ويل، له دې برې وروسته د قسطلې تر دیوالونو پورې زموږ په وړاندې د سخت مقاومت امکان نشته، موږ باید را پریوتي دښمن ته د بیا سمبالیدو موکه په لاس ورنکړو تر کومه چې له غرناطې نه د نویو پوځیانو راټولولو مسئله ده زما په ګومان تر موسی زیات ددې کار اهل نشته.

یو بوډا سردار ویل : زه هم په دې خیال یم چې موږ باید د شاتګ پرځای پرمخ ولاړ شو ،خو زما رایه دا ده چې پاچا دا مسؤلیت الزغل ته وسپاري او پخپله بیرته غرناطې ته ستون شي، په تیرو پیریو کې موږ په دغسې مرحلو کې به خپلمنځي دزبونو ډیر تاواني شوي یو. په دې کې شك نشته

ردم، زه وعده کوم چې د یوې بلې شانداري فتحې نه وروسته به ستنیږم.

د ماښام لمانځه ته د جګیدو نه وړاندې د شورې غونډې پریکړه وکړه چې سهار ته به کوچ کوي، سبا سهار ته له لمانځه نه وروسته ابو الحسن خپل پوځ ته وینا وکړه ویې ویل :

غازیانو : د لوښه ویاړمنه سوبه زه د خدای «ج» یو لوی انعام ګنم، دا ددې خبرې ثبوت دی که مسلمانان اوس هم سره یو شي نو د کفارو ځواک به توته کړي او که دوی د جهاد په جذبه را اوچت شول اوسپنې یې هر ډول اوسپنې غوځولې شي، دې برې موږ ته د بریو دروازې پرانیستې او که موږ همت له لاسه ور نه کړ نو هغه ورځ لرې نه ده چې د قرطبې او اشبیلیې په ماڼیو بیرته زموږ جنډې ورپیږي.

ستاسو به یاد وي چې دې هیواد ته د اسلام لومړني مجاهد طارق بن زیاد له ډیر لږ شمیر مجاهدینو سره راغلي ؤ، لوی سالار هغه ته یوازې دا اجازه ورکړې وه چې دوی ددې هیواد حالات معلوم کړي او بیرته ستانه شي، خو د هسپانیې په ساحل له پلې کیدو سره سم ددغه غازي اراده بدله شوه خپل لوی سالار ته یې پیغام واستاوه چې ما د اندلس په ځنډو د اسلام بیرغ ورپاوه، او ترڅو چې دغه بیرغ ددې هیواد تر وروستي ځنډې ونه رپوم بیرته به راونه ګرځم، تازه د «رادرک» د ځواک معلومولو لپاره را استولی یم، په اندلس کې به زما د پرمختګ له توندۍ نه د هغه دځواک اندازه معلومه شي، بیا طارق خپلو سربښندویانو ته ووېل چې موږ د «رادرک» په واکمنۍ کې د خپل عظمت د بیرغ رپولو لپاره نه یو راغلي، بلکې د خدای «ج» پر ځمکه د همغه ذات «ج» د عظمت جنډې اوچتول غواړو.زموږ شمیر لږ دی خو د مسلمانانو د قوت راز د دوی شمیر نه دی د دوی ایمان او خلوص دی.

تاسو د لوشه په جنگ کې دا ثابته کړه چې ستاسو یوه توره د دښمن دلسو تورو په وړاندې مقابله کولی شي، دغې بری زموږ په مخ کې د کامیابی دروازې خلاص کړې، په قسطله او اراغون کې زموږ د مظلومو وروڼو دعاګانې قبولې شوې په دې کې شك نشته چې که موږ د څو ورځو لپاره غرناطې ته ولاړ شو، نو هلته به د فتحې په جشن کې شریك شو، خلك به ګلونه راباندې وشیندي، خو که موږ د قرطبې او اشبیلیې لورې ته مخه کړو نو هلته زموږ خویندې او وروڼه له کلونو راسې یوازې په دې تمه د عیسویانو ظلمونه زغملي دي چې یوه ورځ به له غرناطې نه د دوی مرستې ته مجاهدین ور ورسیږي او هلته به زموږ هر کلی د ګلونو د شیندلو پرځای د شکرانې او احسان په اوښکو کیږي.

له نن نه څو ورځې وړاندې چا ددې تمه درلوده چې خدای «ج» به موږ ته دومره لوی بری را په برخه کړي، او ددې بری نه وروسته څوك دا ویلای شي چې څو ورځې وروسته به زموږ آذانونه د قرطبې او اشبیلیې د جوماتونو نه راغبرګیږي، او زموږ جنډې به د قسطلې په شاهي مانۍ نه رپیږي؟

د ابو الحسن په وینا د هر سپاهي په زړه کې د هیلو او امیدونو نوې ډیوې بلې شوې، هغوی په خیال کې د قرطبې او اشبیلیې محلونه لیدل، د قسطلې په شاهي مانۍ یې خپل بیرغونه رپول، دوی د کلونو کلونو راښکیلو مسلمانانو په سترګو کې د خوښۍ اوښکې لیدې، په تصور کې هغوی ته مخاطب وو چې : نور تاسو آزاد یاست.

نور موږ څوك نشي مریان کولی، اندلس زموږ دی موږ پر دې پښیمانه یو چې ولې تر اوسه ستاسو له حال نه بې خبره پاتې وو، خو ابو الحسن د وینا په حالت کې ناڅاپه چوپ شو، د هغه پام د لږ شیبې لپاره یو ځوان ته

الحسن د زړه ټکانونو دا گواهي ورکوله چې دی سپور کوم ښه خبر نه دی راوړی، خو بیا هم هغه د لاس په اشاره سپور ودراوه او د خلکو پام یی ځان ته کړ خپله وینا یی پیل کړه،

الزغل چې له ابو الحسن سره نژدی ولاړ ؤ د نوی راغلی سپاره په لوری ورغی هغه ته ورنژدی شو ویی ویل : ته له غرناطی نه راغلی یی؟

ځوان ځواب ورکړ هوکی ! ما یو ډیر ضروري خبر راوړی دی.

الزغل : ته موسی را استولی یی؟

سپور : نه زه پخپله راغلی یم.

الزغل : که ته د موسی له لوري نه یی راغلی نو خبر دی مهم نشی کیدای او تا باید ددی خبری خیال ساتلی وای چې د غرناطې پاچا خبری کولی.

سپور : خو زه چې په کوم حال کی دلته را رسیدلی یم که پری خبر شی نو زما دغه جسارت به د بخښنی وړ وبولی.

الزغل وویل : روایه څه وایی ؟

نوی راغلی سړی یوی او بلی خواته وکتل ویی ویل : نه دلته نه !

الزغل اندیښمن شو ویی ویل : راځه !

له غونډې نه لږ ووتل الزغل هغه ته وویل: ما تهدکوم بد خبر له اوریدو وراندی دا راته ووایه چې ته څوك یی ترڅو زه پری وپوهیږم چې ستا خبره څومره ارځښت لری او په دی هم سوچ وکړه چې د جګړی په وخت کی د دروغ اوازو خپرونکو ته درنده جزا ورکول کیږی.

نوی راغلی ځوان وویل : که تا په خیر راته کتلی وای زه به دې پیژندلی وم، زه د الحمرا د ساتونکو د مشر زوی یم.

زه د هبیره بن سعید شاگرد یم، له څو ورځو راسی می له موسی سره د

په دې څنډ کې الزيغري هم ور ورسيد، څوان يې له لرې وپېژاند.

ويې ويل : سليمانه ! خير خو به وي؟

سليمان يوه شيبه الزيغري ته وکتل او بيا يې الزغل ته مخ واړاوه ويې ويل : ما ډير بد خبر راوړی دی ، په غرناطه کې بغاوت شوی.

الزغل په چيغه وويل : نه ! نه ! تا خوب ليدلی دی، د موسی په موجوديت کې بغاوت امکان نه لري، تا خوب ليدلی ته د دښمن جاسوس يې او زموږ پام له جګړې نه په بله اړول غواړې، ووايه دا دروغ دي، الزغل په دواړو لاسو سليمان تر مټو نيولی ؤ او جټکې يې ورکولې، سليمان په وار وار دا ويل : کاشکې دا دروغ وای ، خو دا دروغ نه دي ، کاشکې دروغ وای!

الزغل : مګر موسی دا بغاوت کړی ! ته ليونی يې دا بلکل امکان نه لري.

سليمان وويل : موسی د ابو عبدالله په زندان کې دی.

الزغل سليمان ته ډيکه ورکړه او په شايي وغورځاوه او الزيغري ته يې وويل : دا بوزه، ليونی دی، ابو عبدالله ما وژلی شي، خپل پلار بندي کولی شي خو هغه په موسی څان وژني، دا ليونی بوزه.

سليمان وويل : تر نن ماښام پورې به نور خلك هم راشي او زما خبره به تائيد کړي، ابو عبدالله د خپل امارت اعلان وکړ هغه باغيان خوشې کړل او د عربو سردارانو پرځای يې هغوی وټاکل، کومو اميرانو چې دده امارت ونه مانه له هغوی نه څو تنه ووژل شول، او نور يې بنديان دي، پر الحمرا د بربري او هسپانوي سردارانو قبضه ده، په ښار کې هغوی د خپل قوم خلك له عربو سره جنګوي، زه دانه شم ويلی چې تر اوسه پورې څومره کورونه سوځېدلي دي او څومره خلك وژل شوي دي ، زه ويرېږم چې تر اوسه پورې

خبرو وروسته سرونه ښکته واچول او دده په لوري را روان شول نو دده زړه په درزا شو، غږيې کيناست، د الزغل څېره يې چې وليده دا اندازه لګول ورته آسانه وو چې استازي کوم ښه خبر نه دي راوړي، هغه ويښا بس کړه، لاس يې اوچت کړل او د برې لپاره يې دعا وکړه، بيايې په پوښتونکې نظر الزغل ته وکتل.

الزغل ور ورانډې شو ورته وېې ويل : راځئ.

ابو الحسن : چيرته خير خو دی؟

الزغل : خپلې خيمې ته.

د الزغل له غمجنې لهجې نه د ابو الحسن زړه لويد، له ستيژ نه راکوز شو او له هغه سره د خپلې خيمې په لوري روان شو، څو سرداران ورسره ملګري شول خو الزغل د لاس په اشاره هغوی منعه کړل ويې ويل: تاسو زما په خيمه کې راټول شئ زه اوس دستي راځم.

لږ چې ورانډې ولاړل ابو الحسن وويل : د کوم بد خبر له اوريدو نه ورانډې ماته دومره ووايه چې استازي له کوم ځايه راغلي ؟

له دومره لويې سويې نه وروسته په معمولي خبره موږ ته دومره انديښنه په کار نه ده، ووايه څه خبره ده ستا چوپتيا نوره راته له زغم نه وتلې ده.

الزغل هيڅ ځواب ورنه کړ، سليمان چې تر اوسه همالته ولاړ ؤ د الزغل په اشاره ورغی.

ابو الحسن سيلمان ته وکتل ويې ويل : ته له کومه ځايه راغلی يې؟ ووايه ماته څه غټ غټ ګوري ! آيا تا داسې کوم خبر راوړي چې د سرحد کوم کلی او يا ښار ګوتې زموږ له واکه وتلی دی او عيسويان د هغه ځای له مسلمانانو نه بدل اخلي.

سليمان د ځواب پر ځای الزغل ته وکتل هغه د سر په اشاره د چوپتيا

ابو عبدالله ته څه پیښنه شوي؟ په خدای سوگند دی داسې خبرونه به ما پرېشانه نه کړي، او که قاصد دا خبر راوړی ؤ چې زموږ کومه سرحدي کلا دښمن نیولي ده نو دا خبر خو تا د پوځ په مخکې راته آورولای شو، موږ له نویو حالاتو سره د مقابلې لپاره خپل کوچ یوه ورځ ځنډولی شو.

الزغله ! ستا ژبه ولې گونگه ده! ووایه دا کوم زیان دی چې جبران یې ددې غازیانو تورې نه شي کولی؟

دا کوم محل رالوېدلی چې دغه غازیان یې بیرته نشي ابادولی؟ د یوه سالار ترټولو لوی دولت د هغه سپاهیان دي، له موسی او ابو عبدالله نه پرته چې څوك په ما ډېر گران دي هغه ټول دلته له ما سره دي د هیڅا مرگ هم ماته له زغم وتلی نه دی، ایا تاسورنه لیدل چې د نعیم بن رضوان په لحد کې ایښودو په وخت زما په سترگو کې اوښکې نه وې، حال دا چې هغه ماته له ابو عبدالله نه کم نه ؤ.

په دې څنډ کې د ابو الحسن خیمه را نژدې شوه، ابو الحسن مایوس شو گرندۍ خیمې ته ورغی، چې په خیمه ورننوتل الزغل ابو الحسن په کرسۍ کښیناوه، ورته ویې ویل : زما وروره ! قاصد د یوې بدې پیښې خبر راوړی ابو عبدالله د خپل امارت اعلان کړی، باغیان یې له بنده خوشې کړي او په منار کې یې خپلمنځي جگړې پیل کړي، زموږ په مخ د غرناطې دروازې تړلې دي، موسی د ابو عبدالله په زندان کې دی.

پر ابو الحسن دا الفاظ لکه تندر راپرېوتل، ناڅاپه جگ شو خو توازن یې گډوډ شو او بیرته په کرسۍ کې ولوید، هغه د څه ویلو هڅه وکړه خو ژبه یې گونگه شوې وه، په ړدو ړدو ستر گوئي الزغل او سلیمان ته کتل او د هغوی په غمجنو څېرو یې د خپل برخلیك الفاظ لوستل.

الزغل وویل : زه اوس حیران یم چې پوځ ته دا خبر څه ډول ور ورسوو،

همدلته وای، ته اندیښنه مه کوه زما باوردی چې د لوښی د فتحی خبر به یو ځل بیا د غرناطی په خلکو کې ایمانی جذبې راوپښې کړي، هغوی به د ابو عبدالله پرخلاف بغاوت وکړي او موږ ته به د غرناطې دروازې بیرته کړي، جګ شه له همت نه کار واخله اوس د سوچ وخت نه دی.

د ابو الحسن شونډې رپیدې، خو غږ یې چوپ ؤ سلیمان ورو وویل : ډاکتر راوغواړي د پاچا حالت ښه نه دی، الزغل ورتیت شو ورور ته یې وکتل او بیا په بیړه له خیمې نه ووت او یوه پهره دار ته یې وویل : زر شه بشیر بن حسن راولی ! هغه به د تپیانو خدمت کوی ورته ووایې چې د پاچا وضعه ښه نه ده، خو هغه ته یوازې ووایې د چا د ورانډی نه.

لږ څنډ وروسته بشیر بن حسن خیمې ته ورننوت، هغه چې د پاچا حالت ولید الزغل ته یې وویل : پرده د فلج حمله راغلی خو ډیره تیزه نه ده انشاء الله زر به په آرام شی داسې ښکاری چې ډیره لویه صدمه یې لیدلې ده.

*****

(۵)

لږ څنډ وروسته : الزغل سلیمان ته وویل : ته ولاړ شه استراحت وکړه خو چاته په دی اړه څه مه وایه، بیایې بشیر بن حسن ته وکتل وېې ویل : که زما وجود تر لږ څنډه دلته ضروری نه وی نو ماته اجازه راکړه.

بشیر بن حسن وویل : د پاچا سترګې ستا په څیره ښخې دی زما په ګومان تر څه څنده ستا لرې کیدل هغه ته ګتور دی.

د هغه پام به په بله واوړی.

الزغل چې خپلې خیمې ته ننوت د پوځ تول لوی لوی افسران هلته غوند وو، هغوی تر الزیغری راچار پیرشوی وو او پوښتنې یې ترې کولې، خو هغه په زوره زوره وویل : زه خبر نه یم سلیمان یوازې پاچا ته څه خبر راوړی ؤ.

هغو سپاهیانو چې تر لړ شیبو وړاندې به قرطبه او اشبیلیه د فتحې د بیرغونو رپولو او په جوماتونو کی د آذانونو کولو ښایسته خوبونه لیدل اوس د خپلو کورونو د ژغورنی په خیالونو کی سرګردانه وو، هغه شاعرانو چی د لوشه د غازیانو په ستاینه کی یی قصیدی ویلی اوس یی د ابو عبدالله په غداریٔ مرثیې لیکلی، د اندلس د تقدیر ستوریٔ له یوی پیکه موسکا وروسته د بدمرغیو په تورو وریځو کی پټ شوی ؤ.

سبا ته د بشیر بن حسن د مسیحایی علاج په برکت له ابو الحسن نه د خبرو کولو تللی ځواك بیرته راغبرګ شو، د هغه لومړی خبری دا وی چی : زما زویه ! دا دی څه وکړل، دا تخت چی تا په زور واخست ستا ؤ، خو تا د پاچاهی په مینه کی د اندلس د مسلمانانو راتلونکې برباد کړه، خدای دی نه کوی چی ستا کرلی د اندلس مسلمانان وریبی، زما زویه، زما عبدالله ! مګر ته زما زوی نه یی او بیا په اړخ واوښت مخ یی په بالښت پټ کړ او په سلګیو شو.

دری ورځې وروسته یی له اعصابونه د فلج اثر لرې شو خو د ژوند هغه تودوخه یې چې په ٦٠ کلنی یی له ډیرو ځوانانو نه لمبر وور سره شوی وه.د ژوند یوی پیښی له تورو سره لوبیدلی مجاهد په لکړی ګرځیدو راګرځیدو ار کړ.

د پوځ د سردارانو دزیاتو پریکړه دا وه چی اوس باید غرناطی ته ولاړ شو، او غرناطی ته نژدی به په یوه ښار کی تم شو ابو عبدالله ته به هیأت واستوو، که هغه په سمه لاره برابر نه شو نو له مجبوری به نې په توره برابروو او که خدای «ج» مه کړه خبره جګړې ته ورسیده نو د ښار خلك به د ابو عبدالله پرخلاف پاڅون وکړي، د غرناطې د بغاوت په وجه چې په لښکر کی کومه اندیښنه خوره ده پوازینی چاره یی همدا ده چی به غرناطه ز تر

ورځ وراندې له غرناطې نه څو تنه سپاره د ابو الحسن په خدمت کې حاضر شول.

هغوی ابو عبدالله ته له بد رد ویلو وروسته ابو الحسن ته وعده ورکړه چې د وینو تر وروستی څاڅکی به دده ملاتړ کوی، او په غرناطه کی د دوی تر تأثیر لاندی خلك هم د ابو الحسن د ورتلو په انتظار دی، ابو الحسن له دې ډلې سره ډیر په درناوی او عزت چلند وکړ، څو څلور ورځې چې دوی د ابو الحسن په لښکر کې پاتې شول خپل مقصد ته ورسیدل، ابو داود دوی د ابو الحسن په پوځ کی د درز اچولو لپاره استولي وو، هغوی لومړی د پوځ عربی سرداران وپارول، هغوی ته یی ویل چې په غرناطه کی ستاسو عزیزان او قومی د بربری او ځایی خلکو په لاس وژل کیږی، بیا یی بربری او ځایی سردارانو او سپاهیانو ته وویل چی د ابو عبدالله پاچاهی ستاسو لپاره رحمت دی، هغه د عربو لوی لوی سرداران برطرف کړل پرځای یی ستاسو د قوم خلك وټاکل، ستاسو گټه په دې کې ده چې غرناطې ته ولاړ شی له ابو عبدالله سره د وفا داری اعلان وکړی، ځینی یی په دی تمه کړل چی ابو عبدالله به لوی لوی منصبونه در کړی، ځینی یې چې په تمه نه ایلیدل په دی یی وویرول چې کوم سرداران له ابو الحسن سره وفا دار پاتې شی خپلوان او کورنی به یې په غرناطه کې ډیره بده سزا وگالی.

د کم حیثیت خاوندان یی د سرو او سپینو په تمه د ځان کړل.

دا کار هغوی په دومره هوښیاری وکړ چی د ابو الحسن سر ښندویان پری پوه نه شول، په لومړی ورځ یی په پوځ کې هغه خلك ومونډل چی له پخوایی پیژندل او د دوی تر اثر لاندې وو بیا یی د هغوی په مرسته د نورو د تیر ایستو کار پیل کړ.

یو ماښام ابو الحسن له پوځ سره له غرناطی نه شل میله لیرې پړاو واچاوه

جگړه به ورسره وکړو، ځينو سردارانو دا مشوره تائيد کړه، خو ځينو نورو مخالفت وکړ، بالاخره ابو الحسن درنځ او غم نه په ډکه لهجه وريل : هغوی پريږدی چی ولاړ شی، زه مې په ژوند کی د مسلمانانو توري يو له بله تکر ته نه پريږدم.

ددې دردناکې پيښې نه وروسته پاچا ابو الحسن مالقه ته مخه کړه د مالقه والی پخوا د ابو عبدالله د پاچاهی له منلو نه انکار کړی ؤ، هغه د ابو الحسن ډير تود هرکلی وکړ او خپل محل يی ده ته خوشی کړ. څو ورځی نه وی تيری چی شاوخوا ټولو سردرانو له پاچا سره د وفاداری تعهد وکړ.

د غرناطې پاچهی چې څه وخت وراندې يې اولس د ټول اندلس د آزادی لپاه راپاڅيدلی ؤ، په دوو پاچاهيو وويشل شوه، غرناطه او شاوخوايې د ابو عبدالله تر فرمان لاندې وه او مالقه او ورځيرمه شاوخوا سيمی د ابو الحسن تر واکمنی لاندې وې.

فرديناند چې څومره په خپلو ماتو خفه ؤ اوس پر غرناطه د ابو عبدالله په واکمنی خوښ ؤ او هغه پر ابو الحسن د وروستی ګوزار لپاره تياری نيولو.

* * * * *

(٦)

له دښمن نه دډيرې سترې ماتې خوړلو په وجه به هم ښايی د ابو الحسن حوصله نه ماتيدله خو دا ناکامی چې ده د خپل زوی له لاسه وه ، هغه ته له زغم نه وتلی وه، ده د خپل حال او راتلونکی هيڅ پروانه درلوده د هغه ورور الزغل او نورو خواخوږو به تسلې ورکوله، ورو ورو يې دملاقات ليوالوته د انتظار ځواب ورکاوه، په يوازيتوب به يی ډيرې اوښکې توبولې او ورو ورو يې د سترګو نظر هم ولاړ.

ليکي.

ابو الحسن ځواب ورکړ : زما توره خو ماته شوي ده.

بدر : ته مه مايوسه کيږه د نړۍ هر لوی انسان له داسي حالاتو سره مخ شوي دی.

ابو الحسن : ته داسي خلك لوی انسان مه بوله چي عبدالله غوندي زوی ولري، ورځ‌ مايوسۍ پريږدئ ، زما سره له اوبنکو پرته هيڅ نشته ، پاچا بلي خواته مخ واړاوه، بشير بن حسن غلئ کوتي‌ته ورننوت او ورويي دوی ته وويل : د پاچا حالت منه نه دی ستاسو خبري د هغه په روح او بدن دواړو اثر کوي.

د هغه بله چاره نشته بيله ذی چي عبدالله په سمه لاره برابر کړای شي.

بدر بن مغيره الزغل ته وکتل ويی ويل : عبدالله په سمه لاره برابريدای شي، پاچا تکان وخوړ بدر ته يی وکتل او په ژرغوني غږ ئي وويل : کاشکي هغه چاپوهولي شوای، خو هغه د پوهيدونکو له ډلي نه دی.

بدر بن مغيره وويل : هغه به مجبور کړای شي.

ابو الحسن : مگر زه د مسلمانانو خپلمنځي جګړه نه غواړم.

بدر وويل : که په خو ورځو کي هغه زموږ دځواك سمه اندازه ولگوله نو د مسلمانانو د خپلمنځي جګړي نوبت به رانه شي.

له دي ملاقات وروسته الزغل ، بدر بن مغيره، الزيغری او د پوځ نورو افسرانو په يوه غونډه کي پريکړه وکړه چي پوځ له سره منظم کړي.

الزغل د پاچاهي ټولو لويو سردارانو ته هيأت واستاوه د بدر بن مغيره سرښندونکي په وړوکيو ډلگيو وويشل شول او د جهاد تبليغ يی پيل کړ.

پخپله بدر له خپلو پنځه سوه تنو سرتيرو سره له مالقه نه ووت او د

ملګرو هغوی په شاتګ ته اړ او د غرناطې تر څلورو دیوالونو پورې به یې وزغلول.

له څو ورځو منډو ترړو وروسته بدر بن مغیره د غرناطې د شاوخوا کلیو د خلکو په مرسته غرناطه بشپړه کلابنده کړه، بزګرانو له هغه سره بشپړه مرسته وکړه او غرناطې ته یې د خپلو غلولې استولونه دده وکړه، په سبار کې چې د کاختیځ نخښنې راڅرګندې شوې ابوعبدالله پرخلاف په خلکو کې غلې شوې جذبې بیا رااوچتې شوې، په دوی کې دیر مالګی ته وتېښتیدل ابو- عبدالله د حالاتو نزاکت احساس کړ، پنځه زره تنه پوځ یې د سرحدي شاهین دځپلو لپاره واستاوه خو یوه هفته وروسته هغه ته خبر ورغی چې له هغوی نه دوه زره تنه بدر بن مغیره ته ورغلل او پاتې نور له ماتې خوړلو وروسته د بزګرانو څو جونګړې وسوځولې او بیرته را روان دي.

# دغنی جال

بدر بن مغیره له غرناطې نه « ۲۰ » میله لرې اړولی وو ، یو ماښام هغه ته خبر ورغوځ چې له غرناطې نه یو بربری سردار مهم پیغام راوړی دی ، بدر بن مغیره سمدستی هغه خپلې خیمې ته ورروغوښت ، منصور بن احمد هم له هغه سره په خیمه کې ناست ؤ .

بر بری سردار چې ورننوت له دواړو سره یې ستړې مشی وکړل او بیا مخامخ په یوه کرسۍ کیناست ویې ویل : زه له غرناطې نه راغلی یم .

بدر بن مغیره : ووایه څه وایی ؟

بر بری سردار له لږ دوه زړه توب نه وروسته وویل : زه یوازې تا ته څه ویل غواړم .

بدر منصورته وکتل او هغه له خیمی نه بهر ته ووت ، نوی راغلی سړی له جیبه یو لیک راوویست او بدر ته یې وروړاندې کړ ویې ویل : زه ابو داود رااستولی یم ، هغه ویل چې ستا له خوا ددې لیک ځواب هسپانیه له بربادی ژغورلی شی.

بدر لیک پرانست او په لوستلو یې پیل وکړ ، او بر بری په ډیره مینه دهغه په څیره کې دلیك اثار او نخښې کتلې ، دلیك له لوستلو وروسته بدر بن مغیره یوه شیبه بربری سردار ته وکتل او یو ځل بیا یې له سره په غور او دلچسپی دلیك په لوستلو پیل وکړ دلیك مضمون داسی ؤ :

دیوه داسی چا لخوا چې دخپلې ناتوانی په وجه دخپلې تولنې یو بیکاره غړی تری جوړ دی ، دداسې مجاهد په نامه چې عزم او همت یې داندلس دمسلمانانو

پخوانیو غفلتونو او اشتباهاتو کفاره وګنم ، خو که داستازی دغداری او یا کومې بلې وجې نه زما لیك دغرناطې دوطن پلورو په لاس ولوید ، زه به دهغو خلکو نه یو وم چې ډیرې ښې آرزو ګانې او هیلې یې دنوموړکی په مرګ ورسره چوپې شوی ، په هر صورت که زمانه وروسته ربیعه دابو عبد الله دبلو هیلو او نیتونو ښکار نه شوه نو تولې پیښې به درته ووایی ، دابو عبد الله له بغاوت نه وروسته زه داسی احساسوم چې کاشکی غرناطې ته نه وای راغلی ، دا زما بد مرغی وه چې دیوه شاهین سره په هستوګنه کې مې دژوند د سبق زده کولو پر ځای دیوه داسی طوطی د ښوونی دنده قبوله کړه چې په زرینه پنجره کې بندی ؤ ، هغه ما دشنه اسمان په وسعتونو کی دالوتلو له خوند سره بلداوه ، خو زه پخپله د الحمرا په پنجره کی بندی شوم ، کاشکی زه په دې توانیدلی چی ابو عبد الله می دانسانیت سطحی ته راوستلی وای.

زه حیران یم چې له سهی حالاتو نه ولې خبر نه شوم چی دالحمرا دديوالونو دننه یی دوام درلود ، دغرناطی واکمن ابو عبد الله نه هغه سرداران دی چی له دی پیښو نه یی وراندی دغرناطې دمعاملې پیښې په جیـــب کې اچولې ، کله چـــی ابوعبد الله دبغاوت اعلان وکړ نو په غرناطه کې یوازې موسی داسی څوك ؤ چی دابو الحسن وفادار ؤ ، هغه اوس په کومه تیاره کوټه کې پروت دی ، په داسی حالاتو کې ماته لږ کول په کار وو ، دمنافقینو یو منظم څواك چې طلسم یی دموسی غوندې اور ژبی هم مات نکړای شو زماله خوانه دمعمولی مداخلې زغم هم نه درلود ، زما لپاره دوې لارې وې ، یوه دا چې په دك مجلس کې دابو عبد الله پر خلاف د بغاوت غږ اوچت کړم او دهغې په بدل کې دژوند نوره برخه دبندیخانې په یوه تیاره سمڅه کې تیره کړم ، دوهمه لاره دا چې دیوه چوپ نندار چی په خیر شم ، انتظار وکړم چې داسی وخت راشی چې ابو عبد الله زما خبرې اوریدوته مجبور شی ، ما دوهمه لاره غوره کړه ، تاسو به دا زما مصلحت خوښونه او که به

دادي چې ده ته خپله راتلونکې تیاره ښکاري ، هغه خطرات چې ده له غرناطې نه لرې بلبل اوس دغرناطې دیوالونو ته راوسیدل ، دښار دکلابندی او دخلکو دناکراری نه سخت په اندیښنه کې دی ، که له فردیناند نه دسمدستي مرستې امید وای ښایی دومره نه وای اندیښمن ، خو فردیناند دده دپیغام په ځواب کی ویلی چې هغه دیوه پریکنده جنګ په تیاری بوخت دی دهغه اندیښنه دومره زیاته شوی چی پخوا به می په ډیر زحمت هغه لیدای شوای ، خو اوس مې دخپل داد او تسلې لپاره کله کله نیمه شپه وروغواري ، کله دی پخپله راشی ، ورمه ورځ ابو عبدالله نیمه شپه زه ور وغوښتم او دغرناطې په حالاتو نی اندیښنه ښکاره کړه ، ما په څو خبرو دده داندیښنې له زیاتولو نه وروسته ورته وویل چی ایا دا امکان نه لری چی ستا او پاچا «ابو الحسن» تر منځ سوله وشی . دابو الحسن له خولی بی اختیاره ووتل چی کاشکی داسی ممکن وای ، که زما پلار ما وبخښی هم دکاکا په زړه کې به مې له ماسره خلوص پیدا نشی ، ستا په باب هم ده دا بدګومانی درلوده چی ته دده دوینو تږی یی ، ما هغه ته وویل چې که دپاچا لخوا دسولی لپاره څه سروخوځول شی ته یکی څه وایی ؟ ده ځواب راکړ په دې حالاتو کی دا خیال کم عقلی ده چی پاچا به له ماسره دسولی هڅه وکړی .

دسرحدی شاهین له کامیابیو نه وروسته به هغه ما یو بی ضرره دښمن ګڼي ، او هغه به زما په لوری دسولی دلاس را اوږدولو پرځای زما غاړی ته دپانسی دپړی اچولو هڅه خوښوی.

ما ورته وویل : که ما دسرحدی شاهین په پیژندلو کی اشتباه نه وی کړی نو دغرناطې په اړه دهغه دلچسپی له پاچا سره د دوستی او یا له تاسره ددوستی په وجه نه ده ، دهغه یوازینی لامل دادی چې هغه مسلمانان دعیسویانو پر خلاف سره یو کول غواړي ، که هغه ستا په استعدادونو او صلاحیتونو خبر شی امکان لری چې پاچا ستا په مقابل کی له تخته لاس په سر کولو ته اړ باسی.

لپاره خپلې هرې پريکړې بدلولو ته تياريداى شي.

زما په دى خبرو ابو عبد الله ته دا ثمه پيدا شوه چې تاسو به پر غرناطې له يرغل نه وراندى دسولى هڅه وکړى ، هغه دې خبرى ته تيار شو دسولې لپاره يو هيات ستاسو خدمت ته واستوى ، خو زه ويريدم چې هغه ټول سرداران به چې په سوله کې يې سرته خطر دى دابو عبد الله ددې ارادې مخالفت وکړى او هغوى به دابو عبد الله پرځاى کوم بل احمق چيرته په تخت کينوى ، له دى نه پرته هغوى بنايى فرديناند دپلاز او زوى له سولې نه خبر کړى او هغه بيرني مداخلې ته چمتو کړى ، ځکه خو ما دهغوى دبې خبره ساتلو په خاطر ابو عبد الله ته وويل چې که دسولې لپاره ته لومړى ګام اوچت کړى نو هغوى به دا ستا کمزورى تعبير کړى ، دا هم ممکنه ده چې ستا له ملګرو نه زيات دسزا نه دځان ژغورلو په غرض ستا ملګرتيا پريږدى او له هغوى سره ملګرتيا وکړى ، يا تا بندى کړى او هغوى ته دې وسپارى ځکه خو سمدستى ته خپله اراده چاته مه ښکاروه ، او دهغوى له لورې دسولى دهيأت دراتګ انتظار وکړه ، اوس ابو عبد الله دسولى دهيأت انتظار کوى . زما کار دادى چې هغه مايوسى ته نه پريږدم . خو زه داسى احساسوم چې دفرديناند زرخريد سرداران به ستاسو دسولى استازى الحمرا ته نژدى پرى نژدې ، او دابوعبد الله کوم استازى به هم ښکاره تاسو ته در پرى نښودل شى ، او دسولى هغه هڅى به هيڅکله هم کاميابى نه شى چې دغه وطن پلورى پرې خبر شى.

ځکه خو زه تا په يوه دير لوى ازميښت کې اچوم ما فکر کړى دى که ته دشپې لخوا دالحمرا له کومى پټى لارى نه ماڼۍ ته راشى ، زه به يوازې ستا او ابو عبدالله دليدو کتو انتظام وکړم ، که زما تجويز کار ورکړى او ته دپهره دارانو له نظره پټ الحمرا ته راغلى نو داسى وګڼه چې غرناطه دى فتحه کړه ، ابو عبد الله ته يوازې داد ورکول دى چې دهغه سرته هيڅ خطرنشته ، له دى وروسته به ستا

او ددې فرمان دعملي کولو لپاره به څو تنه داسې مجاهدين وي چې زه يې دابو الحسن دوفادارو په حيث پيژنم ، دمحل هغه ملازمين چې دوطن پلورو جاسوسان دي يو پر بل پسې به همغه کوټې ته راوغوښتل شي او زما لخوا به دهغوی دبنديوست لپاره څلور تنه دقوي متو خاوندان حبشي غلامان هم چمتو وي.
د الحمرا دقبضې نه وروسته به غرناطه ستا په لاس کې وي ابو عبد الله به ستا په لاسو کې ناڅي ، دوطن پلورو ډلې به دوړوکو وړوکو ګروپونو په بڼه الحمرا ته راوغواړو او له هغوی نه به هغه څوك چې داصلاح وړ نه وي جلادانو ته وسپارو ، بيا به پوخ دالحمرا ددروازې مخې ته را وغواړو او موسی به هغوی ته وينا وکړي ته دا اټکل نه شې کولی چې په سپاهيانو کې اوس هم له موسی سره څومره دمحبت جذبه ده ، بيا به ابو عبد الله چې زه يې دبخښنې وړ نه بولم ستا رحم او کرم ته اړوي ، اوس تاته يوازې ددې ويل پاتې دي چې ما الحمرا ته ستا دننوتلو لپاره څه وړ لاره سنجولې ، زما کور دسيند لوري ته دالحمرا په يوه کنج کې دې ، که ستا بڼه لامبو زده وي نو له کښتۍ پرته په لامبو په سيند کې را پورې وتلی شې هلته له ديوال سره نژدې يوه لويه ونه ده چې په سيند کې ورکړه شوې ده ، دوني څانګې په اوبو کې هم دوبې دي ، له دې ونې نه شل ګامه بڼې لاس ته نژدې څلوريښت بالبيته اوچته زما دکور کړکې لاندې په ديوال لاس ووهې نو يو نرۍ پړۍ به ووينې ، کله چې دغه پړۍ کش کړې زه به ستا په راتګ خبر شم ، او داسې زينه به دروځړوم چې ته به په آسانۍ زما کوټې ته راشې ، که دخطر څه خبره وي نو درسې په وروستۍ برخه کې به دکاغذ يوه ټوټه وي ته هغه درسره واخله او په کاغذ کې پر ليکلې هدايت عمل وکړه .
ما ددې کار لپاره دچار شنبې ورځ غوره کړې که په دې چارشنبه را نه شې نو بلې چار شنبې ته راځه ، دا چار شنبه ځکه غوره ده چې شپه به تياره وي او له علامونه داسې ښکاري چې څو ورځې نور به هم وريځې بڼې توري وي .

راځي ، پرون ئې له دربيعې سره دواده دپيغام را استولو حماقت کړی ؤ ، ربيعه دپيغام راوړونکي خدمتګاري دويښتانو دشکولو په تکل شوه ، خو دالجيلا په منځګړيتوب معامله بيرته دفعه شوه ، زما په وړاندې ابو عبد الله يوازې په اشارو اکتفا کوي ، په دې حالاتو کې زه داسې احساسوم چې زه به ډير ځنډ په الحمرا کې پاتې نشم .

زه تا ديوه خطرناك پروګرام لپاره راغواړم ، او دبرې پوره داد هم نشم درکولی ، الحمرا ته چې را نژدې شې هرګام به دې دړوند او مرګ تر منځ په ډيره تنګه کوڅه کې وی ، ځکه خو زما په هداياتو له عمل نه وړاندې له ځانه سره ښه سوچ وکړه ، امکان لرې دشپې ته له يوې غلچکې لارې الحمرا ته ننوزې او سهار ته دې ملګرو ته دالحمرا دروازې پرانستل شي ، خو دا هم کيدای شي چې له تاسره زه هم داسې تياره ګوټونو ته ولوېږم چې دبيرته راوتلو امکان يې نه وی ، زموږ سره به دغرناطې راتلونکې هم ښخه شي ، که زما استازی زما دا اوږد ليك تاته دروړ نو دا ضروري ده چې تر ځو دا کار نه وي بشپړ شوی هغه بيرته غرناطې ته مه را پريږده ، ستا سری دې هغه ديوه عزتمن ميلمه په څير ورسره وساتي ، زما دده په نيك نيت اعتبار دی ، خواحتياط ضروري دی دفرديناند جاسوسانَ به ستا دښندی کولو په بدل کې ستا د وزن په اندازه سره زر ورکولو ته چمتو وی ،

«ابو داود»

دوهم ځلی د ليك لوستلونه وروسته بدر بن مغيره بيله دې چې په کوټه کې دايلچې موجوديت احساس کړی په قدم وهلو يې پيل وکړ ، دليك الفاظ دډول ډول معنی ګانو سره دده په ذهن کې را ګرځيدل ، په ذهن کې يې الحمرا ليدله ، په تياره شپه کې ديوې کړکې له لارې ننوت او دربيعې په مخ کې دريدلی ؤ ، دمينې په اوښکو په لمدو سترګو يې هغې هر کلې کاوه ،

ربيعې ! زما ربيعې! بدر په زړه کې خواږه او په زړه پورې تکانونه احساس

په زړه کې پر ابو داود بدګوماني را پیدا کړي وي چې ددی لیك په لوستلو هغه تولې لرې شوې وی ، زه تا دیوه خطرناك پروګرام لپاره راغواړم او دبری پوره داډ هم نشم درکولی ، الحمرا ته له نژدی کیدو وروسته به ستا هر ګام دمرګ او ژوند ترمنځ په یوه تنګه او تیاره لاره وی ، ځکه خو زما پر هدایاتو له عمل نه وړاندی بنه سوچ وکړه ، دابو داود دا الفاظ یې په غوږونو کې وکړنګیدل .

او بیا دده وروستی پریکړه داوه چې : «زه به خامخا ورځم !»

* * * * *

(۲)

دشپې مهال توند باران اوریده ابو داود دخپل کور په هغه کوټه کې چې کړکی یې سیند لوری ته خلاصیده په نا کراری قدم واهه ، یو حبشی غلام دکوټې په یوه کونج کې ناست ؤ ، دکوټې په یوه دیوال زنګ را ځړیدلی ؤ ابو داود مایوس شو په یوه کرسۍ کې کیناست ویې ویل : هغه بنایي نن رانه شی .

حبشی غلام ځواب ورکړ : په داسی توپان کی له سیند نه تیریدل آسانه نه دی ، تر لږ ځنده چوپ دواړو یو بل ته کتل ، نا څاپه پر دیوال دراځړیدلی زنګ پری وخوځید او له زنګ نه غږ اوچت شو .

ابو داود وویل : هغه راغئ .

غلام زر را جګ شو او د رسۍ نه جوړه زینه یې تر کړکۍ لاندې وځړوله ، لږ ځنډ وروسته یې په زینه وزن محسوس کړ ویې ویل هغه پاس راخیژی ، لږ شیبې وروسته یې وویل : هغه به اوس ترنیمایي زیات راختلی وی ، که رسۍ غوځه کړو نو موږ به یې په بله طریقه دوژلو له جنجال نه خلاص شو.

ابو داود: ورورغیږه ، هغه تر موږ زیات هوښیار دی هغه به پخپله دراپورته کیدونه وړاندی کوم بل څوك لومړی پاس را خیژولی وی .

حبشی بیا وویل: کله چې پاس رانژدی شی ته خو یې غږ پیژنې زما توره به

دخبري څه ځواب ورنه کړ ابو داود له لږ ځنډ وروسته بیا وویل : ته یوازې یې که نور څوك هم درسره ملګري شته ؟

نقاب پوش وروستي ځوګامه په بیړه ووهل په کړکۍ ور ننوت او آرامه ساه یې وکښله ویې ویل : په تیاره کې مې دمحل ددې برخې په موندلو کې ځنډ وکړ دسیند اوبه هم ډیرې تیزې وې.

ابو داود وویل : ته په یخنۍ کې راغلې یې راځه په بله کوټه کې دې جامې بدلې کړه .

بدر بن مغیره نقاب لرې کړ او ویې ویل : زه په داسې موسم کې په ګرځېدو عادي یم .

ابو داود وویل : زما باور وُ چې ته به خامخا راځې .

بدر : تا زه فرض ته را بللی وم.

ابو داود : راځه دلته دریدل مناسب نه دي .

بدر بن مغیره له ابو داود سره یوې بلې کوټې ته ننوت چې په قیمتي قالینو پوښل شوې وه او ښکلې کرسۍ پکې وې ابو داود بدربن مغیره په یوه کرسۍ کښیناوه ویې ویل : ابو عبد الله په پاس کوټه کې زما له یوه نوکر سره د شطرنج لوبه کوي ، ته ډیر ناوخته راغلې خو له نیکه مرغه دشطرنج مینې هغه دکور له تګ نه را ایسار کړ ، هغه نوکر داعتبار وړ نه دی خو دا کمـــال پکې دی چې ابو عبدالله تر سهاره په شطرنج بوختولی شي ، دحرم سرای خلکو ته خبر ورغلی چې هغه دلته په شطرنج بوخت دی . ځکه خو که تر سهاره دلته وي څوك به یې پوښتنې ته رانه شي ، ته همدلته کښینه زه به هغه نوکر په څه پلمه لرې کړم او بیا به دې پاس را وغواړم.

بیا خو وروسته تا ته معلومه ده چې ته باید څه وکړې، ستا په مخامخ بله کوټه کې به څلور تنه حبشي غلامان وي ، چې به مناسب وخت ... را غونډول شي، زه

ربیعه دهغه په مخکی ولاړه وه او حیران حیران یی ده ته کتل .

دهغه له خولی ووتل : ربیعی !

هغې په وېرېدونکی لهجه ووېل : ته ...ته دلته ولې راغلی ؟

بدر بن مغیره دهغی داندیښنی په وجه ونه پوهید په موسکا یی ورته ووېل : زما دلته راتګ درباندې بد ولګید ؟

ربیعه بی اختیاره شوه ویې ویل : ما هره ورځ دداسی خوب لیدو هیله کوله خو کاشکی دا خوب وای ، دا خو دیوه بد خوب تعبیر دی ، یو وېروونکی تعبیر ، ته له دی ځایه ووزه دخدای «ج» په خاطر !

بدر بن مغیره دپریشانی سره سره موسکی شو ویې ویل : دلته ماته څه خطر نشته ، تاته ښایی معلومه نه وی چی زه ستا د پلار په بلنه دلته راغلی یم .

ربیعه : زه خبره یم ، انجیلا ماته هر څه ویلی دی ، ته په یوه خطرناکه دسیسه کی راښکیل شوی یی ، اوس هم فرصت شته دخدای «ج» په خاطر ځان وباسه بیره کوه ، بدر بن مغیره ووېل : ایا ابو عبد الله اوس په پاس کوټه کی نشته ؟

ربیعه : دا ټول دروغ دی ، ما له بلی کوټې نه ددروازې تر درزونو ټولی خبری واورېدې . که ددی کوټې دروازې له دننه نه بندی نه وای نو ما به ځان خطر ته غورځولی ؤ او ته به می له خطر نه خبرولی .

بدر : مګر زما باور نه راته چی ستا پلار ... !

ربیعه : تاسو زما پلار تر ما ښه نه پیژنی ، ستا په یاد نه دی چی مور ستا سره په سرحدی کلا کی وو ، ماتاته ویلی وو چی ما یو خوب لیدلی چی نصرانیانو پر تاسو حمله کړې وی ،

بدر بن مغیره : زما په یاد دی .

ربیعه : هغه زما خوب نه ؤ ، ماته دخپل پلار دسیسه معلومه شوه ، اوس انجیلا له دی دسیسې نه خبره کړم.

: هغوی ستا دوینو تږی دی ، د ربیعی په سترگو کی اوښکی راغلی .

بدر : مره اولسونه دشهیدانو له وینو نه پرته په بل څه نشی را ژوندی کیدای ، ربیعی لکه چی اوس دیر لږ وخت وی ما له تاسره دیرې خبرې کول غوښتل - له لری دڅوتنو دپښو غږ راغی ربیعه بې اختیاره ورورانډی شوه بدر یې تر مټ ونیو او په سلگو یې وویل : ددیرو ویلو وخت نشته یوازې دومره ووایه چې ربیعې ته زما یې او زه له تا نه نفرت نه کوم ، ما مه لرې کوه ، هغوی پرېږده چی ومې وینی ، هغوی لکه چی ابو عبد الله ورسره راوست ، ابو عبد الله پرېږده چی ووینی چی ما دغرناطې دملکې تاج دچا په خاطر رد کری دی ، بدره ! زما بدره ! زما آغا ! که دا وخت نه وای راغلی نو ما به په عمر کی هم ددی جرئت نه ؤ کړی چې درته ووایم زه له تاسره مینه لرم ، ستا سره د ژوند ملگرتیا زما د آرزوگانو له تخیل نه اوچت ؤ ، خو په مرگ کې ستا سره له ملگرتیا نه ما هیڅوك هم نشی ایسارولی .

بدر : ربیعی! ته ماته له خپل ژوند هم دیره گرانه یې .

دخدایٔ په خاطر ولاړه شه ، هغوی راغلل که تا دلته ووینی څه به وایی.

ربیعه : دا به وایی چې زما له تاسره مینه وه ، او زه به دوی ته ووایم چی په اندلس کی له بدر بن مغیره نه پرته بل څوك دی چی توره یې دهسپانیی دمظلومو نجونو د عصمت او آبرو دساتنی په خاطر اوچته شوې ده ؟ هغه څوك دی چی په نظر کې یې دپرښتو په شان پاکی ده؟

دکوټی ور خلاص شو ، له ابو داود او ابو عبد الله سره لس تنه توره کښلی او نیزی په لاسو کی راننوتل ، ابو داود چې ربیعه هلته ولیده پریشانه شو وېې ویل، ربیعی ته دلته ولې ولاړه یې ورځه خپلې کوټې ته دی .

ربیعه یو گام ورورانډې شوه پلار ته یی له غوسې نه په رېږدیدونکی غږ وویل: ووایه تا دده لپاره څه ور سزا ټاکلې ومور دواړه دیرې کښتی ...

مغيره ته کتل ، بالاخره يې سپاهيانو ته اشاره وکړه ، هغوی نيزې برابرې کړې او په نيمه دايره حلقه بدر ته ورورانډې شول ، بدر بن مغيره توره وکښله او زر يې ابو عبد الله ته وروغورځوله ويې ويل : ديوه سړي دنيولو لپاره تاسو ته ددومره نفرو دراوستلو ضرورت نه ؤ .

دابو عبد الله په اشاره يوه سړي دبدر توره اوچته کړه او هغه ورته شو ورورانډې شو ويې ويل : زما دا تمه نه وه چې ته به الحمرا ته دننوتلو احمقانه جرئت وکړې .

بدر بن مغيره ووېل : که په الحمرا مانۍ کې عقل،فريب،دوکې او بزدلۍ ته وايې نو زه په خپل حماقت خفه نه يم .

ابو عبد الله يې ځوابه شو ويې ويل : زما په گومان ددا سې خبرو لپاره دا ځای مناسب نه دی ، دمحل په يوه کوټه کې چې ستا له شان سره برابره ده ډير خلك ستا دورتگ انتظار کوي ، زما باور دی چې ته به زما دسپاهيانو خبره ومنې ، په دې کې ستا گټه ده ، ابو عبد الله ووت ، سپاهيانو بدر را ايسار کړ يوه تن زولنۍ نيولې وې بدر له څه تذبذب پرته لاسونه ورورانډې کړل.

بدر بن مغيره دسپاهيانو په منځ کې دقنديلونو او مشالونو په رڼا کې له مختلفو برندو او دهليزو نه تير شو او «دارالاسود» ته ورننوت ، په لاره کې يې ځای پرځای ځليدونکې ايستلې توری سپاهيان ولاړ وليدل دا يې احساس کړه چې دتيښتې دهڅې نه کولو پريکړه يې سهې وه.

*****

(٤)

ربيعې دابو داود له مزبوتو پنجونه ځان ژغورلو هڅه کوله او چيغې يې وهلې : ما پريږده ! ما پريږده !

ابو داود په بستره ور ډيکه کړه او ويې ويل : ليونۍ نجلۍ که ستا دخپل عزت پروا نه وي زما دسپينو ويښتو خيال وکړه ، تا زه ددې جوگه کړم چې دغرناطې

په خوله وانه خلم ، که نه نو زه به په اور کې ځان وسوځوم . دالحمرا تر تولو اوچت برج ته به وخیژم او ځان به ترې را وغورځوم ، دابو داود په سینه کې دکانې زړه ؤ خو دانسانیت یوه سپرغۍ لا پکې بله وه ، هغه له ارادې سره سره په دې و نه توانید چې دغه سپرغۍ مړه کړي ، دهغهٔ په زړه کې دانسانیت دخوږو نغمو جوړولو تارونه شلیدلي وو خو یو تار تراوسه پاتې ؤ ، هغه تار چې دربیعې اوښکو کړنګولی شوای ، نړۍ ته هغه یو بې رحمه انسان ؤ یو داسې بې رحمه انسان چې دیوې معمولي هیلې دتر سره کیدو لپاره یې بیله څه اندیښنې دزرګونو تنو وژل زغملی شوای ، خو ربیعې ته هغه یو پلار ؤ ، له خپلو تولو عادتونو سره هغه په خپل زړه کې دانسانیت دهغې ځلیدونکې سپرغۍ په وژلو بریالی نه شو چې دربیعې په خنداګانو روښانه وه .

هغه بیا لاسونه اوچت کړل چې ربیعه په بستره وروغورځوي ، خو دپلرنۍ مینې په داسې جال کې ونښت چې غورځول یې ورته ممکن نه وو ، دربیعې اوښکې یې په پښو وڅڅیدې ، ده دشاته کیدو اراده وکړه خو ربیعه یې په پښو ورنښتې وه ، هغه ورتیټ شو پر سر یې لاس ورکیښود او بیا یې تر متو ونیوه او دپورته کولو هڅه یې وکړه ، پلار او لور یو بل ته مخامخ دریدلي وو ، یوه شیبه ابو داود داسې احساس کړه چې دربیعې داوښکو دڅاڅکو په مخکې داده دژوند هره هیله بې ځایه ده ، هغه په غمجنه لهجه وویل : ربیعې کاشکې ماته معلومه وای چې دهغه لپاره ستالیونتوب تر دې حده رسیدلی زه به دهغه دژغورلو هڅه وکړم خو ......

ربیعه سر تر پایه هیله هیله شوه وېې ویل : پلار جانه ! ته هر څه کولی شې ، دهغه مرګ به دغرناطې دتباهۍ مقدمه وي.

ابو داود : له ماسره دغرناطې غم نشته ، زه یوازې ستا داوښکو قیمت ادا کول غواړم ، ابو داود دا وویل او بلې کوټې ته ننوت ، یوه الماري یې خلاصه کړه او یو

مسلمانانو نه مو خپله ورروستي تکيه نه اخستلای .

هغې پياله شونډو ته نژدې کړه او پلار ته يې وکتل ، ناڅاپه له بلې کوټې نه انجيلا را ښکاره شوه او هغې چيغه کړه : ربيعې دخدای «ج» په خاطر دا مه څښه ، بيا يې را منډه کړه او دربيعې له لاسه يې دپيالې اخستلو هڅه وکړه ، خو ربيعې له يوه غوړپ څښلو نه وروسته پياله په فرش وغورځوله ، دابو داود په شونډو يوه معنا داره موسکا وه ، انجيلا حيرانه شوه ، خپلې ناسکه خورته يې کتل او ربيعې په فاتحانه انداز دواړو ته کتل .

انجيلا وويل : ربيعې دا دې څه وکړل ، او بيا ربيعې ته ورترغاړې وته پلار ته يې وکتل او په لړزنده غږ يې ورته وويل : ددې زهرو يوه پياله ماته هم راکړه ، مونږ دواړه ديوه مار په کور کې زيږيدلي يو ، زمونږ پای هم بايد يو ډول وي.

ابو داود وويل : تاسو دواړه ليونۍ شوي ياست ، ما ربيعې ته دخوب دوا ورکړې تر څو زما هڅې څه نتيجه ورکوي ، داويده به ده ، ويښ پاتې کيدل يې په تاوان دي ، دا يې وويل ربيعه يې تر مټ ونيوه ، په بستره يې څملوله او له کوټې نه بهر ته ووت .

دی به لس گامه نه ؤ تللی چې انجيلا له شانه ورغله دهغه لمن يې ونيوله او ويې ويل : پلار جانه ! هغه وژغوره ! ربيعه له هغه پرته ژوندۍ نشي پاتې کيدای.

ابو داود په غمجنه لهجه وويل : انجيلا زه دهماغو ازغيو په تولولو پسې څم چې پخپل لاس مې شيندلي دي ، ويريږم چې دهدف تر لاسه کولو پرځای مې لاسونه تپي نه شي، تر څو ربيعې ته خوب نه دی ورغلی ته تسلي ورکوه چې هغه به بچ شي.

انجيلا: زه يوازې پر دې ځان پوهول غواړم چې ته به يې دژغورلو لپاره خپل ټول توان په کار اچوې ؟

ابو داود غوسه شو : انجيلا ورځه ما مه پرېشانه کړه ته د ربيعې ... خو زه

امید وای ماته به یې دبې هوښی دوانه راکوله .

انجیلا په تسلی آمیزه لهجه ورته وویل : زما باور دی چی هغه به دسرحدی عقاب په باب له څه پریکړی نه وړاندی ډیر ځله سوچ کوی . ابو عبد الله په دی پوهیږی چی دبدر سپاهیان به غرناطه لوټه لوټه کړی.

ربیعه : که ابو عبد الله دا احساس درلودای دخپل پلار پر خلاف به یی ولی بغاوت کاوه ، هغه ته دا څرگنده وه چې دبدترینو ستونزو له گاللو سره سره دغرناطې لوټول نه خوښوی .

انجیلا : دغرناطې اولس دسرحدی شاهین په نوم سرونه ورکوی ، هغوی به پرده معمولی تیری هم ونه زغمی .

ربیعی وویل : ته ناپوهه یی ، داولس سترگوته دالحمرا دنگ دیوالونه ولاړ دی ، دالحمرا دننه رازونه به همدلته ښخ شی.

انجیلا : بیا هم زما باور دی چی امیران به دسرله ویری دسرحدی عقاب پر خلاف دابو عبد الله دبدو ارادو مخالفت وکړی .

ربیعه : نه بلکې ددې ویره ده چی ابو عبد الله به دخپل سر له ویری دهمدغو وطن پلورو ارادې پوره کړې چی له فردیناند سره یې دغرناطی پر سر معامله کړی ، فردیناند یوازی دسرحدی شاهین له ویرې پر غرناطه له حملی نه ډډه کوله ، دده له وژل کیدو وروسته به دغه غداران داډه وی چی دبدر د ملگرو له کسات نه یی دپناه ځای فردیناند دی.

انجیلا مایوسه شوه ویې ویل : ربیعی ! پلار جان به تې خامخا وژغوری خو که فرض کړه دهغه هڅه کامیابه نشی نو موږ باید څه وکړو !

ربیعی سترگی وغړولی هغی ته یی وکتل او ناڅاپه کیناسته ویی ویل : انجیلا زه مایوسه نه یم ، زه په یوه داسی ذات ایمان لرم چی ابراهیم «ع» یی په اور

انجیلا وویل : دحرم سرای دروازه به اوس بنده وی خو ابو عبد الله اوس په دربار کی دی ځکه به کوتوال او پهره داران دهغه په انتظار ویښ وی.

زما امیل به دترلیو دروازو دپرانستلو لپاره بس وی او الحمرا ته دسرحدی شاهین دراتلو خبر په دی ارځی چی وړوکی بیګم او ملکه بی وخته له خوبه را ویښی شی.

را څه دا هم دخدای «ج» شکر دی چی مورجانه په درانه خوب پرته ده . ۱

ربیعه له بستری نه اوچته شوه دوه دری ګامه یی واخستل خو تال یی وخوړ په سترګو یی تیاری راغلی ، دلویدو په حال کی وه چی انجیلا تکیه ورکړه او بیرته یې په بستره څملوله ویې ویل : پر تا دوا اثر وکړ ، زه څم ته می دبری دعا کوه ربیعی دنیم خوبی په حالت کی خپل امیل راویوست او انجیلا ته یی وراوږد کړ ویی ویل : دا هم درسره واخله .

# مجاهد او غدار

ابو داود د ډول ډول سوچونو په کشمکش کی دالحمرا هغه تالار ته روان ؤ چی دده په گومان دبدر بن مغیره او له هغه سره دغرناطی دنصیب پریکړه کیدونکی وه ، په تلو تلو کی به ودرید او بیا به څه پریکړی ته له رسیدلو دمخه بیرته روان شو ، په ژوند کی یی دلومړی ځل لپاره احساس کړه چی دده دپریکړې حوصلې ځواب ورکړی، یو ساعت دمخې دخپلې ترقی وروستیو څوکوته درسیدو ټولی لارې پاکې کړې دی ، دبدر بن مغیره په دام کی راوستل دده دژوند تر ټولو ستره گارنامه وه ، ددی په بدل کې یې له فردیناند نه لوی انعام غوښتلی شوای ، ده دهغه دپوخ لپاره دغرناطی لاره خلاصه کړې وه ، کله چې څو ورځی وړاندی ده ابو عبد الله ته ویلی وو چې سرحدی شاهین به لاس او پښی زولنی درته راولم نو هغه په ځواب کی ورته ویلی وو چی که زه تا وړینم چی په هوا والوزی هم ستا دا خبره نشم منلی ، خو نن ابو عبد الله او دهغه ټول ملگرې په خپل عظمت قایل کړی وو دهغه باور شو چی له نن وروسته به ابو عبد الله او دهغه ملگری دده دلاس نانځگی وی او د غرناطی د تاج او تخت دقبضی خوبونه رښتیا کیږی . ابو عبد الله دده دسیاست ددگر داسی پچه وه چی ده هر وخت لرې کولی شوای - هغه یی په مالقه دحملی لپاره تشویق کولی شوای چی دفردیناند په خلاصو دروازو غرناطی ته راننوتلی شی. خو چې ربیعه ور په یاد شوه دخیالونو په یوه بله نړیه

دده په دماغ کی دغـوپوښتنو ته له «نه» پرته بل ځواب نه ؤ پوهیده چی همدا نن شپه به د بدر بن مغیره په باب پریکړه کیږی ، او دی به دخپلو هیلو دټولو محلونو له رانسکورولو پرته دهغه په حق کی څه ونه شی ویلی ، هغه سوچ کاوه چی که زه دده په پریښودلو او ژغورلو کامیاب هم شم دبدر په زړه کې چې زما په باب کومه کینه او کرکه ده هغه به لرې نه شی، دی که دربیعی میړه شی هم زما دهری هیلی مخالفت به کوی.

هغه به زما په لاره کی یو داسی کمر وی چی له ماتولو او لرې کولو پرته به یی زه وراندی نشم تلای.

ربیعه که دده دژوند ملګرې شی ورځ په ورځ به هغه هم له مانه لری شی او زموږ تر منځ به یو داسی خلیج جوړ شی چی ماته به تری پوری وتل له امکان نه وتلی وی.

دربیعی دخوښی په خاطر دهغه دژوند ژغورلو نه وروسته زما لپاره یوازی یوه لاره پاتې کیږې او هغه دا چې زه دژوند تولې هیلې قربانی کرم او چیرته غلی شم.

نه نه ! زه داسی نشم کولی ، آخر زه دربیعی په اره ولی دومره اندیښمن یم ؟ هغه به څو ورځی غمجنه وی کله چی له فردیناند پرته په غرناطه کی زما بل سیال نه وی کله چی پاچاهان زما په دسترخوان راټولیدل ویاړ وبولی ، او کله چی ربیعه دکوم پاچا دملکې په بڼه په تخت ناسته وی نو یقیناً به دا احساس کړی چې پلار یې ددې دښمن نه ؤ.

* * * * *

(۲)

ددربار په ټولو دروازو پهره داران ولاړ وو دحرم سرای کوتوال «دساتونکو مشر» دابو داود هر کلی وکړ او دروازه یی ورته خلاصه کړه ، او دابو داود په لیدو درباریان ټول په احترام پاڅیدل ، ده دلاس په اشاره دهغوی دهرکلی ځواب

په غلی اواز ابو داود له یوه نژدې سردار نه تر پوښتنې وروسته وپوهیده چی هغه خپلی خبری پای ته رسولی .

سردار ورته وویل چی دهغه خبرې په دربار کې ټولو ته له زغم او حوصلې نه اوچتې وی . هغه ابو عبد الله ته ویلی وو چی ته بد نیته هم یی او احمق هم ، او په داورو صورتونو کی زه تا درحم وړ بولم .

تر لږ ځنده درباریانو یو له بله ګونګوسی کاوه ، او ابوعبد الله له غوسی ، حیرانی ، پریشانی او اندیښنی نه ډکو احساساتو بدر بن مغیره ته کتل بالاخره یی وویل :

موږ یو ځل لاتا ته موقع درکوو ، که زما داګمنی ومنی له یو څه وخت نظر بندی نه وروسته به دی خوشې کړو.

بدر بن مغیره ځواب ورکړ : ما ددی ځواب درکړی ، زه له بزدلانو نه دژوند سوال نه کوم ، زه دداسې سرې له پاچهی منلو نه انکار کوم چی دالله تعالی نه باغی وی چې دخپل قوم غدار وی او دخپل پلار دښمن وی .

دبدر بن مغیره سترګې په ابو داود ولګیدی او غږ یې نور هم اوچت کړ ویې ویل :

ابو عبد اله ! تا په خپل لستونی کې مار ساتلی او ته ګومان کوی چی دی به یوازی ستا دښمنان وچیچی ، خو ته دمارانو له فطرت نه خبر نه یی . هغه دهیچا دوستان نه وی ، ته ګومان کوی چی زه له تاسره دجګړې کولو مجرم یم ، خو زما په هغه توره سوګند چی په وار وار ددښمنانو په وینو لمبیدلی ده ، که زما په زړه کې له تاسره دجګړی هیله وای دالحمرا دیوالونو به زما دسپاهیانو لاره نه وای بنده کړی . ما په مختلفو حیلو غوښتل تا سمې لارې ته راوګرځوم . او همدا لامل ؤ چې زه ستا دیو ملګری په بڼه یوازی دلته راغلم ، ته چی زما په باب څه پریکړه کوی وېې کړه ، خو ددی مطلب دا نه دی چی زه ګنهکار یم او تا دخپل

یوه سردار په غوږ که څه وویل هغه جگ شو ویې ویل :

لوی پاچا ! مجرم تر اوسه پورې چې څه ویلی دی په همدی یی ځان دبدترینی سزا لایق گرځولی ، ځکه خو زموږ خواست دی چې سزا ورته واوروی او دربار رخصت کړی ، ستا دسربښندونکو په اړه دمجرم دا گستاخانه لهجه له زغم نه وتلې ده .

نورو سردارانو او امیرانو هم په وار وار دده خبرې تائید کړې.

بدر بن مغیره وویل : ډیر بدبخته دی هغه سری چې داسې خلك خپل سر ـ ښندویان وگڼی ، ابو عبد الله ! دا داولس پر بدن پالل شوی «کجیران» دی ، ته چې پر دی باور کوی له ځان سره غرناطه هم دتباهی کندی ته ورتیل وهی.

ابو عبد الله جگ شو او په ریږدیدونکی آواز یی وویل : زه بدر بن مغیره ته دغرناطی دبدترین غلیم په جرم دمرگ سزا ورکوم ، مجرم دلمر ختلو نه وړاندې ووژنی !

بدر بن مغیره دیوه گړنگ په څیر ولاړ ؤ . دالحمرا مانۍ په دی کوټه کی تر اوسه پوری داسی مجرم نه ؤ وړاندی شوی چی په دی ډول زړه وروتکی او خوږه موسکا یې دخپل مرگ حکم اوریدلی وی . دهغه چوپتیا دحال په ژبه گویاوه چې زه له مرگونو سره جنگیدلی یم . ته ما دمرگ کومی ته ور تیل وهلی شی ، خو موسکا می را نه تږلی نه شی ، دا موسکا چی ما دتوږو په سیوری او دغشو په باران کی زده کړی تر وروستیو شیبو پوری به ستاسو په بزدلی ، بی رحمی ، او مکاری ملنډی وهی .

* * * * *

(۳)

ابو داود دارادو او همتونو مجسم تصویر ته وکتل او دغرناطی تاج او تخت ورته خوښ نه شي بېکاره ښول ، هغه په زړه کی ویوهتل : آیا ددنیا کوم دولت او

نا خبره دی . او آیا دژوند کوم لذت ته راحت ویل کیدای شی چې هر وخت پرې دمرگ ویره سپره وی.

زه داندلس په تخت قبضه کولی شم خو آیا دا بری به ماته دمرگ په وړاندې موسکل را وښیی ؟ نه نه ! بلکی له هر بری وروسته به ماته دمرگ څیره نوره هم هیبتناکه شی.

هغه په ژوند کی دلومړی ځل لپاره دا احساس کړ چی په مرگ بری موندل په دنیا کی دانسان تر ټولو لوی بری دی ، دا دهغه ستره فتحه ده او دا بری یوازی دهغو انسانانو په برخه ده‌چې مرگ او ژوند یی دخدای «ج» لپاره وی.

بدر بن مغیره زما په څیر دځان لپاره نه بلکې دخدای «ج» لپاره جنگیږی . خدای «ج» هغه ته دکوم نا معلوم طاقت نوم نه دی بلکې یو حقیقت دی . داسې حقیقت چې پر هغه یی تکیه کړی او دمرگ په مخ کی دیوه‌کمره په څیر دریدلی.

کاشکی ما په مرگ داسې بری موندلی وای ، ابو داود ته دخپلو خیالونو محلونه ټول دختو انبارونه ښکاره شول.

ابو عبد الله له خپل تخت نه جگ شو او شاته کوټی ته ولاړ ، پهره دارانو بدر بن مغیره بهرته روان کړ ، او سرداران یو تر بل وړاندی کیدل او ابو داود ته یی په دی بری مبارکې ورکوله ، خو ده داسی گنله لکه دوی چې ملندی پرې وهي ، یو غلام راغی هغه ته یی وویل چی ابو عبد الله دې په بله کوټه کې غواړی.

لږ څند وروسته ابو داود په یوه ښکلی کوټه کی دابو عبد الله په مخ کی په کرسی ناست ؤ . دبدر بن مغیره په وړاندی چی له ده سره دکمتری کوم احساس و هغه دابو عبد الله په وړاندې ورو ورو لری شو ، دغرناطې تش په نامه پاچا هغه دیوه غیر عادی انسان په حیث مانه کله چې هغه کوټې ته ورغی نو هغه ور

هغه دې چې دابو عبد الله په نړۍ کې اوسي ، او په دې دنيا کې زه تر لکونو انسانانو نه هوښيار او ذهين يم ، زه ابو عبد الله غوندې په لکونو خلك په خپلو ګوتو نڅولی شم ، ما په دې دنيا کې دخپل برې لارې پاکې کړې دي ، زه به په همدغو لارو ځم او دهرې نوې کاميابۍ سره به زما احترام او درناوي نور هم زياتيږي او دمرګ په وخت کې به له ماسره دا ترېخ احساس نه وي چې په ژوند کې زما کوم ارمان پوره نه شو . زه باید دبدر بن مغيره په هکله څه سوچ ونه کړم.

دهغه نړۍ زما له نړۍ نه بېله ده ، زه که دهغه په باب سوچ کوم له پريشانۍ پرته به هيڅ په لاس رانه شي ، زما دنيا هغه ده چې ابو عبد الله غوندې احمق خلك پکې اوسي ، زه په دوی کې په لکونو تنو دحکمرانۍ لپاره پيدا شوی يم. زه دانسانانو دګلې دزغلولو لپاره پيدا شوی يم. په همدې خيالونو کې ناڅاپه ربيعه ور په زړه شوه ، او دا انديښنه ورسره پيدا شوه چې که هغه را په خود شي زه به څه ځواب ورکوم .

انجيلا هم له هغې سره په ملګرې ضد کوي ، هغه به په دروازه کې زما انتظار کوي ، هغه به ما دخپلې خور سره دخواخوږۍ په اوښکو پريشانه کړي.

دابو داود په څير ابو عبد الله هم پريشانه وُ چې که دا خبر حرم ته ورسيد نو دهغه مور او ميرمن چې دموسی په بندۍ کېدو يې درې ورځې ژړدي ته لاس ورنه وړ،دي به تر ملامتۍ لاندې ونيسي.

هغه ابو داود ته ووېل : ما دمحل ساتونکی ته ووېل چې هغه ووژني او بيا ما ته احوال راکړي . زه ددې کار تر پايه حرم ته نه ورځم.

ابو داود ووېل : ته به دربيعې په کړورو خفه شوی وې ، زما له هغې نه دا تمه نه وه خو هغه ډيره هوښياره او حساسه ده ، هغه چې بلې کوټې ته ولاړه بې سده شوه ، زما باور دی چې هغه، هغه مهال هم په هوش کې نه وه.

ابو عبد الله له لږ سوچ وروسته ووېل : تاسو بده مه منئ ، که هغې په هوش

وراندې رانه شی آیا دا به غوره نه وی چې تر هغو پورې په شطرنج سات تیر کړو!

ابو عبدالله ووېل : تا زما دزړه خبره وکړه ، خو یو شرط دی چی دشپی پاتی برخه به همدلته تیروو.

ابو داود ووېل : زه تر سبا ماسپښین پوری له تاسره پاتی کیدو ته تیار یم .

*****

(٤)

بدر بن مغیره یې په ډیرو کړو وړو لارو یوی داسی سمڅی ته ورساوه چی دروازه به یې یوازې په همدغسی وختونو کی خلاصیدله ، له هغو اتو سپاهیانو سره چی له بدر سره راغلل ، په لاره کې ځای ځای پهره داران ولاړ وو ، په کوټه کې دننه مشال لګیدلی ؤ ، او جلاد ددوی انتظار کاوه ، سپاهیانو دبدر لاسونه بیله څه مزاحمت نه په یوه اوسپنیزه شکنجه کی وتړل .

سپاهیان دکوټوال په اشاره بهرته ووتل ، هغه دروازه بنده کړه او بدر بن مغیره ته یې وکتل ویې ویل :

دا یوه رسمی خبره ده خو زه تا ته په یقین وایم زه به ستا په مرګ تر هر چا زیات خفه یم ، زه دالحمرا دکوټوال په حیث نه ستادیوه خواخوږی په حیث درنه پوښتم چې له مرګه وراندې که داسې هیله او آرزو لرې چی زما په توان کې وی پوره کولو ته تیار یم.

بدر بن مغیره ځواب ورکړ : زه پوهیږم چې ته بی وسه یې زمایوه هیله بنایی تر سره کړای شی ، او هغه دا چی که تا ابو عبدالله دابو داود او یا دهغه دکوم دوست په حکم واژه . نو هغه په دی کوټه کی مه وژنه زه نه غواړم چې دهغه وینې زما په وینو ګډې شی ، کوټوال ووېل : تاسو ربیعی ته څه پیغام استوی ؟

ونیوه ویې ویل : ودرېږه ! بیا دروازې ته ورنژدې شو په زوره یې غږ وکړ :
څوک یې ؟
دده په ځواب کې دپهره دارانو ویریدلی غږونه اوچت شول :
دروازه خلاصه کړه .
هغه ژر تامبه لرې کړه ، په دروازه کې یې دحرم مشر ساتونکی دابو عبد الله بودۍ مور ، میرمن ، او انجیلا ولیدل حیران شو ، دهغوی شاته څو تنه دحرم خدمتګاران ولاړ وو ، دالحمرا مشر ساتونکی دننه وکتل آرامه ساه یې وکښله ویې ویل : مورې په ښه مهال را ورسیدو ، بیبیانی دپاچا تر ټولو لوی دښمن دوژلو ننداره په خپلو سترګو ګوری.
کوتوال پریشانه شو ویې ویل : دبیبیانو دهیلی تر سره کول زما فرض دی خو مورې به دپاچا له غوسې نه ژغوری .
دابو عبد الله مور په کوټه ور ننوته ویې ویل : ته باید دانعام تمه ولری ، نن زما زوی په یوه لوی دښمن بری موندلی ، بیا یې لوی کوتوال ته وویل هغو ټولو سپاهیانو ته زموږله خوانه انعامونه ورکړه چې ددوی دهوښیاری په وجه ابو عبد الله پر دغه لوی دښمن بری موندلی او زمونږ له طرفه دا ورته ووایی چې ابو عبد الله یا بل چاته دلته زموږ دراتګ خبر ورنه شی هغه په هره خبره په غوسه کیدو روږدی شوی.
بیا دری تول کوټې ته ننوتل ، کوتوال دروازه بنده کړه او ویې ویل : ته له مجرم سره څه خبری کول غواړی ؟
دابو عبد الله مور ورو وویل : آیا ته هم بدر بن مغیره مجرم بولی ؟
کوتوال حیران شو او ورته ویې کتل ، دابو عبد الله مور خپل امیل له غاړی نه راواخست دهغه په لاس کې یې کیښود ویې ویل :
دا ستا انعام !

دابو عبد الله مور وویل : په دې کې شك نشته چې دالحمرا امارت او دبدبه یوه افسانه شوه ، خو دپاچا مور او میرمن دومره تش لاسې نه دي ، چې خپلو وفادارو ته معمولي انعامونه هم ورنکړای شي ، مور ته دا احساس مه راکوه چې مور غریبان یو ، مور دډیرو دا څو توتې پر سرحدي عقاب شیندو .

لوی کوتوال کشر ته وویل : اوس څه فکر کوې ما دهرڅه بندوبست کړی دی ، دی پریږده .

کوتوال حبشي ته وکتل اشاره‌یی ورته وکړه او هغه دابو عبد الله د میرمنې له لاسه «کړه» واخسته .

دبدر بن مغیره مخ بل لوري ته ؤ ، دهغوی خبرې یې اوریدې او سترګې یې دهغه کبریایي ذات داحسان په اوښکو ډکې وې چې خپل بنده ګان په هیڅ حالت کې هم نه هیروي .

جلاد شکنجه پرانستله ، بدر بن مغیره جګ شو او خپلو احسان کوونکو ته یې وکتل ، ملکه را وړاندې شوه ویې ویل :

زویه ! ما خپله‌ مور وګڼه ، مور خپل فرض تر سره کړ ، که ته دا نیکي بولې نو کله چې وخت راغی له ابو عبد الله نه دبدل اخستلو پر ځای هغه درحم وړ وبوله

بدر بن مغیره ځواب ورکړ : زه اوس هم هغه درحم وړ بولم ، ما ولیدل چې دملت خرڅوونکو په لاس څومره بې وسه دی ، دابو عبد الله دمیرمن سترګې را ډکې شوې ویې ویل : زه له تانه دا وعده غواړم چې ته به مایوسه کیږې نه او دغرناطې نه به ځان نه لرې کوې ، یوازې غرناطه نه بلکې داندلس هره مسلمانه میرمن تا خپل محسن بولي.

بدر دهغې تر تاثیر لاندې راغی ویې ویل : زما خورې ! غرناطه د اندلس د مسلمانانو وروستي مورچل دی ، زه او زما ملګرې به یې تر وروستیو سلګو

څو ابو عبد الله په خپلو کړو پښیمانه شوی نه وی که نه نو ستا پر ځای باید همدوی پخپله چیرته پټ شی او بیا په الحمرا دپاچهی دغدارنو قبضه شی.

بدر ځواب ورکړ : یوازی له ځو بااعتماده ملګرو پرته به زما د ژوند په باب هیڅوك هم خبر نه شی ، دیوه دیر لوی هدف په خاطر زما پټ پاتی کیدل ضروری دی.

ملکی وویل : خدای «ج» دی مل او مرستندوی اوسه .

*****

(۵)

انجیلا تر اوسه پوری چوپه وه او بدر بن مغیره ته یی کتل ، دبدر وروستی پام شو هغه په وارخطایی یو ګام ور وړاندی شوه ویې ویل : ربیعی ته چرت مه وهه ، دهغی دلته راتګ مشکل ؤ .

دابو عبد الله میرمن وویل : مور دانجیلا احسانمن یو چی پر وخت یی خبر کړو.

دبدر په شونډو هم یوه دمننی موسکا خپره شوه ویی ویل : انجیلا ! ستا داکتر به خامخا له مانه ستا پوښتنه کوی ، که هغه ته څه پیغام دراستوی زه دقاصد دندې سرته رسولو ته تیار یم .

دیوی شیبی لپاره دانجیلا توله وینه په غومبوریو کی را ټوله شوه ، دې سمځی ته له راتلونکو وروسته یی تر ټولو لویه هیله دا وه چی کاشکې دبشیر بن حسن په باب یی څه ویلی شوای.

ددې له بدر نه دهغه دیادولو هیله نه وه ، او دې دا هم احساسوله چی دموقع په موندلو به هم ددې ژبه دزړه له ترجمانی نه ناتوانه وی . خو لکه بدر چی دی ته دجنت ترلی دروازی پرانستی وی دی ورته وویل : دهغه پر ما زیات احسان دی زما له طرفه دا دسمال ورکړه ، انجیلا بیا په نه زړه وړاندی شوه او یو وړوکی

داران څو گامه وړاندې دمحل تر یوه خدمتګار را چاپیر وو ، هغه ددوی دپام وراړولو لپاره داشرفیو په ویش کې بخل کاوه ، خو کله چې بیبیانې ولیدې ژر ژر یې کڅوړې تشې کړې.

څو شیبې کوتوال په دروازه کې ودرید او چې کله بیبیانې لرې شوې هغه راووت او پهره دارانو ته یې دپاچا حکم ؤ چې ددې وژلو خبر تر موږ پورې محدود وي ،ملکه او کشره بې بې دپاچا له امرنه پرته راغلې وي ، اوس که پاچا خبر شي بیبیانوته به څه ونه وایي خو زموږ خیر نشته .

کوتوال څلور تنه دلاش دپورته کولو لپاره وروغوښتل او نورو ته یې اجازه ورکړه .

لږ څنډ وروسته څلورو تنو هغه تخته په اوږو کړې وه چې بدر پرې پروت ؤ . لوی کوتوال او دزندان کشر کوتوال له څلورو سپاهیانو سره په کړو وړو دهلیزونو کې وړاندې ولاړل ، له زیاتو کړ لیچیو تیریدو وروسته دیوه دیوال په مخ کې ودریدل ، دلته دوړاندې تګ لپاره لاره نه وه ، دزندان کوتوال مشال لوی کوتوال ته ورکړ او پخپله یې په دیوال کې یواوسپنیز میخ ونیو دمیخ په حرکت په دیوال کې یوه ګرز سره درز پیدا شو او ورو ورو دومره لوی شو چې سړي اسانه ترې تیریدای شوای . دوې دسیند داوبو مست شور واورید چې په مخکې یې بهیده ، دوې تول بهرته ووتل او ویې لیدل چې په یوه داسې چپو تره ولاړدي چې لاندې مست سیند بهیږي . سپاهیانو تخته په ځمکه کیښوده ، لوی کوتوال دزندان دکوتوال په غوږ کې څه وویل .

او هغه بیا سپاهیان مخاطب کړل ورته وویل : تاسو له کلونو راسې زما ملګري یاست ، ځکه خو زه له تاسونه دڅه خبرې پټول ستاسو دوفادارۍ سپکاوی ګنم ، زه تاسو له یوه مهم راز نه خبروم.

دکوتوال په دوه زره توب یوه سپاهي وویل : ته اندیښنه مه کوه موږ په هغه

هغه وویل : نه ! نه! دغرناطي اولس ته دسرحدي شاهين ژوندي پاتي كيدل موږ ته تر ټولو لوی انعام دی.

له لږ اصرار او كشمكش نه وروسته سپاهي چي دخپلو نورو ملگرو رضايت وليد كڅوړه يې واخسته .

دزندان كوتوال پوښتنه وكړه : آيا نور پهره داران هم په دی شكمن وو چي موږ دی نه وژنو ؟

سپاهی: نه ! مگر په دوی كې دزياتو دا هيله وه چي كاشكي دملكي رحم پری راشي ، زما پخپله هم له ملكې نه دا ته نه وه خو د وژنتون دليدونه وروسته داده شوم ، هلته دوينو يو څاڅكی هم نه ؤ.

كوتوال وويل : اوس به جلاد دا كمی هم پوره كړی وی ، بدر له تختې نه جگ شو څادر يې لرې كړ او وې ويل : زما په گومان اوس ماته دژونديو په دنيا كې دقدم ايښودلو لپاره ستاسو داجازې ضرورت نشته .

لوی او كشر كوتوال او سپاهيانو په وار وار هغه ته لاس وركړ .

لوی كوتوال ورته وويل : نور زموږ مسئوليت ختم شوی دی ، اوبه تونديي هم دی او يخی هم كه ستا په خپلو متو باور نه وی موږ به دپوړۍ وتلو څه بندوبست درته وكړو خو وخت تنگ دی .

بدر : تاسو چرت مه وهی هغه پاك ذات چي زما له غاړې نه دجلاد توره لرې كړه په دې څپو كی به مې هم ساتندوی وی.

كوتوال : دير ښه خدای دی مل شه ، نن ته الحمرا ته له غلچكي دروازې نه ننوتې او له غلچكي دروازې نه ووتې ، خدای «ج» دی هغه ورځ راولی چي دالحمرا لويه دروازه دی پر مخ پرانستې وی .

بدر بن مغيره دخدای «ج» پامان وويل دسيند څنډې ته ورنژدی شو او له يوی شيبې ځنډ نه وروسته پری وركړ شو .

ودرید . لږ څنډ وروسته یې دوه تنه ولیدل چې د سیند په غاړه روان وو . له هغو نه یوه وویل :

هغه ډیر ځنډ وکړ ، سهار کیدونکی دی . دوهم ورته وویل : هغه خو دا هم ویلی وو چې زما انتظار مه کړئ ، دکامیابۍ په صورت کې به زه ډیر وخت هلته ایسار شم .

دوهم : مګر هغه خو دا هم وویل چې که امکان ؤ دزینو په لاره به ځوك درته راواستوم او له سهی احوال نه به مو خبر کړم.

بل ملګری : کیدای شي هغه ددې فرصت نه وي موندلی ، که اوس انتظار کول غواړی نو دلته به ودریږو .

بدر غږ پرې وکړ : منصوره !

هغوی دواړه ودریدل او بیا په منډه راغلل ده ته یې غیږې ورکړې هغوی منصور او بشیر بن حسن وو.

دخپلو ملګرو له ډیرو پوښتنو نه بدر په تنګ شو ویې ویل : راځئ له دې ځایه ځانونه باسو . دتګ په وخت بدر دبشیر په اوږه لاس کیښود او په غوږ کې یې څه ورته وویل او له دې سره سم یې دهغه په لاس کې یو لوند شوی دسمال ورکړ .

منصور هغه ته وکتل او ویې ویل : داسې ښکاري چې ته په خپله رضا نه وې راغلی .

بدر بن مغیره : ستا اټکل پر ځای دی .

بشیر بن حسن : زما په ګومان موږ دخطر له سیمې نه راوتلی یو تاسو خپل داستان پیل کړئ .

بدر بن مغیره په تلو تلو کې لنډ لنډ خپل ټول سرګذشت تیر کړ .

دیو کوس په اندازه له پلې تګ وروسته دری واړه په یوه ګڼ باغ کې تیر شول او یوه ویجار کور ته ورننوتل هلته ددوی پنځه تنه ملګری او اسونه وو .

ته ځان را ورسوه او بشیره ! ته مالقه ته ولاړ شه . هلته الزغل او الزیغری ته ټول حال ووایه بیا ورته ووایه چې تر څه وخته زما په پټ پاتې کیدو کې ډیر مصلحتونه دي.

ابو عبدالله او ملگری به یې دیر ژر زما دمرگ خبر فردیناند ته ور رسوي . هغه به سمدستي دحملې لپاره تیاری ونیسي الزغل ته مشوره ورکړه چې دمقابلې پر ځای په شا څه او ددېمن پوځیان زموږ تر سیمې پورې را ورسوه که هغوی وراندې راغلل نو موږ به پریکنده گوزار پرې وکړو ، دا هم امکان لري چې فردیناند دابو عبد الله په رضا منذی غرناطه خپل مرکز کړي او په مالقه حمله وکړي . په دې صورت کې دې دپاچا عسکر مخکې ورشي او په سرحد کې دې دهغوی دایسارولو هڅه وکړي له یوه معمولي ټکر وروسته دې ځنگل ته په شاشي زه به دمناسب وخت په رارسیدو ددوی دلاربښوني لپاره تا ورواستوم ، خو په هغوی دا تاکید وکړه چې په هر صورت دمالقې ددفاع لپاره لږ تر لږه نیمایی پوځ باید هلته پریږدي.

# د تورو جامو خاوند

د بدر بن مغیره دوژل کیدو آوازه داندلس په ساره او اوږدو کی دځنګل داور په څیر خپره شوه ، دابو عبد الله هیله وه چی دغه خبر دغرناطی اولس ته ونه رسیږی ، خو ابو داود مشوره ورکړه چی ددی خبر په خپریدو به دابو الحسن ملا تری مایوس شی ، څکه خو یی ځینو پلورل شویو خطیبانو ته اجازه ورکړه چی دسرحدی شاهین دوژل کیدو خبره خپره کړی .

فردیناند ته ابو داود خپل استازی ولیږه او دا پیغام یی ورکړ چی پر ابو الحسن دوروستی ګوزار لپاره همدا مناسبه موقع ده .

ابو عبد الله پخپل ګومان له یوه دیر لوی غلیم نه ځان بی غمه کړی ؤ بیا هم دغرناطی په شاو خوا کی دسرحدی شاهین دملګرو موجودیت هغه پښه اندیښمن کړی ؤ خو چې کله نې واوریدل دسرحدی شاهین ملګرو دغرناطی کلا بندی پری ښوده او ولاړل نو له خوښی نه په جامو کې نه ځائیده . دوه دری ورځې وروسته یی دا هم واوریدل چې هغوی په مالقه کی دابو الحسن ملګرتیا هم پریښوده او ولاړل نو په شاهی محل کې یې جشن جوړ کړ او په وطن پلورو یی انعامونه وویشل.

څو ورځې وروسته هغه ته دفردیناند استازی وررسید او دا خبر یی راوړ چی تر څو هفتو پوری به زموږ پوځ داندلس جنوبی څنډو ته ورسیږی . دپوځ زیاته برخه به دغرنیو قبایلو دځپلو لپاره شمال او ختیځ لوری ته دجبل شیلر په لوری

ابو عبد الله په خپل گومان دبدر بن مغیره په وژلو دفردیناند دلارې تول اِزغي لرې کړی وو ، دهغه باور ؤ چې سر پرست او حلیف به یې په اوږو دنوی جگړی بار نه اړو ی . هغه به دتوپان په څیر په مالقه ور وخیژی او دده تول دښمنان به تباه او بر باد کړی . او دی به داندلس دیوازینی حکمران په حیث په رسمیت وپیژنی او بیرته به ستانه شی.

هغه چې دفردیناند پیغام واورید دپریشانی په حالت کې نی له ابو داود نه پوښتنه وکړه : آیا فردیناند ته دا نه ده معلومه چې په اوسنی حالت کی زما دپاره تر ټولو محفوظ ځای دالحمرا مانۍ ده ؟ دسرحدی شاهین له وژلو نه وروسته دغرناطې اولس زما پر خلاف سخت را پاریدلی او په پوځ زما دا بد گومانی ده چې که زه دخپل پلار پر خلاف حمله وکړم نو یو شمیر افسران به ما پرېږدی او له هغه سره به یو ځای شی.

ابو داود دفردیناند په مصلحتونو پوهیده ، هغه ته معلومه وه چې فردیناند په ابو عبد الله پوره باور نه لری ، او هغه پر ابو عبد الله ځکه په مالقه حمله کول غواړی چې دپلار او زوی تر منځ دنفرت او کرکی خلیج دومره پراخ شی چې دسولی او تفاهم امکان یې پاتې نه شي ، ځکه ابو داود ځواب ورکړ : ښایی دفردیناند به دا هیله وی چې ددښمن پام درې لوریو ته واوړی ، که ته له جگړې نه ډډه وکړې امکان لری هغه ستا له ملا تړ ته لاس پر سر شی ، ځکه خو بیله ځنده باید په مالقه حمله وکړی ، سرحدی شاهین او دهغه سر ښندویان ددښمن تر ټولو لویه تکیه وو ، سرحدی عقاب وژل شوی اوملگری یی خپلو خپلو کورونو ته ستانه شوی دی ، ځکه خو امکان لری دفردیناند دلښکرو دراتگ نه مخکی تاسو مالقه فتحه کړی ، دمالقی له نیولو وروسته به دجنوب ټول سرداران او قبایل ستا اطاعت وکړی او ته به دفردیناند احسان منلو ته اړ نه وی.

ابو عبد الله ورېل : دمالقی جملی ته تیار یم خو یوازی په هغه صورت کې چې

(۲)

دابو الحسن وجود فلج او سترګې یې ړندې شوې وې ، دامیرانو په اصرار یې خپل ورور الزغل پر خپل ځای وټاکه ، فردیناند له خپل بې شماره پوځ سره له قسطلې نه راووت او دقرطبې سره یې پړاو واچاوه ، په اندلس کې یې دمسلمانانو پر وروستی کلا دبریکنده ګوزار لپاره تیاری ونیو .

هغه دشریش ، اشبیلیی او قادس امیرانو ته امر وکړ چې دغرناطې جنوب ختیځ ښارونه لوټ کړي او د «سیرانویدا» غرونو ته مخه کړی ، پاتی پوځ یې دیوه تجربه کار جنرال تر مشری لاندې دشمال ختیځو سرحدی قبایلو دخپلو لپاره واستاوه .

کله چې دفردیناند لښکری دسرحدی شاهین-آزادی سیمی ته ننوتی نو له شا او یوه او بل اړخ نه دیوه نیم غلچکی برید نه پرته یې په مخه کې څه مقاومت و نه شو ، عیسویانو په خپله لاره کې زیات کلی لوټ او بر باد کړل ، او دلوړې حوصلې سره دسرحدی شاهین په سیمه کې پر مخ تلل، یوه ورځ دهغوی قوماندان دیوې ویجاړې کلا له نیولو وروسته خپلو سپاهیانو ته په وینا کې وویل :

زما زړورو جنګیالیو ! دا هغه سیمه ده چې دسرحدی شاهین له اجازې پرته به مرغه پر پکې نه شو وهلی ، اوس ددغو باغیانو مشر وژل شویدی او ددوی حوصلې ماتې شوې دی ، زموږ دپاچا ګومان ؤ چې موږ به له سختې مقابلې سره مخ شو ، خو دا خلک چې زموږ داسونو دپښو تر پهار اوری تښتی ، زموږتورې ددښمن دوینو تږی دی خو داسې معلومیږي چې تر څو مالقې ته ونه رسیږو دا تنده به یې ماته نه شی . ځکه خو موږ باید په لاره کې له آرام او دمې پرته مزل جاری وساتو داسی ونه شی چې زموږ هغه وروڼه چې له قادس نه دمالقی په لور خوځیږی زموږنه دمخه ور ورسیږی .

بله ورځ چې دوی له یوه ځنګل نه تیریدل له یوه داسی حالت سره مخ شول چې

کمر دیوې نه فتحه کیدونکی کلا په څیر وه .

دعیسوی پوځ ځنو تجربه کارو افسرانو خپل مشر ته دلارې بدلولو مشوره ورکړه ، خو هغه دځواك په نشه بې خوده ؤ . دهغه سپاهیان هم دخپل سالار په څیر په دې پوهیدلی وو چې دسرحدی شاهین په مرګ ددی سر کشو قبیلو حوصلې ماتې دی ، دتورو جامو خاوند زرتنه سپرو دوی ته زیات ځانی تاوان ورارولی ؤ اوس دوی دا بنه نه ګڼله چې له بدل پرته دې ورانده تیر شی .

یو مابنام عیسوی پوځ د سرحدی سپرو په تعقیب له یوی سختې او تنګې لارې نه یوې درې ته ورتل ، مخامخ دنګ غر ؤ څکه سالار په همدی دره کې پوځ ته د پراو اچولو امر وکړ ، دناڅاپی برید دمخنیوی لپاره یې دپوځ څو دلګۍ دشاوخوا غونډیو سرونو ته واستولې تو له ورځ په چریکی جګړو او منډو تررو کی ستومانه پوځ په مړه ګیډه دوډۍ وخوړه او بنه شراب یې وڅښل او ویده شول .

دپوځ مشر او نورو سردارانو په شا وخوا غونډیو دریدلی پهری دکومی ناڅاپی حملی لپاره کافی ویللی او بې غمه ویده شول . دشپې په دریمه برخه کی ناڅاپه دهغو پهره دارانو کریږی واوریدل شوی ، دپوځ مشر وویریده او جګ شو ، سترګې یې ومښلې او له خیمې نه راووت ، څلورو خواو ته فریادونه اوچت وو ، او شا وخوا زیاتوخیمو اور اخستی ؤ عیسوی پوځ تورې سنبالولې چې نا څاپه دغشو باران پیل شو ، داور په رنا کې په سلګو تو سپاهیان دغشو نخښه شول.

دلښکر مشر سپاهیانو ته په تیاره کې دپټیدو حکم وکړ او سپاهیانه له اور اخستنو خیمو نه یوی خواته شول ، ناڅاپه له څلورو خواو نه دتکبیر نارې اوچتې شوې ، او دسترګو په رپ کې حمله کوونکی دعیسویانو په وارخطا پوځ ور پریوتل ، په تیاره کی دډیرو عیسویانو تورې یو له بل سره تکر شوی .

دپوځ مشر په دې ئمه چې دحمله کوونکو شمیر به زیات نه وی پوځ ته څلورو خواو ته دغونډیو دنیولو حکم وکړ ، خو دغشو او ډبرو په باران کی هغه

لاندې شول ، دسهار په رڼا کې عیسویانو ولیدل چې حمله کوونکې دهمدوی په اسونو سپاره دی او پر دوی دنیزو پر غل کوی ، تر اوسه دنصرانی لښکرو مشر په دې نه وو چې دسهار درڼا له خپریدو سره به حمله کوونکی وتښتی ، خو چې دهغوی جوش اوجذبه یې ولیده وپوهیده چې دپریکنده جګړې لپاره یې دغه دره ټاکلې ده ، په دګر دعیسویانو دمړو شمیر حوصله ماتوونکی ؤ ، دحمله کوونکو په پرتله اوس هم ددوی دپوځ شمیر پنځه چنده ؤ ، خو په دره کې دسپرو د پرلهپسې حملونه ددوې پښې ښوئیدلې وې ، دپوځ مشر د دفاعی جګړې په تکل دشاته تګ اراده وکړه ، له درې نه یو تنګی ته ووتل نو داسې یې احساس کړه چې ددښمن د نیزو له حملو نه په امن شول ، خو دلته یې هم دډآډمنی ساه اخستل په نصیب نه شول ، یو ځل بیا د هیبتناکو کمرونو تر شا پټو مجاهدینو دتکبیر نارې اوچتې شوی ، او پر دوی دغشو او دبرو باران پیل شو .

یوه دبره دلښکر دمشر په تندی ولګیده ، او راولوید مړ شو ، دهغه په وژل کیدو دسپاهیانو حوصلې ماتې شوه، دپوځ مرستیال په بیړه له تنګی نه دوتلو حکم وکړ ، ددبرو او غشو له باران نه چې وتښتیدل یوې هوارې درې ته ووتل ، او چې کله یې دپوځ حساب واخست له پنځه ویشت زرو تنو نه یوازې اته زره تنه پاتې وو.

له شانه یې دحملې دخطر له ویرې ددمې جوړولو فرصت نه ؤ او په دره کې وړاندې ولاړل ، نژدې دوه کوسه وړاندې دوی په یوه ګڼ ځنګل ننوتل چې ناڅاپه د ونو له منځه پرې زرتنو سپرو حمله وکړه ، هغوی په همدی لومړی حمله کې عیسویان تیت او پرک کړل .

ددغو حمله کوونکو په مخکې همغه دتورو جامو خاوند سپور ؤ چې دهغه دژوندې نیولو په شوق عیسویان دغه خطرناکو ګړنګونو او دروته را ننوتی ؤ .

نژدې دوه زره تنه عیسویان ځنګل ته و تښتیدل او غلی شول او نور پاتی له لږ

ورو په شاتلو او دسیرانویدا لمنو ته ورسید او دسرحدي شاهین دورتګ په انتظار شو ،

فردیناند ته دشاهین په دره کې دخپل سالار دبریالیتوبونو خوشحالوونکی خبرونه ور رسیدل ، هغه چی دالزغل دپه شاتګ او سیرانویدا په لوري دماتې خبر واورید نوردداړو لښکرو مشرانو ته یې حکم واستاوه چی دساحل دښارونو پر ځای الزغل له دواړو خوا ؤ نه راګیر کړی . له دی سره یې ابو عبد الله ته پیغام واستاوه چی په مالقه حمله وکړی .

ابو عبد الله ته دا خبر رسیدلی ؤ چی دمالقه دپوځ زیاته برخه له الزغل سره تللی دی او الزیغری ددېر لږ پوځ سره دمالقې په ساتنه مصروف دی ، ځکه خو یې خپله فتحه حتمي وبلله او پر مالقه یې حمله وکړه .

دفردیناند دزرخریدو سردارانو نه پرته دغرناطي ځنی داسې خلك هم په دی لښکر کی شامل شول چې په اندلس کی دمسلمانانو له راتلونکی نه مایوسه وو او یوازی دژوندې پاتې کیدو لپاره یی دفردیناند خوښي تر لاسه کوله .

کومه ورځ چې ابو عبد الله له خپل پوځ سره له غرناطي نه روت له هغی نه یوه ورځ وړاندې دعقاب په دره کې دفردیناند لښکر له منځه تللی ؤ اوله هغی نه دری ورځی وروسته د سرحدی شاهین سرتیری دالزغل تر بیرغ لاندې راټول شول دالزغل پوځ ددښمن له شمیر نه په ویره کی ؤ ، خو د شاندار بری خبر یی حوصلی اوچتې کړی . الزغل له بدر بن مغیره او منصور بن احمد سره دخپل پوځ ټول سنګرونه وکتل ، دبدر بن مغیره په باب دده له سرتیرو پرته چاته دا څرګنده نه وه چې هغه ژوندی دی .

سپاهیانو له الزغل سره یو دتورو جامو خاوند مول وهلی لیده ، دوی ګومان کاوه چی دبدر بن مغیره له اخستلو وروسته خدای «ج» هغوی ته یو بل مرستندوی را استولی ، ددوی هستوګنځی دپوځ له پړاو نه لږ لری ؤ . او دالزغل

منصور بن احمد دبدر جانشین گنل کیدو دغه قبایلو له الزغل نه وغوښتل چې دوی دمنصور بن احمد تر قوماندې لاندې ورکړي . منصور بن احمد د بدر په مشوره دجګړې نخچه جوړه کړه او قبایلي مجاهدین یې په لارو کې تیت کړل او هغوی ته یې لارښوونه وکړه چې عیسوی لښکرې څومره پر مخ راځي تاسو یې ته لارې ترې دغه لښکر دعقاب درې ته دننوتلو پوځ له سر نوشت نه ناخبره ؤ ورځې یې دسیرانویدا په لمن کې پړاو واچاوه او دخپل سالار دپیغام انتظار یې وکړ خو قبایلي مجاهدینو له شانه څو حملې پرې وکړې او هغوی وراندې تلو ته اړ کړل . ددرې ورځې پر مختګ په دوران کې دغه لښکر دلارې څو کلي وسوځول او یو شمیر نارینه او ښځې یې بندیان کړل ، له دې وروسته هغه خطرناکې سیمې ته ننوت چې سرحدي شاهین یې په ناکرارۍ انتظار کاوه.

بدر بن مغیره دخپلو زرتنو غوره سپرو سره ددوی په مخکینۍ ډله حمله وکړه ، دسترګو په رپ کې یې هغوی تار او مار کړل او په غونډیو کې پټ شول .

عیسوی قوماندان دوضعې په اټکل مصروف ؤ چې له شانه دقبایلي لښکر دحملې خبر ورغی دغه ځای دجګړې لپاره مناسب نه ؤ او تنګه دره وه ، عیسوی قوماندان سمدستي خپل لښکر ته دپر مختګ امر وکړ ، وړاندې تنګه لاره مخ ځوړې وه او له کوتل نه لاندې دره وه .

له شانه چې دوی دحملې توندې احساس کړه دلښکر مشر درې ته دورکوزیدو پریکړه وکړه دغه مخ ځوړې دره دوه کوسه لرې په یوه پراخ ځنګل پای ته رسیده او پورته بل لوری ته ددوو غرونو تر منځ په یو تنګې پورې تړلی وه .

په ځنګل کې دوی ته دقبایلي لښکرو دسختې حملې ویره وه او په بره لاره دغرونو په منځ کې په کومه تنګه دره کې دایساریدو خطر ؤ .دعیسوی لښکرو مشر دواړو خواو ته دلارې لیدو لپاره دوه ډلګې واستولې او پخپله دیرغل کوونکو په انتظار شو لږ ځند وروسته دده دپوځ وروستی ګروپونه را ورسیدل اودا

بیرته را ستانه شول او ویې ویل چې موږ ترڅو لس میله وړاندې ولاړو دره ځای ځای تنګه او ځای ځای پراخه ده ، دواړو خواو ته غونډۍ دیرې اوچتې دی ، ددښمن دسپاهیانو څوک مو تر نظره نه شول ، څو تنو شپنو وویل چې دغه تنګی وړاندې په هغه سمسوره دره تښتلي چې د «الپکزرا» دقبایلو کلي پکې دی .

عیسوي سالار ته دا لاره هم خطرناکه ښکاره شوه ، څو په دې دره کې دپراو اچولو نه وروسته هم دوی له څلورو خواوو ته دکلا پشان تر خطر لاندې وو ، که له ځنګ او غره نه یرغل کوونکي را بهر نه شي او منظمه جګړه ونکړي هم دوی ته به په شواخونو وهلو ډیر تاوان ور اووی . دهغه په مخ کې دسیرانویدا اوچت غر ښ چپ لوري ته هغه ځنګل و چې ددښمن صفا کول او تری تیریدل ورته له امکان نه لری وو ، شاته يې هغه څوړه وه چې یو ځل يې تری په راتیریدو کې پوره ځانی تاوانونه وزغمل ، سالار په دې هم پوهیده چې په ځنګل کې غلی پوځ به نې ښې لاس ته په وړاندې دره کې هم په غونډیو کې لاره ونیسی . بالاخره هغه ښی لاس ته دتنګی دری لاره غوره کړه ، مزل پیل شو چیرته به چې دره ډیره تنګه شوه دپوځ مشر به داحتمالي حملې دمخنیوي لپاره دپوځ ډلګی ښی او کینی غونډیو ته واستول او چې دره به پراخه شوه دغونډیو سختې لارې به يې پریښودی او په هواره دره کې به وړاندې تلل ، تر ماښامه له څه حادثې سره مخ نه شول ، شپه راغله خو دپوځ مشر دپړاو اچولو لپاره مناسب ځای ونه موند ، دشپې په تیاره کې له لږ مزله وروسته دواړو خواو ته غرونه ډیر اوچت ښکاریدل ، دره هم ډیره تنګه وه ، په تیاره کې اسونو په ډېرو تیندکونه وخوړل او ورغړیدل څنو افسرانو خپل مشر ته مشوره ورکړه چې خدای «ج» خبر دی دغه لاره کوم ځای ته وتلی ده که نه ، امکانلري له اوږده مزله وروسته زموږ لاره بنده شي او دوتلو لپاره یوې خواته هم امکان نه وی او همالته دښمن زموږ په انتظار وی ، ځکه خو یا باید بیرته را وګرځو او یا اسونه په دره کې پریږدو او موږ به غونډیو ته اوچت شو ، که

توري ډېرې هم وغورځېدې او دزخميانو کريږې ورسره غبرګې شوې ، او بيا ورسره سم دډبرو يو زوروَر باران جوړ شو سالار پوځ ته دشاتنګ حکم وکړ ، خو دډبرو دباران زور ختم نه شو ، دډبرو شور ، دزخميانو فرياد او داسونو شنهار دقيامت ننداره ښودله ، دغونډيو پر سر حمله کونکو دالله اکبر نارې اوچتې کړې وې .

سالار دپوځ دتباهۍ دمخنيوي په خاطر حکم وکړ چې اسونه پرېږدي او په غونډيو ور وخيژي ، خو په دې هنګامه کې ډېرو لږو کسانو دا حکم واورېد ، اوچې چا ددې امر دتعميل هڅه وکړه وپوهيدل چې په دې ګړنګونو ورختل هم آسانه نه دي . زياتره سپرو ځانونه د درې يوې پراخې ساحې ته درسولو په خاطر خپل اسان را وګرځول .

تر سهاره دغه پوځ په دې تنګه دره کې سرګردانه او له تباهۍ سره مخ ؤ . له ديرش زره تنو سپرو نه « ۱۲ » زره دډبرو ښکار شول ، پنځه زره تنه په غونډيو وختل او په تېښته بريالي شول ، پاتې پوځ بيرته هغه ځاى ته ورسيد چې سفر يې پيل کړى ؤ ، خو هغوى د راسمباليدو موکه ونه موندله ، له ځنګل نه تازه نفسه سپاره را ښکاره شول دهغوى دمشر په لاس کې دغرناطې بيرغ ؤ ، دښترګو په رپ کې يې اسونه والوزول او ددوى پر سرودرېدل .

دنصرانيانو شمير اوس هم له هغوى نه لږ نه ؤ . هغوى ودرېدل او مقابله يې وکړه ، خو لږ ځنډ وروسته ډېره موله وهلى تورو جامو خاوند په مشرۍ پنځه زره تنه نورسپاره له غونډيو نه رابنکته شول ، دهغوى په بيرغ دسرحدي شاهين نخښه وه ، هغوى په يوه يرغل ددښمن لښکر تار او مار کړ په دګر د ژوندى دوى اسلام ، ژوندي دوى غرناطه ، ژوندى دوى الزغل نارې سورې اوچتې شوې دفرديناند دپوځ دري زره سپرو ميدان پرېښود او ځنګل ته ننوتل او نور پوځ وسلې وغورځولې .

په بنديانو کې ۲ زره تنه دفرديناند خاص ګارد اوافسران هم وو.

دفردیناند لښکر به په ځو ورځو کی دغرنیو سیمو دمقاومت له ځپلو وروسته دده مرستی ته رارسیږی خو الزیغری له ښار نه بهرله ده سره مقابله پیل کړه ، د هغه دپوخ شمیر لږ ؤ خو دهغه دسپاهیانو جذبه او جوش دابو عبدالله له سپاهیانو نه په څو ځله زیات و . کله چی دواړه پوځونه یو بل ته مخ شول نو الزیغری خپلو سپاهیانو ته له ولولو ډکه وینا وکړه ویې ویل :

ددښمن شمیر له تاسو نه زیات دی ، خو په یاد ولری چی غدار هیڅکله هم زړورنه وی ، نن ستاسو جګړه د بقا جګړه ده ، که نن ستاسو پښې وښویدې نو په مالقه به دابوعبد الله په لاسو دفردیناند بیرغ ریږی دخدای «ج» په مرسته باور ولری ، دا دکرایی سپاهیان او وطن پلوری ستاسو په وړاندی مقاومت نشی کولی.

دابو عبد الله ستره تکیه فردیناند دی خو تاسو دا زیری اوریدلی دی چی دهغه نیمایی لښکر دشاهین په دره کی دګوتو په شمیر مجاهدینو په لاس تباه شویدی .

انشاء الله نن سبا به دا هم واوری چی دهغوی باقی پوځ هم دسیرانویدا په لمنو کې بشپړ تباه شو.

مجاهدینو مخ په وړاندی ! خدای «ج» دفتحی لپاره نن له تاسو نه پرته بل څوك نه دي ټاکلی.

ابوعبد الله او دهغه زیات ملګری دښار دکلابندی په خیال راغلی وو ، له الزیغری غوندی سر ښندوی سره په خلاص ډګر مقابله ددوی دهیلی پر خلاف وه ، دوی لا په همدی تذبذب کی وو چی دالزیغری لـه خوا یوافسر اس میدان ته راوزغلاوه او په لوړ آواز یې وویل :

مسلمانان یوازی دحق لپاره جنګیږی ، که په تاسو کې څوك دا ګومان کوی

ستا انجام دغه بی لاری خلك نیغی لارې ته راواړوی .

ابوعبد الله خپلو سپاهیانو ته وکتل او ددوی په څیرو کې یې مایوسي ولیده ویې ویل :

دا دروغ دی تاسو دده په خبرو باور مه کوی، فردیناند ته هیڅ څوك ماته نشی ورکولی.

دابوعبد الله په اشاره یو بربری سردار اس میدان ته وزغلاوه . دمالقی مجاهد اس را وګرځاوه نیزه یی برابره کړه او حمله یی وکړه ، دسترګو په رپ کی دابو عبد الله پوځ بر بری سالار لیده چی په خاورو کی یی تریکی وهلی .

دالزیغری پوځ دهغه داشارې په انتظار ؤ ، الزیغری نیزه اوچته کړه او الله اکبر ناره یی وکړه ، او دمالقه مجاهدین دتوپان په څیر دابوعبد الله په لښکر ور پریوتل .

یو ساعت وروسته دملت پلورو لښکرخلور سوه مړی په ډګر پریښودل او دغرناطی په لوری تښتیدل ، الزیغری تر لږ فاصلی هغوی تعقیب کړل ، خوهغه مالقه په خطر کی بلله بیرته را وګرځیدل ،

غرناطی ته دابو عبد الله له رسیدونه دمخه دښار اوسیدونکو ته دشاهین په دره او سیرانویدا کی دمجاهدینو دشاندار بری خبر رسیدلی ؤ ، په کوڅو او بازارونو کې دفتحې پهویاړ دخوښیو جشنونه جوړ شوی وو ځنی خلك په جوماتونو کی راټول شوی وو اودالزغل دعمر داوږدوالی دعاګانی یی کولی ، ځنی نور په څلور لارو او میدانونو کی راټول شوی وو او له شاعرانو نه یی دسرحدی سرښندویانو او قبایلی مجاهدینو په ستاینه کی بوللی اوریدې .

دابو عبد الله الحمرا ته له ننوتلو نه لږ وروسته دده دماتې خبر په ټول ښار کی خپور شو ، او خلك دمحل ددروازې په مخ کی راټول شول ، پهره دارانو دروازه وتړله

دسیرانویدا په لمنو کی تباه شول ، دغرناطې دتورو ډېرو پهرو او دچونیو له ساتونکو نه همدغسی احوالونه راغلی چی دوی دماته خوړلی پوځ سرګردانه پوځیان په تیښته لیدلی دی دښار په اوسیدونکو کې ددې خبرونو په اوریدو ډیره جوش او جذبه راویښه شوی ، دښوونځیو زده کوونکو دلوی مفتی دفتوی له مخی ستا وفادار سرداران وژلی دی او ستا سره حملی ته دوتلیو سپاهیانو کوروته یی سوځولی دی ، ابو عبد الله په نویو حالاتو دغور او مشوری لپاره امیران او سرداران دار الاسود ته راوغوښتل ، په خپله په بله کوټه کی کیناست او یوه غلام ته یی امر وکړ چی ابو داود راولی ، غلام دابو داود دراوستلو لپاره ولاړ ابو عبد الله په کوټه کی په قدم وهلو پیل وکړ ، لږ څنډ وروسته غلام بیرته راستون شو او خبر یی راوړ چی ابو داود چیرته تللی دی.

ابو عبد الله پریشانه شو ویی پوښتل : چیرته تللی ؟

غلام ځواب ورکړ : دا خبره یوازی دحرم خاص ساتونکی ته معلومه ده او هغه ستا په حضور دمشرف کیدو اجازه غواړی.

ابو عبد الله : هغه زر راوله .

لږ څنډ وروسته دالحمرا خاص کوتوال کوټې ته ورننوت او دابو عبد الله په مخ کی یی سر ټیټ کړ او ودرید .

ابو عبد الله پوښتنه وکړه : تاته معلومه ده چی ابو داود چیرته تللی ؟

کوتوال : هغه ماته دومره وویل چی زه دپاچا په امر چیرته روان یم .

ابو عبد الله: هغه له غرناطی نه بهر ته تللی ؟

کوتوال : هغه په ګاډی کی تللی دی . خپل ضروری سامان یی هم ورسره وړی دی.

ابو عبد الله : ورشه دکور نه یی پوښتنه وکړه ........ نه زه پخپله ورځم ابو عبد-الله ددروازی په لوری ولاړ خو کوتوال وویل : دهغه کور تش دی .

ابو عبد الله: تا ولې هغوی ایسار نه کړل ؟

کوتوال : ستا له حکم پرته ما دا جرئت کله کولی شوای.

ابو عبد الله: هغه ته کوم استازی نه ؤ راغلی ؟

کوتوال : نه مگر هغه دعیسویانو د ماتې دخبر په اوریدو ډیر پریشانه ؤ.

ابو عبد الله : ماته یې څه پیغام نه دی پریښی ؟

کوتوال : نه هغه ویل چې زه دپاچا دحکم په تعمیل چیرته روان یم . دالحمرا په دروازه کې دخلکو گڼه گونه وه هغه دشاله دروازې نه ووت . هغه دا هم نه غوښتل چې بهر یې څوك ووینې او ویې پیژني ځکه یې دیوه مراکشي سوداگر جامې اغوستې وې.

ابو عبد الله کوتوال رخصت کړ ، او تر لږ ځنډه له ځانه سره یوازې سوچ وروسته دامیرانو کوټې ته ورننوت .

*****

(۵)

دابو عبد الله ملگری دماته خوړلې ذهنیت خاوندان هغه خلك وو چې په راتلونکو جگړو کې یې دمسلمانانو ماته حتمي گڼله او دوی خپل تقدیر او راتلونکې له عیسویانو سره شریك کړی ؤ.

ابو دا ددوی ته دا یقین ورکړی ؤ چې فردیناند به دمناسب وخت په راتلو ددوی دغداری انعام ورکړي ، خو د فردیناند دلښکرو په ماتې او دابو داود دناڅاپي تری تم کیدو دوی ډیر پریشانه کړل .

کله چې ابو عبد الله دار الاسود ته ور ننوت ویې لیدل چې ډیرې کرسۍ تشې دی . چې پوښتنه یې وکړه ورته څرگنده شوه چې ځنې سرداران دعیسویانو دماتې دخبر له اوریدو سره غلي شوي دي. امکان لري هغوی له الزغل سره یو ځای شوي وي

یوهم ژوندی نه ؤ پریښی . په کومو خلکو چې زموږ زیاته تکیه وه همغه نن دپاریدلیو خلکو لارښوونکی دی . زموږ پوځ دمالقی له ماتی وروسته له الزغل سره دمقابلی همت نه لری. که هغوی په غرناطه قبضه وکړه نو یوازې دسرحدی عقاب په بدل کی به موږ ټول په دار وځړوی .

زموږ په مخکې یوازې یوه لاره ده او هغه دا چې غرناطه پرېږدو او فردیناند ته پناه ورووړو . هغه به دخپلې ماتې بدل خامخا اخلی زما باور دی چی فردیناند به ددی عملیاتو لپاره ډیر لږ پوځ استولی وی . او هغه به اوس په دی ماته چوپ پاتی نه شی . سمدستی غرناطه زموږ دپاره دساتنی مناسب ځای نه دی . که دلته خطر نه وای ابو داود به داسی ناځاپی نه ورکیده ، اوس زموږ لپاره تر ټولو مهمه مسئله داده چی دالزغل له بدل نه څه ور ځانونه وژغورو !

نورو امیرانو هم په وار وار دهغه خبری تائید کړې ، ابو عبد الله سر ښکته اچولی ؤ او تر ډیره یی چورتونه وهل ، بالاخره یی وویل : که ستاسو ټولو همدا رایه وی نو زه ستاسو مخالفت نه کوم ، سردار ډاډه ساه واخستله ویی ویل : نو غوره داده چی ډیر زر له دی ځایه ووزو ، زما په خیال به دشپی مهال غوره وی . خو نن دغرناطی پاریدلی اولس چار چاپیره پراو اچولی ځکه خو سبا شپې ته باید وتلو ته چمتو شو.

ابو عبد الله مجلس رخصت کړ ، صدر اعظم یی لږ له ځان سره تم کړ او تر څه څنډه دواړو دخپل راتلونکی په باب مشوری وکړی .

ابو عبد الله وویل : ایا ستا باور دی چی فردیناند له دومره زیان گاللو وروسته زما دتاج او تخت دبیا گټلو لپاره یوه بل جنگ ته تیار شی ؟ ایا هغه به دیوه ماته خوړلی او کمزوری دوست په ځای زما تره ته دیوه ځواکمن دښمن په حیث دسولی لاس ور اوږد نه کړی.

فرض کړه که په دې مصالحت کړ ...

داود هلته رسیدلی ، او دهغه په موجودیت کی که فردیناند ستا پلار او یا الزغل ته ددوستی لاس ورغځوی نو دا به معجزه وی .

ته اندیښنه مه کوه تر څو فردیناند دتیرو ماتو بدل وانه خلی موږ ته به اړوی.

دالحمرا کوتوال کوټې ته ور ننوت ویی ویل : دشمالی سرحد اعلی ناظم ستا په خدمت کی دحاضریدو اجازه غواړی.

ابو عبد الله کوتوال ته وکتل او په غوسه یی وویل : تاته معلومه نه ده چی زه اوس له صدر اعظم سره خبری کوم.

کوتوال وویل : معظم پاچا ! ما دهغه ایسارولو هڅه وکړه خو هغه ستاسو دلیدو اصرار کوی او کوم مهم احوال یی راوړی .

صدراعظم وویل : هغه اوس څنګه الحمرا ته را ننوت ؟

کوتوال وویل : نن ماښام دمعظم سلطان له راتګ نه لږ مخکې دښاریوه عزتمنده میرمن چی ملکې محترمی هر وخت الحمرا ته دننوتلو اجازه ورکړی ، ملکی ته راغلې وه او کوم پیغام یی راوړی و. ملکې ماته امر وکړ چې ناظم ته الحمرا ته دراتلو اجازه ورکړم.

ابو عبد الله وویل : ملکې عالیې له هغه سره لیدلی دی ؟

کوتوال : هوکې ! او هغی ماته امر وکړ چې زه ستا په حضور کې دهغه دملاقات عرض وکړم.

ابو عبد الله وویل : هغه اوس چیرته دی ؟

کوتوال : هغه بهر په دروازه کی ولاړ دی . هغه اصرار کاوه چی دامیرانو په مجلس کی له تاسو سره ووینی خو ما په ډیر زحمت ایسار کړ ، هغه ډیر پریشانه دی .

ابو عبد الله وویل : که هغه دا خبر راوړی وی چی دفردیناند لښکر ماته خوړلی نو ورته ووایه چی نشم ورسره لیدای

کې په دسمال ترلی ؤ .

هغه په ادب له سلام وروسته وویل : معظم پاچا ! زه په دې وخت کې ستا په آرام کې دخلل اچولو معذرت غواړم . خو ماته ستا په خدمت کې حاضریدل ضروري وو .

ابو عبد الله وویل : ته تپی یې ؟

هغه وویل : دا معمولی ټپ دی زه ستا په خدمت کې یو افسوسناک خبر وراندې کوم .

ابو عبد الله وویل : که ته داوایې چې دفردیناند لښکر میدان پریښود او وتښتید او یا زما تره الزغل په غرناطه دیرغل کولو اراده لري نو زموږ په معلوماتو کې به څه زیات نه کړي.

ټپي : عزتمنده پاچا ! زه یوازې دخپلې سیمې په باب څه وایم .

ابو عبد الله: هلته به خلکو زموږ پر خلاف بغاوت کړی وي ، موږ له داسې خبرونو سره هم دلچسپي نه لرو ، ستاسو دسیمې باغیان به دغرناطې دباغیانو نه زیاتې احساساتي نارې نه وهي.

ټپي : نه زه دباغیانو دنماینده په بڼه تاته نه یم راغلی .

دحضور غوږونو ته دمظلومانو فریاد رسول غواړم . له ماتې وروسته عیسوی پوځونو په سرحدي کلیو کې تباهي ګډه کړه هغوی زموږ پنځلس کلي وسوځول ، دخلکو دشتمنیو او مالونو نه پرته یې « ٤٠ » تنه ځوني ورسره وړي دي . له سرحد بهر هم زیات پوځیان زموږ سیمې ته راغلي وو ، زما سره ټول پنځه سوه تنه سپاهیان وو چې دری سوه یې ووژل شول دیرغل کوونکو شمیر هره شیبه زیاتیږي ، هغوی ښځې بوډا ګان او ماشومان هم وژني . هغوی داعلان نه پرته زموږ پر خلاف جګړه پیل کړې . دسرحد سیمه تشیږي . که موږ ددې وحشت او بې رحمۍ دتوپان مخه زر تر زره ونه نیوله په دوو درو ورځو کې به په زرګونو مهاجرین خپل کور کلي پریږدي او غرناطې ته به پناه راوړي.

ابو عبد الله ورېل : مونږ ته سمدستي تر ټولو لویه مسئله داده چې پاریدلی خلك څه وړ له الحمرا نه لرې او تیت او پرك کړو . که تاته زمونږ دستونزو اندازه معلومه نه وی پخپله ولاړ شه ، په دروازه کې راټول شوی خلك وو ینه .

زلمی : ما هغوی لیدلی او دلته هم دهغوی غږونه اورم.

هغوی ټول دا وایی چې نصرانیان زمونږ دښمنان دی.

هغوی په هسپانیه کی پر خپل مسلمان رعیت ژوند تریخ کړی . اوس په غرناطه کی هم هماغه لویه جوړول غواړی .

ابو عبد الله ورېل : ستا غوږونه دومره څك دی خو ته دا نه اورې چې ابو عبد الله غدار دی او د الحمرا خښته خښته به وسوځوو !

زلمی ناظم : زه دا هر څه اورم . خو زه پوهیږم چې دا ټول زمونږ خپل او خوا خوږی دی هغوی تا خپل ساتونکی او مسئول ګنی هغوی غواړی چې ددوی ساتونکی او څارونکی دراتلونکو خطرونو سره دمقابلی لپاره ددوی لارښوونه وکړی.

که هغوی ته پردی بللی ، دالحمرا په دروازه به داسی نه راغونډیدل ، هغوی را پاریدلی دی خو ستا څو جملی دهغوی احساسات سړولی شی . نه بلکی ددوی داحساساتو مخه بل لوری ته اړولی شی. زما باور دی چې که دوی دخپلو سرحدی ورونو له مصیبت نه خبر شی او ددوی په وړاندی دا اعلان وکړی چې نصرانیانو ته به ددی ظلم سزا ورکړای شی نو هر سړی به ستا تر بیرغ لاندی جګړې او سر ښندلو ته چمتو شی که نه نو ......!

ابو عبد الله ناظم ده زړی ولید ورته ویې ویل :

که داسی نه وی نو څه ...؟

ناظم ځواب ورکړ : که نه نو ته پوهیږی چې دوی به ټولی هیلی په الزغل پوری وتړی او په دې کې به حق په جانب وی .

ابو عبد الله ورېل : هغوی خپلی هیلی په الزغل پوری تړلی دی.

ناظم : مګر په سرحدي سیمو کی دنصرانیانو کی وره دا ثابته کړه چې

پخوانی تول خفگان هیر کړی.

صدر اعظم چی ابو عبد الله دناظم دخبرو ترتاثیر لاندی ولید ویی ویل : دمعظم سلطان کړو وړو ته دغلطی نوم ورکول جرم دی او ته دپوځ یو مسئول افسر یی.

ناظم : که ماته دخپلو مسئولیتونو او ذمه واریو احساس نه وای نو داسی خبری به مې له خولې نه وتلې.

ابو عبد الله وویل : سمدستی اوس زه کومه پریکړه نشم کولی ته ولاړ شه استراحت وکړه سبا ته به گورو.

ناظم وویل : عزتمنده پاچا ! زه سمدستی سرحد ته ځان رسول غواړم . تر اوسه پورې به زمونږ ډیر کلی تباه شوی وی . که تاسو تر سهاره څه پریکړه نشی کولای نو له پوځ نه لږ تر لږه پنځه سوه تنه ماته راکړی ، زما باور دی چی تر لمر ختو پورې به لږ ترلږه دوه زره تنه رضا کاران هم برابر کړم ، خلکو ته باید یوازی دا څرگنده شی چی ته دعیسویانو دمظالمو زغملو ته تیار نه یی.

صدر اعظم وویل : مونږ له فردیناند سره ددوستی تړون کړی دی ،

ناظم: که داخبره نه وای ما به دعزتمن پاچا نه له پوښتنی پرته رضا کاران راټولول او مقابلی ته به ورتلم .

صدر اعظم: مونږ به سهار فردیناند ته استازی واستوو او پردی تیری به یی سخت احتجاج وکړو ، زما یقین دی چی زمونږ پر سرحد دعیسویانو دغه چپاو ده ته نه دی معلوم .

ناظم : د وزې احتجاج دلیوه فطرت نشی بدلولی.

ابو عبد الله په غوسه شو ویی ویل : ته تلای شی که مونږ ته کله ستا دمشورو ضرورت شو را وبه دې غواړو ، اوس مونږ ته داستراحت ضرورت دی.

ناظم :.نو آیا دعزتمن پاچا دا حکم دی چې هغه مظلومان په هماغه حال پریښودل شی ؟

ابو عبد الله خجالت شو ویی ویل : ما تر اوسه تا ته څه حکم نه دی کړی ، ته

# یو اوبنتون

دصدر اعظم له رخصتولو وروسته ابو عبد الله ددیری پریشانی په حالت کی حرم سرای ته ننوت ، کله چی دخپلی میرمنی کوټې ته ننوت یوی وینځی په ادب له سلام وروسته ورته وویل : محترمه ملکه او ستاسو مور دالحمرا د لویی دروازی په برج کې ناستې دي ، هغوی ته خبر ورغی چی تاسو به تر ډیره مصروف پاست دوی همدا اوس هلته ولاړی.

ابو عبد الله تر لږ ځنده دتذبذب په حالت کی ودرید بیا یې وویل: هغوی خو دپاریدلیو خلکو خبری دلته هم اوریدای شوای. دهغه په لهجه کی تر تریخوالی بی وسی زیاته وه .

مینځی وویل : که دحضور اجازه وی نو زه به ستاسو دراتګ خبر ورکړم.

ابو عبد الله سر خوړند دحرم سرای له دروازی نه ووت.

ددروازی پهره دار دمعمول په شان په هغه پسی روان شو خو ده مخ ورته راواړاوه و یی ویل : زه تخلیه غواړم.

پهره دار بیرته را وګرځید ، ابو عبد اله دمرمر دبرو په فرش ورو ورو ګامونه اخستل دلویی دروازې په لوری روان شو بهر یې دمظاهره کوونکو غږونه اوس صاف اوریدل دبرج زینو ته چی وررسید ودرید او تر ډیره دوه زری هلته ولاړ ؤ ، هغه خپل ښځه دخپل ژوند دیوی ډیرې سختی پریکړې نه خبروله ، او تر اوسه دده پخپله هم باور نه ؤ چې په دې پریکړه به څومره عمل وکولای شی ، دهغه دژوند ډیری لږ شیبې داسې وې چې هغه له الحمرا نه بهر تیرې کړې وې ، همدغه دده

پلار پر خلاف نه بلکی دباغی رعیت پرخلاف هم د فردیناند په توره تکیه کوم ، مگر له دغو ماتو وروسته به فردیناند زما په خاطر داسې جگړې ته زړه ښه کړی چې نتیجه یی ده ته ډیره خطرناکه هم کیدای شی ؟ او ایا د هغه وروستۍ ماته به زما او زما دملگرود بشپړې تباهۍ په معنی نه وی ، او که هغه بریالی شی نو ددی بری دتولو انعامونو حقدار به ما وگنی ؟

هغه پخپله دی پوښتنو ته ځوابونه ورکول ، ابو عبد الله ا ته دغرناطی پر اسمان یو بد مرغه ستوری یی ، دفردیناند په لاسو دځان لپاره دغرناطې ددروازو پرانستلو معنی دا ده چې دغرناطې دمسلمانانو تول قوت وځپلی شی، دالحمرا په دروازه کی دمسلمانانو لاشونه انبار شی ، دا خلك چې اوس نعری وهی ستا دهغه تخت درناوی نه کوی چې دفردیناند په مرسته یی تر لاسه کوی، هغه تخت چې لاندی تری مسلمانان په ترپکو او سلگو وی ، دوی به تا تل یو غدار او خاین بولی ، مگر اوس زما مخی ته دځان ساتنی مسئله ده ، زه دلته له یوی بیا دوو ورځو زیات نشم پاتی کیدای زما تره به خامخا په غرناطه یرغل کوی ،دغه پاریدلی خلك به له هغه سره ملگری کیږی او بیا به هغوی زما فلج شوی پلار دلاس آله کړی او په غرناطه به حکومت کوی ، آیا دا امکان نه لری چې دغرناطی له نیولو وروسته له فردیناند سره سوله وکړی ، آیا فردیناند به یوازې زما په خاطر دهغوی دسولی ورغځیدلی لاس تش پریږدی ، ایا هغه به دخپلې گتې په خاطر ما الزغل ته ونه سپاری ؟ ایا ما د خپلو آرزوگانو په خاطر آن خپل پلار قربانی نه کړ ، دمالقی دمعمولی پوځ په وراندی زما ماتی به د فردیناند په زړه کی زما څه درناوی پریښی وی ؟

دداسی پریشانه خیالونو نه دخلاصون په خاطر به ده دابو داود جادویی خبروته پناه ورله ، دابو داود په موجودیت کی هغه هیڅکله هم دزیات سوچ ضرورت نه احساساوه ، تر اوسه پورې چې ده څومره اشتباهات کړی وو لامل یی دا ؤ چې ابو

داود ژ چې په هر نوي ګرداب کې به یې تسلي ورکوله ، او اوس دابیرې داسې کمرونو ته ورننژدې شوی وه چې ابو داود تر اوسه دخپل شاګرد له نظره پټ ساتلي وو.

ابو عبد الله ورو ورو په تاو راتاو زینو کې پاس وخوت دبرج په دالان کې دده پر میرمن او مور سربیره څو نوري ښځې هم وې چې له کړکیو نه یې لاندې کتل ، دمظاهره کوونکو دچیغو او فریادونو په شور کې چا د ابو عبد الله د پښو غږ وانه ورید . هغه تر لږ ځنده دګنبزې لاندې چوپ ودرید ، لاندې ددروازې په مخه کې دخلکو لویه ګڼه ګوڼه وه او نعرې یې وهلې «ابو عبد الله غدار دی.

ابو عبد الله وطن پلوري دی . ابو عبد الله غرغره کړی .

الحمرا وسوځوی !

دځینو خلکو په لاسونو کې مشالونه وو او ځینو خپلې توري او نیزې اوچتولې ، ابو عبد الله په زړه کې له ځانه وپوښتل : ایا زه دفردیناند په مرسته په دې خلکو حکومت کولی شم ؟ نه ، نه ! پخپله یې ځان ته ځواب ورکړ . دا امکان لري چې فردیناند زما په خاطر لویښت په لویښت غرناطه وسوځوی او دغرناطې په هره څلور لارې کې ددې خلکو دلاشونو انبارونه جوړ کړي خو دا امکان نه لري چې هغوی دوی زما په اطاعت مجبور کړي .

ایا دغرناطې دتباهی تقدیر زما په لاسو کې دی ؟

هغه له دې تصور سره ولړزیده له ځانه سره یې وویل :

ابو عبد الله ستا په مخکې اوس یوازې یوه لاره پاتې ده ، او هغه دا چې ته له دې تخت او تاجه دتل لپاره لاس واخله ، ته داندلس په ځمکه کې چیرته غلی شه ، مګر ته به چیرته ولاړ شې ؟

فردیناند ته ! نه نه هغه ورتګ به دا معنی ولري چې غرناطه به ستا په لاسو تباه کیږي ، هغه به تل تا دخپلو اهدافو لپاره استعمالوي ، ته به دهغوی دهیلو

تا په هغه اعتبار وکړ خو چې وخت راغی هغه ته پرېښوی او وتښتید ، ته دهغه په لاس کې یوه ټانځکه وی ، هغه ته دخپل پلاز پرخلاف وپارولی ، او تا دخپل پلار پر خلاف بغاوت وکړ ، هغه تاته دابو موسی دبندی کولو مشوره درکړه ، او تا خپل دیر غوره دوست په زندان کی واچاوه ، هغه تاته دسرحدی شاهین دوژلو مشوره درکړه او ته دې ته چمتو شوې چې داندلس مسلمانان له یوه غوره مرستندوی او دوست نه محروم کړې.

هغه ستا په لاس کی بل شوی مشال درکړ او تا په هغه خپل درمند ته اور واچاوه ، هغه په تا داسی جرم وکړ چی ستا په خیال او تصور کی نه ؤ ، او کله چې دسزا وخت راغی ته هغه دغرناطی داولس عدالت ته پرېښودې او وتښتید.

دابو داود پر خلاف دلومړی ځل لپاره دابو عبد الله په زړه کی دنفرت احساسات را ویښ شول.

په تصور کی یی ولیدل چی استاد یی دفردیناند څنګ ته ناست دی او په ده پورې ملنډې وهی . هغه ویل چی دابو الحسن زوی زما او ستا له اټکل نه زیات احمق ؤ .

زه ددی لپاره راغلم چی نور له هغه نه زیات کار نشو اخستل کیدای.

دهمدی تصور په تل کی په زوره دابو عبد الله له خولی ووتل : ټګماره ، فریب کاره ، لعینه کاشکی زما لاس ستا تر ورمیږ در رسیدای .

دهغه دغږ په اوریدو په دالان کی ناستو ښځو ټکان وخوړ او ټولو ده ته وکتل.

له لږ دوه زړه توب وروسته دابو عبد الله مور وروړاندی شوه هغه ته په دوه دری قدمی کی ودریده تر لږ څنده مور اوزوی دسپوږمی په رڼا کی یو بل ته کتل

ابو عبد الله په کمزوری آواز وویل : که اجازه وی دا مجلس به رخصت کړو زه له تاسره ځانګړی خبرې لرم .

دابو عبد الله مور نورو ښځو ته مخ ور واړاوه ، هغوی ددی په مقصد پوهیدی

زیاتیدې :

ابو عبد الله غدار دی ! ابو عبد الله داسلام دښمن دی ، خو دهغو الفاظو په پرتله ابو عبد الله ته دخپلی مور او میرمنی چوپ کتل ډیر له زغم نه وتلی وو.

هغه چې نوره چوپتیا ونه زغملای شوه ویی ویل : دغرناطې غدار دخپلې مور او میرمنې په مخ کی ولاړ دی ، او دا پوښتنی چې ایا دوی هم دغرناطې دخلکو په څیر دهغه لپاره څه سزا ټاکلې ده ؟

دابو عبد الله مور ځواب ورکړ ، دغرناطې دغدار مور یوازې داسوچ کوی چې هغې تل له خپل تی نه زوی ته شیدې وزکړې او هغه داسوچ هم کوی چې کاشکی اوس یی زوی خلکو ته ورتلای شوای او ورته ویلی یی وای چی دی دیوی داسی مور زوی دی چی وررور او خاوند یی په پاکی سوګند خوړلی شی .

که دبرج ګنبزه ماته شوی او دده پر سر لویدلی وای هم دومره بوج به یی نه ؤ احساس کړی هغه په ډیره بی وسی مورته وکتل او ویی ویل : مورې ! زه نن خپل ځان ستا عدالت ته سپارم ماته سزا وټاکه ، ماته ووایه چی له دې برج نه ځان وغورځوم ماته ووایه چې په خپلو لاسو خپله مرۍ خپه کړم.

د پاخه عزم خاونده مور دزوی دی الفاظو تر تاثیر لاندی راغه وسټله ویی ویل: ته داددی لپاره وایی چی.میندی یوازی درحم هیلی اوریدای شی . دانصاف غوښتنی نشي پوره کولۍ ابو عبد الله تا چې کومه ونه اوبوله هغه ازغی لرونکې وه ، کاشکی ستا مور ستا لمن دهغه له ازغیو نه ژغورلای شوای.

ته په خپلو غلطیو پښیمانه نه یی دهغو له انجام نه ویرېږی ته غواړې چی زه تسلې درکړم . مګر نن ستا له مور سره ستا دتسلې لپاره الفاظ نشته ، دا یی وویل او غږ یی غریو ونیو کښیناست ، او په سترګو کې یی اوښکی ډنډ شوې .

دابو عبد الله سترګې هم را ډکې شوې ویې ویل : مورې ! اوس زما دخلاصون هیڅ لاره نشته زه تر سبا پوری له دی ځایه روانیږم ، او بیا به هیڅوک هم زما مخ

دابو عبد اله په شونډو یوه دردناکه موسکا خپره شوه او دخپلو اوښکو دپټولو هڅه یې وکړه مخ یې بل لوری ته واړاوه لاندې نور دشورماشور او نعرو په ځای دچا وینا اوریدل کیده او خلك دهغه دلاس په اشاره کیناستل . دهغه په غږ کی رعب او جذابیت ؤ . ابو عبد الله چی په څیر ورته وکتل ویی پیژاند . هماغه دسرحد ناظم ؤ چی لږ دمخه دده له درباره نا امیده وتلی ؤ.

* * * * *

(۲)

دسرحد ناظم په لوړ آواز وینا اورروله :

تاسو چې دکوم عبد الله پر خلاف نعری وهئ هغه مړ شوی دی .

هغه په هغه ورځ مړشو چی له خپل پلار سره یی غداری وکړه او په تاج او تخت یی قبضه وکړه ، ما دهغه لاش ولید او راغلم ستاسو نعری دهغه په ژوند کی تودوخه نشی پیدا کولی ، دیوه مړی بدن په متروکو وهل څه گټه لری ؟ کاشکی تاسو هغه وخت سترگې غړولی وای چی ستاسو ځینو سردارانو دغه مړئ دغرناطی په تخت کښیناوه نن هغه نصرانیان چی ابو عبد الله ددوی دخوښی په خاطر په مالقه حمله وکړه زموږ په سرحدی کلیو کی تباهی او لوټمار پیل کړی . او تاسو داسی احساسوی چی ابو عبد الله بی احساسه دی ، تاسو ته هغه وخت ددی بی حسی درك ونه لگید چی هغه دخپل پلار پر خلاف بغاوت وکړ ، تاسو یو نا اهله او بی کفایته سړی دغرناطی په تخت دقبضی په حال کی لیده خو چوپ پاتی شوی ابو عبد الله خپله راتلونکی زموږ دقوم له دښمنانو سره تړلې ، خو زه وایم چې په دې ملی جرم کې تاسو هم له هغه سره شریك یاست ، ستاسو بی حسی او مجرمانه غفلت ددی سبب شو چی دغرناطې حکومت دداسې چا په لاسو کیوت چی دفردیناند په لاسو کی یوه نانځکه ده . که تاسو ابو عبد الله ته دا وربښودلی وای چی تاسو ژوندی یاست ، او دخپل راتلونکی نه سترگی نشی پټولی ، نو هغه

او ددرجنونو تور سریو عصمتونه لوټ شوي دي . ماتاسوته ددوی فریاد راوړی . او له تاسو نه پوښتنه کوم چې هغوی ته ستاسو لخوا څه ځواب ورووړم؟ آیا زه بیرته ستون شم ستاسو بی کسه خویندو ته ستاسو لخوا دا ځواب ورکړم چې ستاسو دعصمت ساتونکی اوس دالحمرا په دروازه کی ولاړ دی او ابو عبد اله ته دښکنځلو سپیځلی فریضه ادا کوی . زه تاسو ابو عبد الله ته له بد ردو ویلو نه ایساروم . ښایی په مناسب فرصت کې زه تر تاسو په لوړ آواز دهغه بدی ووایم . خو نن دنعرو وخت نه دی دعمل وخت دی.

زما دوستانو ! دقوم لارښود دقوم دکړو وړو هنداره وی . که تاسو وایی چې ابو عبد الله بی حسه دی ، نو تاسو د هغه قوم په باب څه نظر لری چې هغه یی خپل واکمن منلی دی .

ابو عبد الله بی زړه دی او په هغه دنصرانیانو ویری قبضه کړی ، مگر دا سهی نه ده چې تر څو دسرحد سرښندویانو او دالزغل مجاهدینو تاسو ته دا ثابته نه کړه چې دمسلمانانو توره اوس هم هر ډول اوسپنی غوڅولی شی تاسو هم دابو عبد الله په څیر له نصرانیانو نه ویریدی ، او له دی نه وراندې چې ابو الحسن په زور دجگړې ډگر ته بوتلی تاسو نصرانیانو ته جزیه ورکوله او په ذلت کې ژوند مو تسلې وه ؟

په یاد ولری ! کله چې راتلونکی تاریخ لیکونکی دابو عبد الله په اړه لیکی چې یو بد خیاله او پست همته انسان ؤ نو هغه به داهم لیکی چې دابو عبد الله دقوم یوه لویه ډله داسې وه چې له خپل مخلص ، زړور او هوښیار واکمن سره یی غداری وکړه او دهغه بی کفایته او بی زړه زوی یی خپل واکمن زمانه .

زما دوستانو ! ابو عبد الله ستاسو دعملونو سزا ده ابو عبد الله ستاسو دهغو مشرانو په لاس کی یوه نانځکه ده چې دفردیناند دغلامۍ حلقه ځانته یو ویاړ بولی

دخپل عزت او آزادی بیه پیژنی نو د ابو عبد الله ژوند داستان به دیو انسان دژوند پیښنی پاتی شي ، تاریخ لیکونکي به ولیکی چې یو لا ویالی شهزاده پر غلیم دخپل قوم دپلوړلو هڅه وکړه خو هغه دذلت او شرمندگی نه پرته هیڅ تر لاسه نه کړل . خو که تاسو دخپلی خپلواکی قیمت نشی ادا کولی نو تاریخ لیکونکی به په راتلونکي کی دا ولیکی چې هغه قوم دیر ذلیل ؤ او انجام یی همغسی شو چې د یو ذلیل قوم بایدوی ، دمنځه تلونکو اولسونو تر ټولو غمجن خصوصیت دا وی چې دوی دحقایقو تریخوالي په بې معنی نعرو کی پټول غواړی ، دخپلو تولنیزو مسئولیتونو پره او ټول مسئولیت دکوم نا اهله فرد په اوږو ور واچوی تاسو لږ غور وکړی ، تاسو پوهیږی چې له دښمن سره تر ډغرو دا آسانه ده چې ابو عبد الله ته کنځلی وکړی.

تاسو داسی گڼۍ چې ددښمن دکلا گانو ددروازو ماتولو نه دالحمرا دروازه ماتول اسانه دی ، تاسو ددی لپاره دلته را غونډ شوی نه یاست چې ستاسو راغونډیدل ضروری وو ، بلکي تاسو دلته ددی لپاره راټول شوی یاست چې ددښمن سره دمقابلی او دجگړی دستونزو گاللو پر ځای دلته دریدل او شور ماشور جوړول آسانه دی ، او دا خبره ابو عبد الله ته هم معلومه ده چې دلته به تاسو څو نعری ووهی او جوش او احساسات به مو ساړه شی خپلو کورونو ته به ستانه شی .

هغه پوهیږی چې تاسو هغه سیلاب نه یاست چې په مخه کی هر څه دخس او خاشاك په څیر ورسره واخلی ، هغه هم پوهیږی چې ستاسو مثال د ډنډ داوبو په شان دی ، چې ددبرې په ورغورځولو وړوکی څپې پکې پیدا شی او څو شیبی وروسته بیرته هماغه مرگونی سکوت پری خپور شی.

زه دا نه وایم چې دابو عبد الله پر خلاف نعری مه وهی ، خو دی ته هم وگوری اوس ستاسو کورونه سوځی ، ستاسو دخویندو میندو عصمتونه لوټ کیږی ، او

پوښتنې کوي چې زموږ دسپين ږيرو درناوي کوونکي څه شول او څه پرې وشول ؟

ايا  زه دوې ته ستاسو ځوا نه دا ځواب وروړم چې ستاسو دعزت ، آزادي اوعصمت ساتونکي اوس ستاسو د نالايق حکمرآن پر خلاف نعرې وهي او ستاسو په لوري پام اړ و لو ته وزګار نه دي ، ولې چوپ شوي ؟

خبرې وکړې ځواب راکړې ؟ ! .........

يوزلمي احساساتو پسې واخست ورمخې ته شو ، وينا کوونکي ته ورنژدې شو او په لوړ غږ يې وويل : تاسو زموږ لارښوونه وکړې ، په موږ کې داسې بې غيرته نشته چې ستا سره ملګرتيا ته تيار نه وي ، نورو دهغه په تقليد همداسې وکړل ، لږ څند وروسته له څلورو خواو نه دا چيغې پورته شوې ، موږ ټول چمتو يو ! موږ ټول تيار يو ! موږ به له غليم نه بدل واخلو .

دسرحد دناظم نوم ابو محسن و . له دې نه وړاندې هغه دا نه وه احساس کړې چې په خبرو کې يې دومره تاثير شته دخلکو جوش او ولولې يې چې وليدې لاس يې اوچت کړ او داسمان په لوري يې وکتل ، هغه تر لږ شيبې پورې چوپ ودريد په سترګو کې يې دشکرانې اوښکې دنډ شوې ، شونډې ئې رپيدې او په ډير مشکل يې دا تر خوله ووتل : اې زما الله زما قوم ته برى ورکړې.

لږ څند وروسته ابو محسن بيرته سمبال شو ، هغه خلك مخاطب کړل ويې ويل: په تاسو کې چې څوك وسلوال ياست هغه کتارونه جوړ کړې ودريږې ، څوك چې وسلې نه لرې هغوى وسلې را واخلى او زر تر زره ځانونه راورسوى ، سمدستى زه يوازې ځوانان بيايم ، دچا چې عمر زيات وى که ورته ضرورت شو را به يې غواړو تاسو فرصت مه ضايع کوي ، موږ بايد زر تر زره روان شو .

* * * * *

(۳)

دښمن تر دريمې برخې پورې دالحصار ددروازې په مخه کې پنځه زره مسلح رضا

موري ! ما ویښه ! ماته ووایه زه باید څه وکړم ؟

زړوری مور دزوی په لوری دپام وړ اوږدولو پر ځای خپلې نږورته وکتل او وې ویل : عایشې خپلې کړی وباسه او خاوند ته یې دی ورکړه ته دغرناطې ملکه یې ، کله چې پاچا نه وی ملکه دپاچاهی بوج پورته کوی ، دالحمرا دروازه خلاصه کړه او خپل رعیت ته ووایه چې زما میړه ته یې مور په شیدو کې بخیلې کړی ، او دهغه پلار هم هغه ته دمیړونو لوښی نه دی ورزده کړی ، خو دغرناطې ملکه به دغشو په باران کې ستاسو ملګرې کوی.

عایشې خپل میړه ته وکتل بیا یې خپلې خواښې ته وویل : مورجانې ! زه خپل میړه ته کړې نشم ورکولی ، خو که دی خپله توره ماته راکوی زه حاضره یم !

دابو عبد الله زغم او حوصله پای ته ورسیده په لوړ غږ یې وویل : عایشې دخدای «ج» په خاطر چوپه شه .

دابو عبد اله مور وویل : هو عایشې ! زما زوی ډیر حساس دی مه یې پریشانه کوه .

ابو عبد الله په بې پایه دردناك حالت کې خپلې مور او عایشې ته وکتل او دڅه ویلو نه پرته یې ګړندي ګامونه واخستل او په زینو کې ښکته شو ، تر څو چې په زینو کې دهغه دکوزیدو غږ راته خواښې او نږور چوپ یو بل ته کتل ، لږ څنډ وروسته عایشې وویل : موری ! که رښتیا ستا اجازه وی زه له دې غازیانو سره مرستې ته تیاره یم .

دابو عبد الله مور وویل : لوری ! ددې خبرو نه وروسته زما زړه ګواهی راکوی چې ابو عبد اله به مونږ مایوس نه کړی . خو که تقدیر زمونږ په برخه له ذلت پرته بل څه نه وو لیکلی نو زه هم له تاسره دعزت په لاره ملګرې یم . دعا وکړه چې خدای «ج» دابو عبد الله سرګردانه پښې په نیغه لاره برابرې کړی .

خواښې او نږور تر لږ څنډه خبرې سره کولې بیا په دالان کې ودریدل او

سرحدي مجاهدینو بریو زما مایوسی په امید بدله کړه ، لږ ځند وړاندې چې زه ستاسو په مخکې دریدم په دې نه پوهیدم چې تاسو ته څه ووایم ! بیا هم ما تاسو ته څه ویل ضروري وبلل او خدای «ج» ته معلومه ده چې ما څه وویل . زه پر دې اعتراف کوم چې زه خطیب نه یم ، دوینا په فن نه پوهیږم ، خو ستاسو دا جذبه ددې دلیل دی چې تاسو ژوندي یاست له کوچ کولونه وړاندې زه دالحمرا داوسپنیزې دروازې تر شا په آرام خوب ویده ابو عبد الله ته دا پیغام رسول غواړم چې ای ابو-عبد الله زما قوم ژوندی دی ته هغوی دفردیناند غلامان نشی کولی . ته هغه بدنصیبه یې چې دخپل غیرتي قوم ملګري دې پریښوده او خپل قسمت دې له ذلیل دښمن سره وتاړه .

ابو عبد الله ! ستا قوم ډیر سخي دی . که ته اوس هم سمې لارې ته راواوښتی نو هغوی به دې ټول پخواني ګناهونه وبخښي ، راشه او پخوا له دې چې ستا دبخښنې ټولې دروازې وتړل شي ، له خپل قوم نه بخښنه وغواړه ، که نه نو په یاد ولره ته به تر ډیره په دې محل کې آرام خوبونه ونکړای شې چې په جوړیدو کې نې ددې اولس دځوانانو وینې او هډوکي کارول شوي دي . ته دخپل دروغ وقار په خاطر دقوم دعزت او آزادۍ سودا مه کوه په خدای «ج» سوګند کوم عزت چې چاته قوم او اولس ورکولی شي نور څوک یې نشي ورکولی ، او څوک چې قوم راوغورځوي هغه هیڅوک هم نشي اوچتولی دغرناطي خلکو ! تاسو ګواه اوسی چې موږ دابو عبد الله دمحل اوسپنیزې دروازې وټکولې او بیرته ځو .

ابو محسن نور څه ویل غوښتل چې ناڅاپه دالحمرا دروازه خلاصه شوه او څو تنه سپاهیان چې مشالونه یې په لاس کې وو را ښکاره شول ، په هغوی پسې دپلیو سپاهیانو یوه ډله وه او پر پلیو پسې «۲۰» تنه سپاره وو دټولو په شا کې په سپین اس یو سپور راښکاره شو ، پر سر نې سپین پټکی ؤ او په لاس کې یې دغرناطي شاهي جنډه وه ، له کلا نه راوتلي سپاهیان ښي او کین لور ته ووډ کتلد

اولس نه رحم نه غواړم ، يوازې دا غواړم چې ماته دخپلو غلطيو دجبران موکه راکړې . ته ددې پوځ سالار يې که ستا اعتراض نه وي زه هم ددې رضا کارو په ډله کې شامليدل غواړم زه سر له نن دغرناطې دتخت دعوه دار نه يم ، زما پلار او تره چې غرناطې ته راشي زما لپاره چې څه سزا تاکې منم ئې . يوه شيبه په غونډه چوپتيا خوره شوه ، او بيا ورو ورو خلکو يو له بل سره گونگوسې پيل کړې ، ابو محسن هك حيران ابو عبد الله ته کتل . ابو عبد الله په کمزوری آواز وويل : ابو محسنه ! زه پوهيږم چې زما گناه دجبران وړ نه ده ، زه دقوم دعدالت په وړاندې ولاړ يم ، دوی ته ووايه چې زما غوښې وشکوی ، زه له قوم نه دبخښنې هيله نه کوم خو که ما محاذ ته درسره بوزې امکان لرې زما وينې زما دلمنې تور داغونه ومينځي .

ابو محسن گنې گونې ته وکتل بيا يې ابوعبد الله ته مخ واړاوه ويې ويل : ستا قوم دشکرانې په اوښکو ستا دلمنې داغونه مينځي .

لږ څنډ وروسته پنځه زره تنه سپاهيان دښار دلويديځې دروازې نه بهر وتل ، ابو عبد الله او ابو محسن له ټولو نه مخکې وو ،له ښار نه لږ بهر پوځ دسهار لمونځ ادا کړ ددوهم ځلې کوچ نه وړاندې ابو محسن ابو عبد اله يوې خواته کړ او ورته ويې ويل : ما اوريدلې دي چې ابو موسی ستا په زندان کې دی که دا سهې وي نو ددې پوځ دقيادت لپاره تر هغه غوره او مناسب څوك نشته که ستا تر اوسه پورې دی ته پام نه ؤ اوس هم ډير نه يو لرې شوی.

ابو عبد الله دډيرې پريشانۍ په حالت کې ابو محسن ته وکتل ويې ويل : ابو موسی په الحمرا کې نشته اوزه له جگړې نه دبيرته راگرځيدو نه وړاندې دهغه په باب هيڅ نشم ويلی ، په هر صورت ډاډه اوسه هغه ژوندی دی ، او دوخت په راتلو به زه هغه ته وړاندې شم او غوږ به پرې وکړم چې ابو موسی ! ستا مجرم ستا په مخکې ولاړ دی زما لپاره سزا وټاکه خو زما باور دی چې هغه وخت به زما

ابو محسن دابو عبد الله له الفاظو نه دهغه په لهجه زيات متأثر شو ابو عبد الله تر لږ ځنډه سر تیټ کړ په سوچونو کې ورك شو ، خو بیا یې سر اوچت کړ او ابو محسن ته یې وکتل ویې ویل : ته زما دزړه په حال پوهیدلی شې خو زه ویریږم چې که دې خلکو له مانه دابو موسی پوښتنه وکړه نو ښایی زما خبرې هغوی داده نه کړي.

ابو محسن وویل: ته داده اوسه، اوس دا خلك یوازې دومره پوهیږي چې ته ددوی ملګري یې هغوی له دې نه په زیات څه سوچ نه کوي.

*****

(٤)

الزغل له خپلو شاندارو فتحو وروسته په مالقه کې پړاو واچاوه او خپل پوځ یې له سره منظم کړ ، غرناطې ته یې له تګ نه وړاندې خپل ورارہ ابو عبد الله ته پیغام واستاوه چې تر اوسه پورې ستا په مخ دتوبې دروازه نه ده تړلې ، اوس به دې باور راغلی وي چې تا په عیسویانو پورې کومې تمې تړلې وې هغه به پوره نه شي ، موږ غرناطې ته په خلاصو دروازو ننوتل غواړو ، خو که تا څه مزاحمت وکړ نو باور وکړه چې دالحمرا اوسپنیزې دروازې موږ نشي ایسارولای.

دالزغل ایلچي چې بیرته راستون شو ویې ویل چې په غرناطه کې ددوی دهرکلي لپاره تیاري نیول شوي شوي دي او ابو عبد الله سرحد ته دیرغلګرو سره مقابلې ته روان شوی دی ایلچي الزغل ته دابو الحسن دمیرمنې لیك وړاندې کړ ورته ویې ویل : ملکې عالیې دالیك دپاچا حضور ته استولی الزغل له ایلچي نه دځو نورو پوښتنو نه وروسته جګ شو او سیده ابو الحسن ته ورغی .

بوډا سلطان دژوند وروستي ګړۍ تیرولې او په بستر غځیدلی ؤ ، دهغه سترګې ړندې شوې وې دخپل زوی په باب یې چې دتوقع خلاف خبر واورید په بستره کې راجګ شو ویې ویل : آیا دا ریښتیا ده؟ ایا دا امکان لري ؟ هغه له خپل وررور نه

له ابو عبد الله نه مایوسی ته پری نښودم او ما په الحمرا کی پاتې کیدل ضروری وګڼل ، خدای «ج» زما دعاګانو ته دقبولیت شرف وباخښه کله چی زه له څلورو خواونه مایوسه وم ، ابو عبد الله ددښمن دمقابلی په خاطر روان شوی دی ، زما مورتوب ماته دوکه نه راکوی ، هغه دخپلو پخوانیو غلطیو دتلافی لپاره وتلی ، غرناطه تاسو ته سترګې پر لار ده ، که تاسو سمدستی نښی راتلای الزغل را واستوی ، زه ویریږم چې له ابو عبد الله سره دسرښندویانو سره هغه کسان هم تللی دی چی ددوی دغداری له لامله مور داورځې ولیدی. دمنافقینو دغه ډله به تر وروستیو شیبو دابو عبد الله دبی لاری کولو هڅی کوی . څکه خو دابو عبدالله له راستنیدو نه وړاندې پر غرناطه قبضه ضروری ده .

سبا ته الزغل پوځ ته دسفر دتیاری حکم وکړ ، بدر بن مغیره او دهغه سرښندویان عیسوی لښکرو له ماتی وروسته دشمال او ختیځ له سرحدونو نه دهغوی دلری ساتلو پخاطر دشاهین دری ته ننوتلی وو ، بشیر بن حسن د ابو الحسن دعلاج لپاره په مالقه کی پاتی ؤ.

دخپلی ناروغی سره سره ابو الحسن غرناطې ته په تګ اصرار کاوه الزغل له مجبوری نه په ګاډۍ دده دسفر بندو بست وکړ دمالقی ساتنه الزیغری ته وسپارل شوه.

دالزغل پوځ دفتحی او بری بیرغونه رپول او غرناطی ته ننوت دښار له دروازې نه دالحمرا تر دروازې پوری دالزغل داس په پښو کی ګلان غوړیدلی وو . ابو الحسن دناروغی په وجه په ګاډۍ کی آرام سفر کاوه او لا تر اوسه څو مزله له غرناطې نه لری ؤ . خلکو الزغل دی ژوندی وی له نعرو سره دسلطان ابو الحسن دی ژوندی وی نعری هم وهلی ، دخلکو دتودو احساساتو یو سبب دا هم ؤ چې دوی په شمال لویدیځ سرحد کې دابو عبد الله دشاندار بری خبر اوریدلی ؤ . دجګړی له محاذ نه خبرونه را رسیدلی وو چی ابو عبد الله په سرحد کی دتیری

دښمن سره معمولي ټکر کوه ، سخي کاکا خپل وزاره ته دا هم ولیکل چې تا دخپلو پخوانیو غلطیو کفاره ادا کړه او کله چې بیرته راستون شې نو خپل پلاراو تره به دغرناطې له عوامونه کم سخیان ونه ګورې ، دابو موسی پته نشته ، مورږ ګومان کاوه چې هغه به له تاسره جګړې ته تللی وی خوك چې له محاذه راځي زمورږ ددی ګومان تصدیق نه کوی ، هغه چیرته دی دغرناطې خلك دهغه په باب نا کرار دی.

* * * * *

(٥)

څلور ورځې وروسته په غرناطه کې فریادونه اوچت وو هلرختو سره سم غرناطې ته دا خبر ورسید چې ابو عبد الله ماته وخوړه او پخپله ژوندی نیول شوی ، تر لمر لویدو پورې دغرناطې خلکو ته ددې خبر ډیر تفصیلات معلوم شول .

غرناطې ته دالزغل دورتګ له لامله څو غدار سرداران وویریدل او له ابو عبد الله سره روان شول . نور غداران چې پاتې وو ، هغوی چې په دغه بدلون دخلکو تاوده احساسات ولیدل هغوی هم له غرناطې نه ووتل او له ابو عبد الله سره یو ځای شول دهغوی دا هڅه وه چې ابو عبد الله په یو دول دې ته وهڅوی چې فردیناند ته پناه ورورې ، خو کله چې هغوی ولیدل چې دوروستیو بریالیتوبونو په وجه دابو عبد الله ذهنیت هم بدل شوی نو یوه دسیسه یې جوړه کړه ، یو ماښام ابو عبد الله دفردیناند په یوه کلا قبضه وکړه ، دده دپوځ دوه تنه جاسوسان چې دهماغه غدارانو دلاس آله وو یو دده په مخکې حاضر شو ورته ویې ویل چې دنصرانیانو زر تنه پوځ دلویدیځ له لوری ددې کلا په لوری را روان دی . بل جاسوس ورته وویل چې دشمال له لوری یې نژدې دوه زره تنه عیسوی پوځ لیدلی چې دکلا په لور را روان دی.

ددی خبرونو په اوریدو ابو عبد الله شوری را وغوښته ، منافقینو په یوه خوله

مرستہ رارسیدای شی ، خو غدارانو دابو عبد الله احساسات را وپارول او هغه په شپه کی پوځ ته دتیاری حکم ورکړ ، پوځ یی په دوو برخو وویشه ، یوه برخه یی دابو محسن په مشری لویدیځ لوری ته واستاوه او بله برخه یی تر خپل قیادت لاندی وه او دشمال په لوری روان شول ، دغدارانو ډله تول له ابو عبد الله سره روان شول ،

ابو محسن دخپلو بلدی ځرو په مرسته تر « ۲۰ » کوسه پوری سیمه تر پښو لاندې کړه خو ددښمن دلښکر آثار یې ونه لیدل ، بالاخره په تنگ شو او جاسوس ته یې بد رد ویل پیل کړل ، دشپې په دریمه برخه کې یې بیرته داسونو جلبونه راوگرځول دکلا په لور راوگرځیدل ، ابو محسن چې کلا ته نژدې څلور کوسه را لنډ شو د هغو سپاهیانو یوه ډلگۍ یی ولیده چې دشپې له ابو عبد الله سره تللی وو دابو محسن تندی تریو شو ، پوځ ته یی ددریدو امر وکړ او په خپله آس پونده کړ وراندی ولاړ ، کله چې دی ډلگۍ ته ورنژدې شو یو ځوان چې په قبا یی دوینو نخښی وی دده له پوښتنی پرته وویل : موږ ماته وخوړه ، دا یوه دسیسه وه زموږ په پوځ کې تر موږ نه غداران ډیر وو، لار بلدو موږ یوه داسی ځای ته برابر کړو چې له څلورو خواو ددښمن دغشو تر برید لاندی وو ، منافقینو چی ددښمن نعری واوریدی ویی ویل چی جگړه بی گټې ده ، ابو عبد الله ته یی وویل چی موږ کلا بند شوی یو کله چی موږ له وسلی ایښودلو نه ډډه وکړو نو دوی یوی خواته شول کله چی دښمن له کمین نه راووت او پر موږ یی حمله وکړه نو دغدارانو ډله تر لږ ځنډه چوپ وو بیا له دښمن سره یو ځای شول او پر موږ یی حمله وکړه. دسترگو په رپ کی زموږ اته سوه تنه ځوانان ووژل شول او موږ ته له تیښتی پرته بله لاره نه وه.

ابو محسن وویل : ابو عبد الله څه شو ؟

ځوان ځواب ورکړ : دجگړی په وخت کی له موږ سره ؤ ځوتنو هغه له آس نه

ملگرو نه یې پوښتنې وکړې بیا یې ده ته ځواب ورکړ : موږ دسهار له لمانځه نه وروسته هغه نه دی لیدلی .

ابو محسن مایوس شو ویې ویل چې اوس موږ ته خپل سرحد ته له ستنیدو پرته بله لاره نشته .

دپوځ ماته او دابو عبد الله بی درکه کیدل دابو الحسن دژوند دځلاندې دیوې لپاره دشمال دتوندې څپې په څیر ثابت شول پر غرناطه یو ځل بیا دغم وریځې راخورې شوې ، سبا ته یوه دردمند چې دابو الحسن جنازه ولیده ویې ویل : دغرناطې اسمان دډیرو شاهانو او تولواکانو جنازې لیدلې . خو ددې مجاهد په لحد کې به دغرناطې دراتلونکې په زرگونو امیدونه هم ویده شي.

ددې پیښو نه وروسته تر لږ ځنده دصلیب او هلال جگړه سره شوه ، د ۸۹۰ کال په ربیع الثاني کې فردیناند دیوه لوی لښکر سره په مالقه یرغل راوړ ، دهغه یرغل ناڅاپي و او الزغل دمقابلې لپاره خپل تول ځواک راټول نکړای شو، بیا هم د بقوان او رنده دکلاگانو دنیولو په هڅو کې نصرانیانو درانده تلفات وزغمل او هغوی دوراندی تگ همت ونه کړ ، دفردیناند لښکر په شا شو خو دسرحد په مهمه کلا «مشینل» یې حمله وکړه خو ناکام شول الزغل دښمن ته له ماتې ورکولو وروسته پر هغوی ځوابی حمله وکړه او زیات مهمات او غنیمتونه یې ترې ونیول .

الزغل دا خبره احساسوله چې تر څو دوی پخپله دعیسویانو خاورې ته ورننه نه وزي او له هغوی سره پریکنده جگړه ونه کړي دهغوی حملې به دوام لري . خو دیوه لوی جنگ لپاره تیاری او فرصت ته ضرورت ؤ ، دجنوب ختیځ او شمال ختیځ پر سرحدونو دسرحدي شاهین پهرې وې ، او الزغل له هغوی نه بلکل بې غمه ؤ ، په لویدیځ کې دمالقه دساتنې لپاره دالزبغري غوندې تجربه کار جنرال ؤ. دیوې لوې حملې دتیارۍ لپاره دالزغل موجودیت په غرناطه کې ضروري ؤ ، ځکه هغه د شمال لویدیځ سرحد دساتنې لپاره ابو محسن غوره کړ او پخپله غرناطې ته ستون

خو کله چې پهره دارانو هغه محل ته بوت نو فردیناند ، ولی عهد او دپاچهی نور سرداران دمحل په دروازو کی ولاړ وو ، فردیناند څو گامه مخکې شو او ابو عبد الله ته یی لاس وروړاندی کړ ، او ابو عبد الله په وارخطایی دهغه په لاس کی خپل لاس ورکړ .

فردیناند خپلو امیرانو ته وکتل او ویی ویل : تاسو څه ته گوری دغرناطی دپاچا درناوی وکړی . دا زموږ میلمه دی ، او سردارانو بیا دابو عبد الله په احترام سرونه خم کړل.

فردیناند ابو عبد الله په غیږ کی ونیو او محل ته ننوتل ، دملاقات دکوټې ددروازې په مخ کې دخو ښځو سره ملکه ازابیلا ولاړه وه ، فردیناند چې ور نژدې شو ورته ویی ویل : ملکې !

دا زما هغه زوی دی چې دلیدو لپاره یی ته له دیرې مودې تاکراره وې ، دابو عبد الله له حیرې نه ښکاری چې هغه تر اوسه ځان زموږ بندی گنی ، ته ده ته تسلی او داډ ورکړه چې دی زموږ میلمه دی چې له دیرې مودې راسې یې موږ لاره څارله .

ملکې ازابیلا وویل : زموږ سپاهیانو خو به په لاره کې دی ځوروّلی نه وی ؟

فردیناند وویل : ما دوی ته هدایت ورکړی ؤ چې زموږ ددوست یو ویښته ته تاوان ونه رسیږی ، خو که موږ ته څرگنده شی چې په لاره ده ته چا آزار ورکړی نو موږ به هغه ته دیره بده سزا ورکړو .

نور سرداران له دروازی نه لږ لرې ودریدل او فردیناند ولی عهد ، ابو عبد الله او ملکه ازابیلا کوټې ته ننوتل .

کله چې دوی څلور واره په یوه حلقه کی په کرسیو کښیناستل نو فردیناند وویل: ستا ټولو ملگرو ته په شاهی میلمستون کی ځای ورکړه شوی او ستا لپاره مو دخپل محل یوه غوره کوټه ټاکلی ده .

دامر پر خلاف شوی دی ، هغوی له خپل شکست ته وارخطا شوی وو او تاسو فکر کوی چې موږ له تاسو سره دعهد خلاف کار کړی.

په دې صورت کې تاسو چې له دوی سره وجنګیدئ او دکسات د احساساتو په وجه که تاسو زموږ سیمې ته په یرغل راننوتئ هم زه مو حق په جانب بولم. موږ یوازې په دې خفه یو چې زموږ دځو بې عقله او بې تدبیره افرادو له لاسه زموږ حلیف پر موږ بد ګومانه شو، هغه حلیف چې موږ یې خپل زړی ګڼو ما دهغو خلکو لپاره ډیره بده سزا ټاکلې ده .

ابو عبد الله هک حیران خپلو کوربنو ته کتل.

فردیناند وویل : ستا تر اوسه زموږ په خبرو باور را نه غی ښایي یو سړی ستا تسلې وکړای شي.

فردیناند ولی عهد ته وکتل ویې ویل : شهزاده چاته ووایه چې ابو داود راوغواړي.

ابو عبد الله ټکان وخوړ له ځانه سره یې وویل : ابو داؤد.

فردیناند وویل : هو ! هغه دمغرځان موږ ته را رسولی دی ، او هغه زموږ ته غواړی چې ستا له لاسه تللې پاچهي دبیرته تر لاسه کولو لپاره موږ سمدستي څه اقدام وکړو ، خو اوس ددې هدف لپاره اوږدې تیاری ته ضرورت دی.

دابو عبد الله په زړه دابو داود په هکله ډېر شکونه را پیدا شوي وو خو یو کمزوری انسان ځواکمن انسان هر وخت خپله تکیه ټاکی او پناه ورووړی ، ابو عبد الله هم دخپلې بیرې ماتو ابو داود ټاکلی ؤ ، دهغه دبې درکه کیدو ته وروسته دی دابو محسن دوینا تر تاثیر لاندې راغی او اوس یو ځلې بیا دژوند په یوه نوی پیچومی دریدلی ؤ ، ددی احساس سره چې دده دژوند ټولې ترخې شیبې ابو داود ورته زیږولې وې ، هغه اوس هم په دې باورؤ چې که له ابو داود سره یې ملاقات وشي دهغه خبری به ئې ذهنی ستومانی لرې کړی.

کمزوري سړی کې دمنافقت ويده شوی احساسات بيرته راويښيدل ، او ده دخپل ضمير دماتولو لپاره ديوه لوی منافق تکيې ته اړه درلوده ، ابو عبد الله په زړه کی ويل :زه به دغه بې ايمانه ته وايم چې زه خو دې رسوا کړم، تا له مانه دخپل قوم غدار جوړکړ زه کم عقله وم خو اوس مې سترګې غړيدلې دی ، اوس ته ماته دوکه نشې راکولی ، ته مادتباهی لاروته برابروې،زه دغرناطې تخت ته ضرورت نه لرم ، مګر بنايي زه دخپل تقدير پر خلاف جګړه ونکړای شم ، بنايي زما دتقدير ستوری ما زماله خوبنې پرته غرناطې ته بوزی او زه له مجبوری د فرديناند دلاس آله شم ، نه نه ؟

زه به ابو داود ته ووايم چې دخدای «ج» په خاطر په مارحم وکړه ماته غلطه لاره مه ښيه ، زه دوطن پلورو په ډله کی خپل نوم ليکل نه غواړم ، مګر فرديناند خو ويل چې دی ما دخپل قوم ديوه خپلواک پاچا په حيث ليدل غواړی ، دا دروغ دی او زه به ابوداود ته وايم چې زما په مخکې د فرديناند ددروغو دربنتيا ثابتولو هڅه ونه کړی ، خو دا ضروری نه دی چې زه خپل احساسات ددوی په وړاندی ښکاره کړم ، زه به دوی په غلط فهمی کی وساتم او کله مې چې فرصت پيدا کړ له دی ځايه به وتښتم .

ابو داود کوټې ته ورننوت او ابو عبد الله داسی احساس کړه له يوه ويروونکی خوب نه چې راويښ شوی وی ، هغهٔ سمدستی په غير ارادی توګه جګ شو او ودريد ، ابو داود دمصافحی لپاره لاس ور اوږد کړ ، دهغه خوندوري موسکا او غوريدلی څيری شاګرد ته ويل : ته به له مانه چيرته غلځ شی بچو !

زه ستا دزړه په راز پوهيږم.

# دالزغل مایوسی

بدر بن مغیره په یوه غرنۍ کلا کی اوسیده ، یوه شپه دکلا په انګړ کې ولاړ ؤ او په شاوخوا راتولو ملګرو ته یې دشپې په اړه هدایات ورکول چی یو آس چارګام کلا ته ورننوت ، سپاره دبدر په څو قدمی کی دآس جلب ورکش کړ ودرید ، بدر څو ګامه وروړاندی شوی ویی ویل :

بشیره! داسی ښکاری چې تا کوم ښه خبر نه دی راوړی ؟

بشیر بن حسن له آس نه ښکته شو بدرته یی لاس ورکړ ویی ویل :

ما یو داسی خبر راوړی چې دغرناطې خلك یی ښه ګڼی مګر زه دهغه په هکله ډیر اندیښمن یم ، منصور چیرته دی ؟

بدر: هغه همدا اوس لمونځ ادا کړ او خپلی کوټې ته ولاړ ،نن دهغه نوبت دی تیاری کوی راځه چی هلته ورشو ، بدر دا وویل آو بیا یی ملګرو ته مخ واړاوه ، تاسو ته به دماسخوتن دلمانځه نه وروسته هدایت وشی.

بدراو بشیر په زینو دختلو نه وروسته په دوهم پوړ کې یوې کوټې ته ننوتل، په کوټه کې شمه بله وه ، منصور زغره اغوستی وه او په یوه کرسۍ یی پښه ایښی وه دموزې تسمې یې تړلې ، بشیر بن حسن یې چې ولید راوړاندې شو لاس یی ورکړ او ویی ویل : بشیره ډیرښه وشول چې ته راغلی ، ما همدا اوس سوچ کاوه چې که زه تېی شم نوڅوك به مې علاج کوی .

بشیر بن حسن ووېل : دقسطلی په وسله تونونو کی تر اوسه داسی توره نه ده جوړه شوی چی منصور بن احمد تپی کړای شی .

بشیر: دپوځ دځینو افسرانو شك دی چی دی ژوندی دی . نور هم ډیرو خلکو له مانه په وار وار پوښتل خو ما به په دی ځواب ځان تری تیر کړ چی مجاهدین ژوندي وی .

بدر وویل : ښه اوس هغه خبر واوروه چی دغرناطې خلك یی ښه ګڼی او ته پری پریشانه یی.

بشیر وویل : ابو عبد الله دفردیناند له بند څخه تښتیدلی او غرناطې ته رسیدلی دی ، او الزغل اعلان کړی چی دی د بهرنی خطر نه دژغورنی نه وروسته خپل وراره ته تخت اوتاج سپاری ، سمدستی یی هغه دلوشه حاکم ټاکلی دی .

بدرو‌ویل : ایا دا رښتیا ده ! الزغل داسی اشتباه نه کوی !

بشیر ځواب ورکړ : که دا اشتباه وی نوالزغل دا کار کړی دی .

ما له ابو محسن سره ولیدل ، هغه راته وویل چی پر سرحد یې له برید نه دمخه فردیناند ته دپناه وړورلوترتیبات نیول .

دحالاتو مجبوری هغه درضا کارو سره په یوه کتار کی ودراوه ، دهغه په نیت زه شك نه کوم ، خو هغه یو متلون مزاجه ځوان دی . په موجوده حالت کی هغه ته هر ډول مسئولیت سپارل خطرناك دی . له دې پرته دابو داود په اړه دا ګومان دی چی ځان یی فردیناند ته رسولی ، او هغه داسی سړی دی چې ابو عبد الله تر بدو نه بدکارته چمتو کولی شی.

بدر وپوښتل: دغرناطې خلك پردې خوښ دی ؟

بشیر: هوکی ! دهغوی په نظر دابو عبد الله دلمنی داغونه مینځل شوی دی . ډیر خلك ناکراره هم دی ، خو عملاً مخالفت ته تیار نه دی.

بدر: ایا دموسی په باب ددوی ناکراری لری شوی؟

بشیر: ابوعبد الله دا مشهوره کړی چی موسی دده له قید نه تښتیدلی . الزغل ته هغه څو شاهدان تیر کړی دی .

خلکو مراکش ته هجرت کړی ، زه دهغه په لټه کی یم ، که ماته دا څرګنده شی
چې ابو عبد الله دروغ راته ویلی نو زه به هغه دنیك سلوك مستحق ونه بولم.
بدر بن مغیره له لږ سوچ وروسته وویل : منصوره! ته غرناطې ته دتلو لپاره
تیاری ونیسه .
منصورروویل : مگر ما خو دحملی لپاره ځان چمتو کړی دی،او په سرحد به
سپاهیان زما انتظار کوی.
بدر : ستا پر ځای به زه روان شم .
منصور : مگر ته استراحت ته اړه لرې. تا پرون ټوله شپه دآس پر شا تیره
کړه.
بدر: زر تر زره غرناطې ته ستا رسیدل ضروری دی . الزغل ته زما لیك وروړه
، هغه ته په صفا الفاظو ووایه چی زموږ جګړه دکوم سلطان او پاچا لپاره نه وه ،
زموږ دقربانیو مقصد داؤ چی له غرناطې نه خپل دفاعی برج جوړ کړو او شهیدلی
یووالی مو ټینګ کړو ، او دنور اندلس مظلوم او بی کسه مسلمانانو ته
دنصرانیانو له ستم نه نجات ورکړو .
ابو الحسن او له هغه نه وروسته الزغل موږ دهمدې مقصد لپاره امیر منلی ؤ .
خو ابو عبد الله مو ازمویلی دی ، دیوه تره په حیث الزغل حق لری چې دخپل تا
اهله وراره هره گناه وبخښی خو هغه دا حق نه لری چې قوم ته ووایی چې دی ملت
پلوری تو به کړې ده ځکه دی اوس خپل حاکم ومنی . الزغل ته ووایه چې که ابو
عبد الله توبه کړې وی هم هغه یو بی روحه لاش دی ، او دی دغه بی روحه لاش
دهغه اولس په اوږو نه سپروی ، چی دژوند او مرگ په کشمکش کې راګیر دی .
هغه دی په خپل ژوند کې خپل مسئولیت ترسره کړی . او له ځان نه وروسته دی
دامیر ټاکل هغو خلکو ته پریږدی چې دغرناطې دآزادی او دمسلمانانو دناموس
په خاطر یې ځانونه قربانی ته وړاندې کړی وو. زما له ابو عبد الله سره څه دعوه

دی چی په هیڅ ډول یی دی وړ نه دی .

منصوروویل: زه پوهیږم چې الزغل به څه ځواب راکوی ، هغه به وایی چی که ما ابو عبد الله سره داسی سخاوتـمندانه سلوك نه وای کړی نو خلکو به گومان کاوه چی زما هڅې دځپل اقتدار په خاطروې . له دې پرته زه له اختلاف او گډوډی نه ویریږم . دابو عبدالله ملگری به په غرناطې کې ځپلمنځی جگړی پیل کړی.

بدر بن مغیره وویل : له ابو عبد الله سره تر دې ښه سلوك څه کیدای شی چی دهغه په غاړه کی پړی وانه چول شو او دغرناطی په کوڅو راونه گرځول شو ..

الزغل ته ووایه چې ته دداسی خلکو رایی ته هیڅ ارځښت مه ورکوه چی ددوی دځان غولونی دا حال وی چی دیو ازمویلی غدار نه دملت دخدمت تمه لری ، او داتحاد معني دا نه ده چې آس له خره سره په یوه گاډی وتړی ،

که پنځوس تنه سپاهیان پنځوس لاشونه په اوږو کړی نو هغوی سل تنه نه کیږی ، دځپلمنځی جگړی د مخنیوی لاره دا نه ده چې نا اهله خلکو ته اقتدار په لاس ورکړل شی ، بلکې ددی چاره داده چې په خلکو کې داسې شعور رابیدار شی چې نا اهله خلك داقتدار کرسۍ ته دورکتلو جرئت ونکړای شی.

هغه اولس چې ژوندی اوسیدل غواړی غداران ځپی ، هغوی په رشوت ورکولو خوښوی نه،

منصوروویل: ته لیك ولیکه زه غرناطې ته تللو ته چمتو یم .

* * * * *

(۲)

څو ورځې وروسته منصوردالزغل لخوا بدر ته دا ځواب راوړ :

زما دوسته : ستا لیک ماته هغه وخت راورسید چی ابو عبد الله پر موږ وروستی گوزار کړی ؤ . ابو عبد الله لوشه غلیم ته سپارلی ، دفردیناند اته زره تنه سپاهیان لوشه ته ننوتی ، زما نیت بد نه ؤ مگر پرودگار سیاسی غلطی نه

دمسلمانانو دعزت او ناموس دساتنې په خاطر دخپلې مرستې په خاطر. ماته غرناطې ته اوس نه راغوښتې ، ته د غرناطې وروستې اميد يې ، ته ددې دوبيدونکې بيړۍ وروستې تکيه يې، او زه تا له شره په امان غواړم ،دشاهين دره زموږ وروستې مورچل دی ، ته که پر سرحد حملې ګرندی کړې نو ددښمن پام به دوو محاذونو ته واوړي ، او زه به پر لوشه دبيا قبضې هڅه وکړم ، زما په ګومان دفرديناند په نظر دشاهين دره له غرناطې نه کم ارځښت نه لري ، ډېر امکان لري چې هغه تر غرناطې دمخه پر تاسو حمله وکړي ، ځکه خو ګرندی تياري ونيسه ، زما زويه : زموږ له اشتباهاتو زړه توري نه شي همت ونه غورځوي.

که ته مايوسه شې زه ويريږم چې داندلس دمسلمانانو داميد ډيوه به دسهار له راختو نه دمخه مړه شي.

بدر بن مغيره ، منصور بن احمد او بشير بن حسن په ډيره غمجنه فضا کې تر ښه ځنډه دالزغل دليك په رڼا کې دغرناطې او اندلس دمسلمانانو په راتلونکې تبصرې کولې ، له هغه وروسته منصور بن احمد يو بل ليك له جيبه راوکيښ او بدر ته يې ورکړ ويې ويل : دا ليك دابو عبد الله ميرمنې راکړی ، هغه پر ما تاکيد کړی چې تر څو دبدر له زړه نه دلوشه دلاسه وتلو خفګان لرې نه شي دا ليك به نه ورکوې ، هغې دا انديښنه هم ښکاروله چې ته به په دې بدګومانې چې ما دخپل ميړه سفارش کړی له لوستلو نه وړاندې ليك وشلوی او ويه يې غورځوې ، بدر دمنصور له لاسه ليك واخست بشير ته يې ورکړ ويې ويل : دا ولوله :

بشير ليك پرانيست او په لوستلو يې پيل وکړ :

زما ويارمن وروره ! ما دخپل کاکا په اجازه ستا ليك ولوست ، او کاکا ستا دليك ځواب هم درکړی ، هغه ټوله ګناه پخپل ځان اخستې ، خو حقيقت دا دی چې ددې ملې ګناه زياته برخه زما په اوږو ده ، که ما کاکا ته نه وای ويلي چې زما ميړه رښتينې توبه کړې ده ، نو هغه به پر هغه له اعتبار او اعتماد نه وړاندې

کولی شي چې د هغه لومړني او وروستني غلطي معاف کړه، او خدای «ج» شاهد دی چې زه تاته ورور وايم نو دلسې احساسوم چې زما او ستا ترمنځ رشته دويني له رشتې نه زياته مزبوته ده «ستا خور عايشه»

بدر بن مغيره منصورته وکتل ويې ويل : نو ددې مطلب دا دی چې دابو عبد الله ميرمن تر اوسه په غرناطه کې ده .

منصور : هوکې ! ابو عبد الله غوښتل چې هغه له ځانه سره بوزی خو مور يې ورته ويلی وو چې ترڅو دجګړې خطروی زما نږور به له الحمرا نه بهر ته نه وځي.

* * * * *

(۳)

په لوشه کې دعيسويانو پنځلس زره پوځ راټول شوی ؤ ، ابو عبد الله دغرناطی مختلفو ښارونو ته خپل جاسوسان واستول ، او دفرديناند دوربخښلي دولت په واسطه يې دمنافقينو دضميرونو په پير لو پيل وکړ ، هغوخلکو چې مخکې يې خپلې هيلې په فرديناند پورې تړلې وې اوس زيات اميد وار وو ، دابو عبد الله څواك ورځ په ورځ په زياتيدو وو.

پر دوی علاوه دعافيت خوښنو هغه ډله چې په هر قيمت ئې امن غوښت په عوامو کې يې دا تبليغ کاوه چې که دغرناطی مسلمانانو له عيسويانو سره جګړې ته دوام ورکړ ، نو دهغوی سزا به داندلس نورو مسلمانانو ته ورکوی ، اندلس دمسلمانانو اوعيسويانو ګډ وطن دی ، او عيسويان چې په شمير او څواك کې ډير دی څکه خو يې موږ بايد بر لاسی او سر پرستی ومنو ، دوی به خامخا پر خپلو وطنوالو ظلم او تيری نه کوی . دا دمسلمانانو بی ځايه وهم دی چې که دوی دعيسويانو حکومت ومانه نو هغوی به يې تر ستونی تير کړی ، که دمسلمان په زړه کې ايمان وی نو له هيچا بايد ونه ويريږی .

دابو عبدالله په اړه دی خلکو اولس ته ويل چې هغه له فرديناند سره سوله وکړه

مهال راغلى ، فردیناند پخپله لوشه ته ورغئ او دپوځ مشري يې په غاړه واخستله، او په يوه ناڅاپي يرغل يې دالبيره او مشينل له كلا ګانو نيولو وروسته صخره كلا بنده كړه ، الزغل يوه برخه پوځ په غرناطه كې پريښود او دصخرې په لورې وراندې شو له ښار نه يې څو ميله لرې پړاو واچاوه څو ورځې ددوارو لوريو تر منځ معمولى تكرونه راتلل ، دښار خلكو په كلا بندى كې مقابله كوله او الزغل له بهر نه پر دښمن وړوكى حملى كولى ، په شمال ختيځ كې ناڅاپه بدر بن مغيره دير پراخ پر مختګ پيل كړ ، فردیناند له مجبورى نه دصخره كلابندى ماته كړه ، او له دى سره فردیناند ته دا خبر راغى چې دفرانسې پاچا ديوه لوى لښكر سره دپيرنيز په لورى پر مختګ پيل كړى . فردیناند سمدستى لس زره تنه پوځ شمال لويديځ محاذ ته دغازيانو د پرمختګ دبندولو لپاره واستاوه ،په لوشه ، البيره او مشينل كې چې څومره پوځ ته اړه وه هغه يې ابو عبد الله ته وسپاره ، او پخپله دفرانسې دپاچا دحملې دخطر د مخنيوى په خاطر بيرته قسطلې ته ستون شو،

*****

(٤)

دفرانسى له پاچا سره دسولى لپاره فردیناند دپاپانو يوه ډله هغه ته واستوله او هغه ته يې دا احساس وركړ چې دهسپانيې او غرناطى جګړه دهلال او صليب ترمنځ جګړه ده او په دى نازكه موكه به دصليب ددوو علمبردارانو تر منځ جګړه په غرناطه كې دمسلمانانو په ګټه تمامه شى . دقسطلې او فرانسې پاپانو يو بل ته غيږ وركړه او دفرانسى او قسطلى پاچاهان يې يو بل ته په لاس وركولو مجبوركړل ، دفرانسى پاچا له مسلمانانو سره په جګړه كې دثواب ګټلو لپاره دوه زره تنه پوځ او شل سمندرى بيړى فردیناند ته وسپارل.

فردیناند له ډيرې مودې نه په دې نظر ؤ چې تر څو په مالقه قبضه ونه كړى دغرناطى ځواك به مات نه شى ، مالقه دغرناطى مهم بندر ؤ او ... دى له قبضى

بیرېو له تر لاسه کولو وروسته ددوی سمندری ځواك مزبوت شوی ؤ . فردیناند ابو عبد الله ته ولیکل چی زما پوځ به په مالقه ناڅاپی حمله کوی او دمالقی داهمیت په خاطر به الزغل زر تر زره غرناطه پرېږدی او هلته به درسیدو هڅه وکړی . ته به دځه مزاحمت پرته غرناطه ونیسی.

څو ورځې وروسته دفردیناندسمندری ځواك دمالقی په لوری روان شو ده پخپله هم دجنوب ختیځ نه دیوه اوږده چکر وروسته دمالقی په لوری مخه وکړه . پر مالقه دنصرانیانو یرغل دومره ناڅاپی وو چی له معمولی مزاحمت وروسته پر ساحل پلی شول او ښار یی کلا بند کړ . دالزغل ټول پام دلوشه په لور وو او چی کله نی ناڅاپه دمالقی دکلابندی خبر واورید په غرناطې کې یې دګوتو په شمار پوځ پرینښود او مالقی ته روان شو خو هغه لا له مالقی نه یو پړاو لری ؤ چی خبر ورغی چې ابو عبد الله له اتو زرو تنو سره دغرناطې په لوری راخوځیدلی هغه دمایوسی په حالت کې دپوځ زیاته برخه مالقی ته واستوله او پخپله له کم شمیر سپاهیانو سره بیرته غرناطې ته راوګرځید خو غرناطې ته له رارسیدو نه مخکی دغدارانو دلې ابو عبد الله ته دښار دروازی خلاصی کړی وی او په الحمرا د ابو عبد الله جنډې رپیدې ، دالزغل زړه مات شو او بیرته ئی دمالقې په لور مخه کړه خوخاین وراره چې دهغه دلږ شمیر پوځ نه خبر شو نو له شانه یی یرغل پری وکړ ، دالزغل سپاهیانو په میړانه مقابله وکړه ، خو کله یې چې ولیدل چې ددوی توری یوازې له نصرانیانو سره نه بلکې له خپلو وروڼو سره هم ټکر کیږی نو ډیر یې مقاومت ونکړای شو الزغل ماته وخوړه او په «البکسرا» کې یې پناه واخسته ، سبا ته خبر ورغی چې دمالقې په لاره کې دهغه نور پوځ هم ماته خوری ، او دمالقی او دهغه ترمنځ د وچی او سمندر ټولی لارې تړل شوی ، د«البکسرا» دجنګیالیو قبایلو ډیروکی لښکر الزغل منظم کړ بسط یی خپل مرکز وټاکه ، په مالقه کی الزیغری په میړانه مقابله وکړه ، خو تر یوې میاشتې پورې خلکو له بهر نه مرسته او

شو او فردیناند دپخوانیو ترخو تجربو په رڼا کې خپل لښکر ته دوړاندې تګ او حملې اجازه ور نه کړه.

*****

(۵)

دمالقې داوسیدونکو حالت نازك شو ، له لوږې مرګ ته رسیدلی خلك وسلې ایښودلو ته چمتوړو خو الزیغری همت ونه بایلود .

سولی خوښوونکو ته دهمغه ځمدا یو ځواب و چې دښمن زما دلاش پر سر له قدم ایښودلو پرته ښار ته نشی ننوتلی ، کله به چې سپاهیانو حوصله بایلوده نو دده وینا ؤ به ئې ارواوی را وپاڅولی ، خو کله چې دمالقې پر افق له هر لوری تیاره شوه نو دښار دخلکو په ځیر پوځ هم دوه برخې شو ، څو غدارانو له فردیناند سره سازش وکړ دښار دروازې یې خلاصې کړې او الزیغرې یې ونیو دښمن ته یې وسپاره .

دفردیناند په امر یې الزیغری ته ډول ډول شکنجې ورکړې او شهید یې کړ ، وروسته بیا دمالقې اوسیدونکو دوحشت او بې رحمی هغه دوران ولید چې په ګومان کې یې نه تیریده .

دفردیناند لښکر دفتحې له نیشې ، وروسته بې دریغه شراب وخوړل او په مالقه یې قیامت جوړ کړ ، ښځې یې له کورونو راوویستې او بازارونو ته یې را کش کړې ، هغوی یې دخنزیر دغوښو په خوړلو او شراب څښلو مجبورې کړې ، او دتورې په څوکه یې دا ورښودل چې دفاتح دهر حکم تعمیل*مفتوح لازم دی، کومو خلکو چې غیرت وښود ژوندی یې وسوځول ، او کله چې هغه خلك چې له الزیغری سره یې غداری وکړه او دښار دروازګې خلاصې کړې دنصرانیانو په شکایت فردیناند ته ورغلل نو هغه ځواب ورکړ: مالقه داندلس دروازه ده ، زه دا دروازه

بندر دمسلمانانو لپاره حیاتی ارځښت پیدا کړ، له دی علاوه «گاوز» او «بیغه» هم دالزغل تر واك لاندی وو ، دوسایلو له مخی دغه کوچنی واکمنی ډیره آرامه او خوشحاله وه ، الپکسرا دری دسیرانویدا دغرونو دواورینو څوکو دخوړونو نه اوبیدلی په دی سیمو کی دمیوو حاصل ترټول اندلس نه زیات ؤ ، او په نوره سیمه کې چې زیاتره غرنۍ وه ، خلکو ترخپلې ارتیا زیات څاروی ساتل ، په دفاعی اعتبار ددی سیمو ځنگل او غرونه ډیر ښه سنگرونه وو.

فردیناند له څو ورځو تیاری وروسته په «بیغه» حمله وکړه او ښار یی کلا بند کړ ، خو دغرنیو سیمو قبایل رابښکته شول او څلورو خواوته یی پر دښمن چپاوونه راوړل . دبیغه داهمیت له مخې بدر بن مغیره دخپلو سرحدونو دساتنې مسئولیت منصور بن احمد ته وسپاره او پخپله له دوه زره سرښندویانو سره بیغه ته ورسید ، په لومړی شواخون کی دفردیناند پنځه زره تنه تر تیغ تیر کړل ، سبا شپی ته یی دوم ځل حمله وکړه او الزغل له ښاره ووت او پر دښمن یی حمله وکړه ، دسهار مهال فردیناند کلا بندی ماته کړه او بیرته مالقی ته ستون شو ، په مالقه کی یی له یو کال تیاری نیولو وروسته بیا په بیغه حمله وکړه ، خو دا ځل دښار پر ځای په شا وخوا سیمو کې تباهی پیل کړه ، دبزگرانو څاروی یی بوتلل ، فصلونه او میوی یی ویجاړ کړل ، دقبایلو دناڅاپی حملو دمخنیوی په خاطر یی په ټولو لارو پهری ودرولی ، دبدر بن مغیره سرښندونکو او قبایلو په ناڅاپی حملو دفردیناند لښکر ته زیات ځانی تاوان اړوه ، خو هغی دبیغه له اوسیدونکو سره هیڅ مرسته ونکړای شوه ، دشپږ میاشتو له اوږدی کلابندی وروسته بیغه په سخته کاختی کی تسلیمدو ته مجبوره شوه .

فردیناند بیغه مرکز وټاکه او دالپکسرا ټولی کلا گانی یی یوه یوه له الزغل نه ونیوی .

* * * * *

منصور: هو هغه په لاندې کوټه کې ناست دی.

بدر: له هغه سره نورڅوك دی ؟

منصور: ابو محسن دی ، دوی له ځانه سره څو تنه سپاهیان هم راوستی وو خو زموږ ملگرو دپله په اخوا کې درولي دي.

بدر: دوی خو به څه شکایت نه وی کړی.

منصور: الزغل په دې اړه پریشانه ؤ خو ما هغوی ته په دې ډاډ ورکړ چې دا یو عام حکم دی ، څرنگه چې ستاسو راتگ ناڅاپی ؤ موږ خپلو ملگرو ته ستاسو په باب ځانگړې هدایت نه ؤ کړی.

بدر وویل: تا هغوی ته وویل چې تا زما لیك دوی ته ورور ؟

منصور: هوا ما لیك هم ورکړ، خو هغه دلوستلو نه پرته بیرته ماته راکړ، هغه ویل چې دومره لرې راغلی یو اوس مخامخ خبرې غوره دی.

بدر: تا هغوی ته ونه ویل چې دملاقات په صورت کې به زموږ ځواب همغه وی چې په لیك کی مولیکلی .

منصور: هغه دومره په اندیښنو کې ډوب دی چې ما ددې خبری کول مناسب ونه بلل.

بدر: ماله دې ملاقات نه ځان بچ کول غوښتل ، په هر صورت اوس مجبوری ده ، مگر تاسو دواړه له ماسره اوسی ، که ما په خپل مسئولیت کې غفلت کاوه لاربښونه راته کوی.

لږځند وروسته بدر ، بشیر او منصور دغرنۍ کلا په یوه پراخه کوټه کې له الزغل او ابومحسن سره ستړې مشې کول . کله چې له رسمی روغبړ او پوښتنو ځوابونو نه وزگار شول په کرسیو کښیناستل نو الزغل لږ ځنډ سر په گریوان په چرتونو کی ډوب شو بیا یی سر اوچت کړ ویی ویل : تا ته به معلومه وی چې زه ولې راغلی یم ؟ ما ستا دځواب انتظار ونکړای شو، ستاسو ښې دابښیی چې تاسو

کاشکی ماته ددې پته څو کاله وړاندې وای چې دسمندر ډاوېو ددرولو لپاره د شګو بندونه څه نشی کولی ، زما اټکلونه غلط وو او زما په څیر دغلط اټکل خاوند د قوم دقیادت حق نه درلود ، او ستاسو په وړاندې زه دپښیمانی له اوښکو پرته هیڅ نه لرم ، زه پوهیږم چې ته به ما معاف نه کړی ، پر ابو عبد الله اعتماد داسی ګناه ده چی زه پخپله ځان نشم بخښلئ ، زما ضمیر به تل ما ملامتوی ما دفردیناند اطاعت هغه وخت قبول کړئ چې زما پر دې باور شو چې نوره قربانی ورکول بې ګټې ده . زموږهوا ککړه شوه او دښمن له څلورو لوریو راګیر کړی یو ، دقوم یوه برخه ددښمن پر غلامۍ قانع شوی ، او هغوی چی آزادی غوښتونکی وو اوس هغوی هم دا احساسوی چې دمقاومت او ثبات زغم یې ختم شوی دی . زما په مخکی دوی لارې وې یوه داچې دفردیناند غلامي ومنم او دپاتې لږ او ډیرو مسلمانانو ژوند له تباهۍ بچ شی ، بله دا چی یوه داسی جګړه جاری وساتم چې نتیجه ئی له ماتې پرته هیڅ نه وی ، په دې صورت کې که مر وای هم نوم به مې له داغه ساتلی ؤ ، خو ما داسی احساس کړه چې زما دا عمل به داندلس او غرناطې دمفتوحه سیمو دمسلمانانو له حال اوراتلونکی نه دسترګو پټولو په معنی وی ، زما ملا تړ کوونکی دګوتو په شمیر مسلمانان به یوازی څو کاله آزاد واوسی خو پاتی په لکونو نورمسلمانان به چی آزادی یې لوتل شوی ددښمن دانتقام په اور کې لولپه شی ، امکان لری چې دامن دراتلو نه وروسته که هغوی بیا را پورته شی او پرودګار ددوی دلارښوونې لپاره یو غوره انسان راواستوی . په هر صورت دځان په اړه زما باور شو چې که ددې ګډوډئ په حالت کې ما هغوی په جګړه کې وساتل نو دتباهۍ ورځ به ئې نوره هم رانژدې شی ، زما دقوم په رګونو کې یوازی څو څاځکی وینه پاتې ده ، کله چې هغه هم وبهیږی نو له هغوی سره به هم زما په څیر له پښیمانی پرته هیڅ نه وی.

الزغل چی دا خبری وکړی چوپ شو بدر بن مغیره ته یی وکتل هغه چوپ ؤ ،

الزغل تر دې ځايه وويل او چوپ شو .

بدر وويل : هوکې وايه که نه ولې چوپ شوې ؟

الزغل زړه نا زړه وويل چې مافردیناند په دې قانع کړی چې شاهين موږ جګړې ته راکش کړی ؤ ، اوس که هغه ستا دسيمی آزادی ومنی ته به دغرناطې دخلکو سره څه کار نه لرې .

بدر : تا څو به هغه ته دا نه وی ويلی چی زه ژوندی يم .

الزغل : نه ما هغوی پردې داده کړی چې ستا نائب به زما له هدايت نه سر ونه غړوي.

بدر : نو تا دفردیناند له لوری ددوستی پيغام راوړی.

الزغل: دخدای «ج» په خاطر زما په نيت شك مه کوه ، زما مطلب دادی چی تاسو دتياری فرصت تر لاسه کړی. ما تاته دفردیناند ليك راوړی دی الزغل دا وويل او دچپنی په جيب يی لاس ننه ویست يو ليك يی راويست او بدر ته يی وړاندی کړ.

بدر بن مغيره ليك بشيرته ونيو ورته ويی ويل : ته يی ولوله بشير په د لانده غږ دفردیناند ليك ولوست :

«دسلطان الزغل په سپاريښت موږ منصور بن احمد او دهغه دملګرو په لوری ددوستی لاسونه ور اوږدوو ، ديوه اوږده جنګ نه وروسته موږ داندلس دعيسويانو او مسلمانانو په منځ کې دسولې او امن ضرورت احساسوو ، او موږ هيله لرو چی زموږ يو غيرتی دښمن به زموږ دسخاوتمندانه وړانديز نه وروسته دامن په ټينګيدو کی زموږ سره مرسته وکړی، دسولی لپاره زموږ وړانديز دادی :

۱ - دتدمير او الشيلر دغرونو ترمنځ سيمه چې دشاهين دوادی په نامه مشهوره ده دا به خپلواکه او آزاده سيمه وی . ددی سيمی دخلکو دا حق دی چی منصور بن احمد او يا هر څوك وغواړی خپل واکمن يی وټاکی کولی شی.

چې په راتلونکی کې به منصور بن احمد او یادهغه پر ځای تاکل شوی بل څوك زمونږ دپاچاهی پر سرحدونو برید نه کوی ، له دی نه پرته به هغوی داندلس او غرناطی دپاچهیو په سیموکې چی اوس زمونږ حلیفان دی څه مداخله نه کوی ، او زمونږ پر خلاف به دکوم باغی مرسته نه کوی ، که هغه مسلمان وی یا عیسوی .

دفردیناند دلیك له لوستلو وروسته بشیر بدرته وکتل دنورو تولو سترګې هم دبدر په څیره ګندلی وی ، بدر بن مغیره سر اوچت کړ خپلو ملګرو ته یی وکتل او ویی ویل : منصوره ! ته په دې اړه څه وایی ؟

منصور بشیر ته وکتل ، او بیا یی دبدر په خوا مخ واړاوه ځواب ئی ورکړ: که ستا مطلب داوی چی زه داندلس دمسلمانانو دامیدونو جنازې ته اوږه ورکولو ته تیار یم که نه؛ نو زما ځواب نه ! دی.

بدر وویل: بشیره ته !!

بشیرځواب ورکړ : که ماته دا هم معلومه شی چې زما دقوم بیړۍ ډوبیږی هم نو زه به هغه پړی نږدم او په خس او خاشاك به تکیه ونه کړم.

بدر بن مغیره الزغل ته وکتل او ویی ویل : فردیناند فکر کوی چی موږ ستومانه شوی یو او خوب را باندی زوروړ شوی ، زمونږ دمری دتهینګولو نه وراندی دی موږ ویده کول غواړی، خو ده داسی څوك موږ ته دخوب دسندرو اورولو لپاره تاکلی چې غرناطه یی په خو ځولو خوځولو له خوبه راویښه کړی وه ، دهغه دغه دسخاوت نه ډك وراندیز خوب راوړونکی دارو دی.

اوزمونږ په حلق کی یی ددی دوا داچولو لپاره داسی لاس تاکلی چې تر پرونه دغرناطې توره وهونکی مټ ؤ . نن دغرناطې وروستی امید موږ دمایوسی وروستی کندې ته ورټیل وهی زمونږ دمحسن ، زمونږ دمشر او زمونږ دلاربنود په ګومان زمونږ ژوند ډیر ګران بیه دی ، ځکه خو اوس راغلی او مشوره راکوی چی موږ باید ذلیل واوسو خو ژوند باید پری نږدو ،

ورکوی.

که موږ توان درلود نو ددښمن دبدوهیلو سره سره به ژوندی وو او که موږ ناتوانه او کمزوری وو نو ددښمن له لوری دنیکو هیلو څرګندونه زموږ دبقا لپاره بس نه دی ، زموږ د عزت ، زموږ دآزادی او زموږ دبقا ضمانت یوازی زموږ توری کولی شی ، او زموږتوری به دفتحی او یا مرګ نه پرته په تیکی کی دننه نه شی ، ایا موږ په هغه دښمن باور وکړو چی دمالقه له نیولو وروسته یی مسلمانانوته امر وکړ چې دساحل سیمه پریږدی آیا ته دهغه سړی په لیك موږ ته داعتماد مشوره راکوی چی لاسونه یی زموږ دقوم دماشومانو او تور سرپو په وینو رنګ دی.

زه دا پوښتنه کوم چی کله دمالقه په کوڅو کی دمسلمانانودمیرمنو عصمتونه لوټیدل دغه سخی او مهربانه پاچا چیرته ویده ؤ؟

که ته په ځان غولولو اخته شوی وی دخدای «ج» په خاطر موږ په دی بیماری مه اخته کوه ، ته په دی خبره اندیښمن یی چې زموږ قربانی بی هدفه دی ، خو زه تاته غرض کوم چې قربانی پخپله یو هدف دی، که زموږ په برخه دعزت ژوند نه وی نو دعزت دمرګ لاره خو نه ده تړلی.

بدر بن مغیره داحساساتو په حالت کی له کرسی نه اوچت شو ودرید ویی ویل:

دکوم قوم وینه په بهیدلو نه خلاصیږی بلکې هغه وخت وچیږی چې دوی دذلت ژوند غوره کړی، فردیناند ته روایه چې موږ دخپلی آزادی په قیمت اداکولو پوهیږو ، تراوسه پوری دفردیناند دفتحو سیلاب دشګو بندونه مات کړی دی ، خو دی دری ته په راتلو سره به له هغو کمرونو سره مخ شی چی په تیرو پیړیو کی یی ددیرو توپانونو مقابله کړی ده ، زه پوهیږم چې ته له موږ سره دخواخوږی جذبی دلته راوستی یی ته نه غواړې چې موږ په هغه لاره وراندی ولاړ شو چې له ازغیو پرته بل هیڅ پری نشته ، خو زموږ پښی له ازغیو سره عادت شوی دی ، دا

زموږ غم مه کوی موږ دتورو په سیورې کې سترګې غړولې ، او دغشو په باران کې ویده کیدای شو.

هغه اوښکی چې الزغل یی دتم کولو هڅه کوله ناڅاپه را وخوټیدې ، دهغه له ریږدیدونکو شونډو نه په درد کی ډوب غږ اوچت شو : بدره! بدره! خپل لویدلی ملګری ته بی ځایه ډیکی مه ورکوه ، ته به ما ددی شرم او خجالت په څمکه بیا ونه ګوری ، زه افریقا ته ځم ، تاته ماغوندې دکمزوری انسان اړه نشته او پاتی قوم پر ابو عبد الله قناعت کړی ، په اندلس کې که دمسلمانانو څه دراتلونکی تمه ده امین یی ته یی ، داندلس هغه خلك چې ستا په پله پل ایښودل غواړی ټول به تاته ځان راورسوی زما سره څه زیور او طلا ده ، زه به دقوم دغه امانت تاته راولیږم . له رخصت نه وړاندی زه دا وایم چې ته زما په اوښکو غلط ګومان ونه کړی . دا دپښیمانی اوښکی دی ،او ابو محسنه ! ستا مقام هم دا دره ده.

الزغل دا وویل او جګ شو ویی،ویل : زه نور ځم ،

بدر وویل : ته ستومانه یی تر سبا پورې استراحت وکړه .

الزغل : نه زه همدا تن ځم.

ماښام مهال بدر او دهغه څو نورو ملګرو دیوی ویالی په پله الزغل ته مخه ښه ویله.

# طريف بن مالك

ابوعبد الله چې کله دخپل تره په باب واوریدل چې اندلس ته پرېښود او افریقا ته ولاړ نو مالقی ته یې فردیناند ته دمبارکۍ پیغام واستاوه او په غرناطه کې یې دجشن تیاري ونيو.

دشپې مهال دالحمرا ماڼۍ او دیوالونه په ډیوو او مشالونو چراغان شول ، په یوه لویه کوټه کې ابو عبد الله خپلو وفادارو او نژدې ملګرو ته میلمستیا تیاره کړې وه ، دډوډۍ نه وروسته دسندرو او نڅادور پیل شو ، دشرابو پیالې وګرځېدې ، او کله چې دغه محفل ښه تود شو نو ابوعبد الله دشرابو په نیشه کې زنګیدلی اوچت شو ویې ویل : په تاسو کې څینو دا ویل چې زه بد نصیب یم له نن نه ورسته څوك ماته بد نصیب ونه وایی . زه دغرناطې پاچا یم دفردیناند وعدې رښتیا دې ، ماته به دغرناطې ټولې سیمې بیرته راکړل شي . تاسو ولې چوپ یاست ؟ وخاندې ، سندرې ووایی او چې څومره مو زړه غواړي شراب وڅښۍ ، زه به ستاسو لپاره په الحمرا کې دشرابو ویاله ویهوم . د «البکسرا» دانګورو نه به ټول شراب جوړیږي ، ما دښار خلکو ته هم دجشن لمانځلو حکم کړی ؤ ، خو اوریدلي مې دي چې څينو شرخوښوونکو په کوڅو کې مشالونه ګل کړي دي.

دا دهغو خلکو له لاسه چې له بهر نه راغلي او په غرناطه کې یې دا مشهوره کړې ده چې عیسویانو پردوی ډیر ظلمونه کول ، زه وایم دا دروغ دي ، په راتلونکې کې به داسې خلکو ته ښارته په ننوتلو بندیز وي دلوی فردیناند پر خلاف نعرې به نور نه زغمل کیږي . هغه زموږ مرستندوی او محسن دی . نن چې تاسو په الحمرا کې څه وینې دا ټول دهغه لورینه ده .

عبد الله ملګرو خپل کورونه رنها کړي وو پر هغوی وېرې او لوټې واوروول شوی . دعلماؤ يوه بانفوذه ډله له دی مظاهره کوونکو سره وه ، او کومو تش په نامه ملایانو چې په منبر د ابو عبد الله دعمر داوږدوالي دعاء وکړه ځوانو طالبانو هغوی له جوماتونه وشړل او په وهلو یی صرفه ونه کړه .

دنارینه ؤ په څير ښځې هم په مظاهره راوتلی وی او ټوله شپه په کوڅو کې ګرځېدلی ، په دې ډله کې دغرناطې له ښځوپرته مهاجرې مېرمنې هم وې چې اوښکو یی دغرناطې اوسیدونکو ته په مالقې او بیغه کې دعیسویانو دظلم داستانونه اوروولی وو ابو عبد الله دری ورځې جشن لمانځلو ، دری ورځې دالحمرا دیوالونه دحکومت دعیاشو واکمنو دګرسنده خنداګانو او درعیتدآهونو تر منځ حایل ؤو ،دری ورځې پرلهپسی دسرو شرابو پیالی تشیدی او دغرناطې اولس له سترګو نه وینی څڅولی ، او څلورمه ورځ ابو عبد الله دفردیناند دا لیك لوست :

موږ ته معلومه شوی ده چې په غرناطې کې زموږ رعیت له تانه خوښ نه دی ، اوپه ښار کې باغیان راټولیږی موږ دعیسویانو او مسلمانانو ترمنځ په راتلونکی کې دهر ډول جګړې ارتکرو دمخنیوی په خاطر ضروری بولو چې ته غرناطه موږ ته وسپاره ، ددې لیك په ځواب کې زه یوازې دا اوریدل غواړم چې پوځ ته مودغرناطی دروازی بندې نه شی.

که داسې نه وی نوموږ به دزور استعمال ته مجبور شو . کله چې غرناطې ته درشو ستا دراتلونکی په باب به پریکړه کوو . که ته له موږ نه دسخاوتمندانه سلوك په تمه یی نو بی شرطه اطاعت ضروری دی.

دابو عبد الله په څیر دهغه دحکومت دسردارانو له سترګو نه هم دشرابو خمار ولوید ، تولوحیران دریان یو بل ته کتل ، دالحمرا په دروازو او دیوالونو توری وریځې را خپری شوی.

ابو عبد الله دفردیناند استازی ته وکتل او په کمزوری غږ یی وویل : تر دوو

بل سردار اوچت شو ویې ویل : فردیناند موږ ته یوازې دوې لارې پرېښې دی ، یوه دا چې ددوی حکم عملي کړو او په خپلو کورونو کې دهغه وحشیانو هرکلی ته چمتو شو چې لومړنی هدف به یې زموږ دخویندو او تور سریو بې ابرو کول وی .
دوهم دا چې موږ یو باعزته مرگ ته چمتو شو.
یو بل سردار اوچت شو ویی ویل : جگړه موږ ته له مرگ سره مساوی ده . ابو عبد الله ته ناڅاپه څه په خیال کې دروگرځیدل اولږ په هیله منه لهجه یې ویل : طریفه ! ته ابوداود ته ورشه ، په دې وخت کې بل څوك تر هغه بنه لاره موږ ته نه شي رابنوولای ، که فردیناند ته زموږ په باب څه شکونه پیدا شوی وی نو هغه یې لرې کولی شي، فردیناند هغه دلوشه حاکم ټاکلی ، ته ژر ترژره هغه ته ورشه.
لږ څند وروسته طریف دلوشه په لوروخوځید.

* * * * *

(۲)

ابو داود طریف بن مالك ته وکتل ویی پیژاند ، خو دطریف دهیلی پرخلاف هغه ده دتاوده هرکلی پرځای له کرسی نه راپورته نه شواو تش لاس ورکول یې هم مناسب نه بلل یوازی ده ته مخامخ تشی کرسی ته یی اشاره وکړه .
طریف چی په کرسی کیناست زره نا زره یی وویل : زه ابوعبدالله تاته را استولی یم .
ابوداود ځواب ورکړ : ماته معلومه ده ته له مانه مشورې اخستلو ته راغلئ یې.
طریف: نوتاته معلومه ده چې فردیناند له موږ سره وعده خلافی کړی ؟
ابوداود: زه دیوه والی په حیث دخپل پاچا پرخلاف څه اوریدو ته تیار نه یم . اوزه ابوعبد الله ته هم ددې مشوره نشم ورکولی چې دخپل پاچا له حکم نه سر غړاوی وکړی.

ته وسپاری .

طریف: مګرتا زما په مخکې ابو عبد الله ته څو ځلي داد ورکړی چی فردیناند به ورسره دوکه نه کوی ،هغه زموږ خوا خوږی او خیر خواه دی . هغه دخپلی پا چاهی دپراخولو په تمه کې نه دی ، هغه به الزغل ته له ماتې ورکولو وروسته دغرناطې ټول حکومت ابوعبد الله ته سپاری . اوس هغه وعدې څه شوې ؟ افسوس چی تا دلوشه دولایت په تمه داهیره کړه چې دمسلمان قوم یو غړی یی . که غرناطی ته عیسوی پوځ ننوت نوزموږ پای به دمالقی له خلکو نه هم بد وی.

ابوداود بیا په هماغه بی پروایی ځواب ورکړ : ما دابو عبد الله او فردیناند ترمنځ دیوه استازی مسئولیت ترسره کړی.

طریف : نه تا ابو عبد الله دفردیناند په دروغو وعدو اعتماد کولو ته تشویقاوه.

ابو داود ځواب ورکړ : آیا دابو عبدالله په څیر زه هم اشتباه نشم کولی . آیا هغه وخت تاسو ټول زما سره همنظره نه وی ؟ که تاسو له تباهی نه ځانونه ژغورل غواړی نو آیا دا ضروری نه ده چې دابو عبد الله پر ځای یو بل هوښیار او دتدبر خاوندته دغرناطې واکمنی وسپارل شی ؟

دنصرانیانو له کسات نه دژغورنې یوازینۍ لاره داده چې ستاسو کوم مشر هغوی ته دغرناطې داولس لخوا دبشپړې وفاداری داډ ورکړی.

طریف ووېل : که دغرناطې خلك تا دلارښوونې لپاره وغواړی ته ددی خدمت لپاره چمتو یی .

ابوداود: کله چې زه دا احساس کړم چی زه دهغوی څه خدمت کولی شم نو بی له غوښتلو به ورځم .

طریف : مګر ما اوریدلی دی چې دلوشه مسلمانان ستا تر سیوری لاندی تر ...

دطریف دتوقع پر خلاف ابوداود په داد منه لهجه ځواب ورکړ : په داسې حالاتو کې په احساساتي خبرو ځه نشي تر لاسه کیدای ، زه ربښتیا هم دفردیناند جاسوس یم ، خو تاسو هم دهغه په خدمت کې ځه کمې نه دې کړي ، خپل زړه ته دي وګوره آیا دا نه احساسوی چې که ته دابو عبد الله پر ځای وای دغرناطې لپاره به غوره وای.

طریف: نه زه له ابوعبد الله سره غداری نشم کولی.

ابو داود : ډیر ښه ، همداسې ده مګر ددې سبب دا نه دی چې ته ابو عبد الله دغرناطې غوره لاربښود ګڼې بلکې ددې سبب دادی چې تا د لوی وزیر منصب ته درسیدو لپاره دداسې سړی پاچا کیدل ضروری بلل ، که ته په دې داده وای چې دالزغل اوابو الحسن په واکمنې کې هم دې منصب ته رسیدای شوای نو تابه له هغوی سره غداری نه وای کړي . او دخپلې دعوی دثبوت لپاره یوازې دا یس بولم چې موسی غوندې سړی تاسو یوازې ددې لپاره وواژه چې دهغه په ژوند تاسو یوه معمولي منصب ته هم نشوای رسیدلای . که نه پردې ځوك نه پوهیږی چې هغه دغرناطې لپاره تر ټولو غوره لاربښود و.

زما دوسته! زموږ دواړو په مخکې خپل خپل اهداف وو ته دخپل هدفونو لپاره دابو عبد الله دلاس آله شوی اوزه دخپلو هغو لپاره دفردیناند . اوس هم ته دغرناطې دتباهی دخطر پروا نه لرې . تاته یوازې ددې اندیښنه ده چې که له ابو عبد الله نه تخت واخستل شي ستا دوزارت کرسی به هم ولاړه شي.

طریف سور واوښت ورته ویې ویل : «ته شیطان یې».

دابوداود په شونډو دلومړي ځل لپاره موسکا وځلیده ویې ویل : یو وړوکي شیطان دلوی شیطان په لوییی اعتراف کوی.

او بیا جدي شوو ویې ویل : طریفه ! تاته دپریشانۍ ضرورت نشته ستا هدف دغرناطې وزارت دی . خو که ته داسې ګڼې چې ددې لپاره دابو عبد الله پاچاهی

غرناطی کی دپاچاهی او وزارت لپاره دفردیناند رضا ضروری ده . که ته غواړی دوزارت لپاره دهغه رضایت تر لاسه کول ډیر اسانه دی. زه پردې نه پوهیږم چې کوم سړی چې دموسی په وژلو پښیمانه نه وی دابو عبد الله غوندی احمق فردیناندٌ په سپارلو به ولی پښیمانه وی؟

طریف وویل : کله چې زه غدار وم نو دا مې نه احساسوله چې نصرانیان دومره بد عهده او بې رحمه دی اوس که ته دا گنې چې هغوی په مالقه کی زما له قوم سره څه کړی دی زه به یی هیر کړای شم نو دا اشتباه ده.

ابو داود : ته بیا احساساتی شوی ، په مالقه کې که الزیغری وسله ایښې وای نو عیسویانو به له مسلمانانو سره داسی سلوك نه کاوه.

طریف : ښه ده زه نور ځم !

ابو داود جگ شو دخدای پامانی لپاره یی لاس ور اوږد کړ ویی ویل : دخدای په امان

خو ناڅاپه دطریف په زړه کې څه وروگرځیدل دهغه لاس دابوداود په لورور واندې کیده ناڅاپه ودرید ویی ویل : نه ! ښایی سر له نن زموږ لاری سره بیلی وی.

ابوداود په داده زړه په کرسۍ کښیناست ویی ویل : ستا خوښه ، خو زه پوهیږم چې ته به له یوه اوږده مزله وروسته بیرته له ماسره یوځای شې . که ته ځان ته دركه ورکول نه غواړې نوابو عبدالله ته تر ورتگ دا درته غوره ده چې نیغ فردیناند ته ورشې.

طریف دروازی ته ورسید ودرید ، یو ځل یی ابوداود ته وکتل او بیا بهرته ووت.

ابو داود تر لږ ځند په چورتونو کی ډوب وو بیا یی لاسونه وپړکول ، یونوکر کوټې ته ورننوت اوپه ادب سر ځوړند ودرید دحکم انتظار یې کاوه ، ابو داود

میلمستون کی دی اواوس به دخوځیدو تیاری کوی تاسو هغوی تر هغه پوری تعقیب کړی چی درته ځرگنده شی چی مالقی ته ځی که غرناطی ته که دری مالقی ته مخه کړه نو داسی وگڼی چی زموږ د پاچادوستان دی په هغه صورت کی به ستاسونه یوازې یو تن زما لیك دپاچا خدمت ته رسوی ، خو که هغه غرناطی ته ځی نو داسی وگڼی چې زموږ دپاچاهی لپاره یې وجود خطرناك دی ، په دې صورت کې به ستاسو دا مسئولیت وی چې باید هغه دغرناطې له تلونه په هرصورت ایسار کړې له هغه سره پنځه تنه دی ، تاسو له ځانه سره دوه دری تنه بنه غشی ویشتونکی پوزی. زه غوارم چې دهغه ملگری هغه وخت خبر شی چې په تتر یې غشی وربنخ شی.

که څه مجبوری نه وه دهغه په نورو ملگرو غشی مه اوروی او حمله مه پرې کوی.

له هغه وروسته ستا یوملگری مالقی ته ولاړ شی دپاچا په خدمت کې زما له لیك وراندې کولو نه وروسته نوره کیسه په خوله ورته واوروی . اوس ورځی که طریف روان شوی وی هم دیرلری نه دی تللی.

* * * * *

(۳)

له لوشه نه دوتلو وروسته طریف تر څو میلو پوری له خپلوملگرو سره هیڅ خبره ونه کړه ، دشپی مهال یې په یوه وړوکی کلی کې په یوه کوچنی سرای کی وارول . دسرای خاوند یو مراکشی مسلمان و . طریف چې له آس نه پلی شو ویی ویل : تر موږ زیات زموږ آسونه آرام او خوراك ته زیاته اړتیا لری موږ به دشپی په دریمه نیمایي کې روانیږو .

دسرای مالك ورته وویل : ته عزتمن سړی بنکاریږی ، دسرای دوې غوره کوټې دنصرانیانو دوو افسرانو نیولې . که ستا اعتراض نه وی نو زه ستاسو لپاره دخپل

او ددی سرای په منځ کی یوازې یو دیوال دی . شور خوبه هلته هم اوری خو دشپې مهال به دې دروازه نه درماتوی.

طریف وویل : ډیر ښه زه ستا میلمه یم .

ډوډی خوړلو وروسته طریف په بستره غځیدلو ته چمتو کیده چی په سرای کی یی شور ترغوږ شو ، او ورسره سم یی دکومی ښځې کریږې واوریدې . هغه دسرای خاوند ته غږ وکړ ، دسرای خاوند له بلی کوټې نه راووت او دده کوټې ته ورغی ، هغه طریف ته بیله دې چی پوښتنه ترې وکړي وویل : داسی ښکاری چې هغوی نن بیا ښکار نیولی او راغلی .

طریف: ستا مطلب دادی چی دوې دخلکولونی په زور دلته راولی .

دسرای خاوند ځواب ورکړ : هو ! یو فاتح قوم له خپلو غلامانو نه همدغسې حقوق غواړی .

طریف: خلک څه مزاحمت نه کوی؟

دسرای مالك: په دې کلی کی دمسلمانانو شمیر ډیر لږ دی او هر یو دخپل کور دساتنې په ثمه دبل کور دپرځیدو او ویجاړیدو په حال کې وینی او چوپ وی.

طریف : ایا ددوی غیرت ځواب ورکړی ؟

مالك: داسی ښکاری چی ته دکوم بل هیواد نه راغلی یې ، دکوم قوم چې پاچا بزدل او سرداران غدار وی ، دهغوی لپاره غیرت هیڅ معنی نه لری.

طریف خپله توره اوچته کره ویې ویل : زما دوسته زه له یوې مودې سرګردانه وم نن تا لاره راوښودله .

بیا هغه په منډه له کوره ووت او سرای ته ور ننوت ، دښځې کریږې دپاس پوړیو له یوی کوټې نه راتلې ، دطریف ملګری حیران په برنده کې ولاړوو ، طریف ورته وویل:

په تول زور یی دروازی ته ډیکه ورکړه او ماته یی کړه ، دشرابو په نیشه مستو سپاهیانو ښځه پریښوده او دده په لوری یی پام شو ، خو دسترګو په رپ کی دطریف توری دیوه ککره والوزوله او دبل تر سینه بوټه ووته . ویری اخیستی نجلی یوه شیبه حیرانه په غولی پرته وه ، بیا یی لغړ ځان ته پام شو او جګه شوه په چیغو له کوټی نه ووته په دی ځند کې دطریف ملګرو هم تورې را واخستلې او پاس پورته وروختل ، نجلی چی هغوی ولیدل یوه زړه بریښوونکی کریکه یی تر خوله ووته او له برندې نه یې لاندې ځان وغورځاوه طریف په منډه ورکوز شو ، دسرای مالك په سرای کې ولاړ طریف خپله چپنه دنجلی په لغړ بدن ورواچوله ، دسرای خاوند ورتیت شو په نبض یی لاس ورکیښود ویی ویل: دا دژوند له زندان نه آزاده شوه.

طریف خپلو ملګرو ته وویل : پر آسونو زینونه وتړی ، موږ به همدا اوس روانیږو ، بیا یی دسرای مالك ته وویل : که له تانه چاپوښتنه وکړه چی ددی بدمعاشانو قاتل څوك دی؟ ورته ووایه چی دغرناطې غدار وزیر دخپل قوم دیوی نجلی مظلومیت یو ځلې بیا مسلمان کړ.

لږ ځند وروسته چی دوی بهرته وتل اته تنه سپاره دسرای په دروازه کی ودریدل ، له هغوی نه یوراوراندی شو په ځیر یی طریف ته وکتل او ویی ویل: په دی مهال ته چیرته ځی ؟

طریف په ترږشه لهجه ځواب ورکړ : ته څوك یی؟

موږ سپاهیان یو ،فکر مو کاوه چې دلته به دشپې تیرولو ځای وی خو داسی ښکاری چی تاسو ته هم ځای پیدا نه شو.

طریف : دیر ځای دی یوه کوټه موږ همدا اوس خالی کړه ، دا یی وویل او طریف اس پورته کړ ، لږ چی وراندې ولاړل دطریف یو ملګری چې تر نورو له ده

کړی ژ چی زه دغرناطی تر تولو لوی غدار یم .

حسن پریشانه شو ویی ویل : ته زما آغایی !

طریف: نه ! زه پوهیږم ستا مجبوری تا دزړه خبری کولو ته نه پریږدی ، ته دژوند په ترخو لارو هم له ماسره په ملګری مجبوروی ، خو که زه سرله نن نه سمه لاره غوره کړم نو ته به دځان په باب څه فرق احساس کړی ؟

حسن زړه نا زړه وویل : زما باداره ! دضمیر تر بوج لاندی او دضمیر دبوج نه آزاد په ژوند کې ډیر توپیر دی .

طریف: حسنه! نصرانیان زموږ ډیر بد غلیمان دی .

حسن: باداره: که دا ګستاخی نه وی نوزه خو وایم چی موږ پخپله له ځان سره دښمنی کړی ده.

یو سړی چې دځان قاتل ومنو بیا له هغه نه دا غوښتنه نشو کولی چی ته موږ په دی دول مه وژنه ، او زموږ حالت دادی چی خپل لاس او پښی مو وتړل او ددښمن په مخکی وذریدو او موږ خپل خنجر هم ددوی په لاس ورکړی دی . اوس ددوی خوښه ده چی ورو ورو مو وژنی که مو یو ځل شاه رګ غوڅوی.

طریف احساساتی شو ویی ویل : نه زموږ خنجر تر اوسه زموږ په خپلو لاسونو کی دی موږ به جنګیږو که دعزت ژوند نه وی دعزت دمرګ لاره مو پر مخ نه ده بنده شوی.

حسن: خدای«ج» دې تاته همت درکړی ، خو زه ویریږم چې ابو عبد الله به دې ملاتړ ونه کړی.

طریف: هغه زموږ په ملاتړ مجبور دی.

لږ څند وروسته طریف څك شو ویی ویل : په موږ پسې ځوك راځی دطریف په اشاره دده ملګرو اسونه ودرول ، له شانه په یوه فاصله داسونو دچارګام زغاستی غږ او ریدل کیده حسن وویل : دا به هماغه سپاهیان وی چی دسرای په دروازه کی

غلی شی دطریف ملګرو لاره پرېښوده او په ګڼو ونو کی یو خواته شول، سپاره تیر شول ، طریف او ملګری یی راووتل او بیرته په اسونو سپاره شول.

* * * * *

(٤)

دشپی په ورستی برخه کی دی خلکو لاره پرېښوده او په یوه خوړ ور برابر شول . طریف په خپل آس سر څوړند کړی ؤ . څومره چی ددوی منزل را نژدی کیدو نا کراری او اضطراب یی ډیریده دی له هغه منزل نه تیریده چی یو انسان په سوچ کی شی چی اوس زه باید څه وکړم.

کله چی دابو داود له ملاقات نه وروسته له لوشه نه راوتلو نو پښې یې لړزیدلی ، کله یې فکر کاوه چی غرناطې ته ځم او ابو عبد الله ته وایم چې موږ ځانونه دوکه کړی دی ، اوس موږ ته له جګړې پرته بله لاره نشته، دکوم سیلاب دمخی بندونه چې موږ پخپله ونړول اوس زموږ کورنو ته را ننوزی.

کله چې دفردیناند لښکر غرناطې ته راننوزی نو نه به ته پاچا وی او نه زه وزیر ، هغوی بنایی موږ ته دعامو خلکو په څیر دعادی ژوند حق هم را نه کړی ، مګر آیا موږ دجګړې او مقابلې توان لرو ؟ دهغه دښمن دمقابلې چې خپلې مزبوطې دروازې مو پخپله ورته خلاصې کړې ، هغوی زموږ له ټولو کمزوریو نه خبر دی ، اوس موږ هغه ته اخطارونه هم نشو ورکولی، بیا هغه سوچ کاوه : ایا داسی کیدای شی چې فردیناند دومره ذلیل شی ، که زه هغه ته ورشم او ورته ووایم چې موږ دتا په خاطر دخپل قوم په نظر کی ذلیل شوو موږ پر تا اعتبار وکړ او ستا لپاره دابو الحسن او الزغل سره وجنګیدو زموږ باور ؤ چی ستا تر سیوری لاندې به دامن او سولی ژوند کوو،موږ په اندلس کې دامن لپاره دخپلې پاچاهی زیاته برخه تاته وسپارله ، اوس ته غرناطه هم له موږ نه اخلی ، ته داندلس

مو غورځولي ، آيا زموږ دخدمت انعام همدا دی چی دغرناطې دروازې هغو ليوانو ته پرانيزو چی په مالقه کی يی دانسانيت لمن تارتار کړه ؟ آخر موږ څه گناه کړې؟

نه نه ! اوس په دې خبرو کې څه گټه نشته اوس فرديناند موږ ته ضرورت نه لري، اوس هغه له الزغل او ابو الحسن نه خطر نه وينی نور هغه ته هغه قوم بی ضرره دی چی له پيړيو راسی يې داندلس په ډگرونو داقبال بيرغ رپولی ، فرديناند دغشو په باران کی دډبرو شاته پناه اخستی وه ، اوس دهغه په مقابل کی دجنگيا ليو ليندي ماتی شوی او هغه اوس هغوډبرو ته اړه نه لري . ابو عبد الله ، زه او زما ټول ملگری هماغه ډبرې يو چې دفرديناند مورچل ؤ او جگړه يې وگټله ، اوس هغه موږ ته ضرورت نه لري.

بيا دهغه په زړه کی بل خيال راغی :

مگر ابو داود هم زموږ په څير دهغه دپناه يوه ډبره وه ، اوس يې هغه دلوشه والي تاکلی ، طريف بيا پخپله دی سوال ته ځواب ورکړ : نه هغه تراوسه ابو داود دکار سړی گڼی ، فرديناند په خپله ماته معترف دښمن دمرگ کومی ته سپارل غواړی ، او ابو داود دډبرې په حيث هم دهغه دتورې تيرولو کارورکولی شی . فرديناند غواړی چې ددښمن په رگونو کې يې دزوتد يو څاڅکی وينه هم پاتی نه شی ، او ابو داود هغه ته ويلی شی چې کوم رگ بايد غوڅ کړی . ښايی داسی ورځ راشی چې فرديناند دا احساس کړی چې زموږ په څير يی نور هغه ته هم ضرورت نشته .

مگر تر اوسه پوری ئی هغه ته ضرورت شته .

ابو داود ماته دا باور راکاوه چی زه له ابو عبد الله سره غداری وکړم ، فرديناند خوښولی شم ، مگر دا دوکه ده ، آيا دا امکان نه لري چې فرديناند دابو عبد الله په اړه کومه پريکړه کړی دابو داود مشوره ورسره ده . او که ابو داود ابو عبد الله ته دوکه ورکولی شي ، نو هغه به ماته دوکه رانکړي ، زه مالقې ته نه ځم ، زه به

اوچې کله به طريف ته دغه ذهنی کشمکش له زغم نه بهر شو نو له خپلو ملگرو سره به یې څه خبره را واخستله ، دکلی سرای ته دور رسيدو نه وړاندې هغوی ته معلومه نه وه چې په کوم لوري به ځي ، دهغه یو گام دغرناطې او بل دمالقې په لور اوچتيده خو چی دوی له سرای نه ووتل ، نو په مخکې يې يوازې یو منزل ؤ دنجلی دردناك مرگ ددوی دويده ضمير لپاره وروستی جټکه شوه ، دهغوی ریږديدونکی پښې مزبوتې شوې . دقوم دېوځېنې وسې نجلی کړېږي دغرناطې لوی وزير دهغو خلکو په ليکه کې ودراوه چې حالات يې دماتې او فتحې نه بې پروا کړی او په جگړه يې مجبور وي دطريف په مخکې اوس يوازې يوه لاره وه.

کله چې دسهار نخښې را برې شوې ، هغه ديوی ويالې په غاړه اس ودراوه خپلو ملگرو ته يې وکتل ويې ويل:

دلمانځه وخت دی.

په وياله يې اودسونه وکړل او بيا طريف او ملگري يې مخ پر قبله ودريدل ، له لمانځه وروسته يې چې لاس په دعا پورته کړل . دالفاظو پر ځای يې په سترگو کې اوښکې راغلې طريف خپل مخ په لاسونو پټ کړ . له ډيرې هڅې وروسته يې له خولې داالفاظ ووتل :

زمونږ مولې : مونږ دعزت دژوند له لارې نه ډير لرې راغلی يو ، اوس ښايی زموږاوښکې زمونږ دلمن داغونه ونه مينځلای شی . مونږ ستا له حکم نه بغاوت کړی ، ستا له رحمت نه منکر شوو ، اوس چې زمونږ په مخکې له ذلت او رسوايی نه پرته بل هيڅ نشته مونږ له تانه دعزت مرگ غواړو ، نه دعزت لفظ زمونږ غوندې انسانانو لپاره نه دی ، مونږ ددی وړ هم نه يو چی دعزت دمرگ تصور

له خوړنه چې تیر شول او دیوه ګڼ ځنګل نه ووتل دوی دغرناطې دجوماتونو منارې او دالحمرا ګنبزې ولیدې ، هغه افق ته اشاره وکړه ویې ویل : هلته ګوره ! غرناطه ! زموږ غرناطه ، حسنه ؟ دا په اندلس کی زموږ وروستی کلا او مورچل دی ، موږ به دا کلا ساتو موږ دخدای «ج» له رحمت نه باید مایوسه نه شو ، که دغرناطې دلس لکه خلکو نه یو لك ځوانان دژوندي پاتې کیدو تعهد وکړي نو هغوی څوك له منځه وړای شی ؟ ایا دسرحدی شاهین دګوتو په شمار ډلګی دفردیناند دلوی او منظم لښکر غابښونه څو څو ځلی نه دی ماتې کړي ؟

ایا دطارق زر تنو سرتیرو د «رادرك» ددبدبې مانۍ خښتې خښتې ونه لړزولی؟ کله چې موږ دزرګونو په شمیروو نو ددښمن له لوی نه لوی ځواك مو مات کړی. او نن زموږ شمیر په لکونو دی ، ایا موږ دتل لپاره دفردیناند دغلامی ذلت ومنو ؟ آیا زموږ سره هغه توری نشته چې زموږ پلرونو ......!

طریف خپله خبره پوره نکړای شوه ، دونو له منځه یو غشی راغی او دهغه په پښتی ښخ شو ، دده له خولی اف ووتل او په یوه لوري کوږ شو ، خو له دې سره یو بل غشی راغی او په ګیده یی ونښت ، دطریف ملګرو داسونو قیضی ونیوی خو په دې ځند کې څو نور غشی راغلل او دطریف یو بل ملګری هم ټپي شو ، او له دې سره دونو له شا نه داسونو دپښو آواز اوچت شو .

طریف په لوړ آواز وویل حسنه! په هغوی پسې مه ورځه زما ډیرکار پاتې دی.

طریف اس ته پونده ورکړه ، او دده ملګری چې له غوسې نه یې شونډې چیچلې په ده پسې شول . لږ وړاندې چې ولاړل حسن هغه ته اس ورلند کړ ورته ویې ویل:

آس ودروه ، غشی به راوباسم .

طریف: نه زما دا شیبې ډیرې قیمتي دي ، نور وخت مه ضایع کوه .

طریف له آس نه دکوزیدو په حال کې وویل : ته ډیر سرتمبه یې حسنه ! بیا یې زین په دواړو لاسو ونیو او په اس یې سینه ور واچوله ویې ویل : بیړه کوه.
حسن ژر خپله پګړۍ یوه ملګري ته ور واچوله ورته ویې ویل دا دوه ټوټې کړه .

دوه تنه نور له اسونو ښکته شول طریف ته یې اوږې ورکول غوښتل خو هغه ورته وویل زه ښه یم ددې ضرورت نشته ، ژر کوی.
حسن ناڅاپه یو غشی را ویوست خو څو یې بل راویست طریف بی سده شوی ؤ.
پردواړو زخمونو له پټی تړلو نه وروسته یې طریف په څمکه څملاوه ، لږ څند وروسته هغه بیرته را په خود شو سترګې یې وغړولې ، دڅو غوړپه اوبو له څښلو وروسته یې دجګیدو هڅه وکړه ، خو حسن وویل : په دې حالت کې پر اس سفر ښه نه دی . ایا دابهغوره نه وی چې تا دلته په کوم کلی کې پریږدو او له غرناطې نه طبیب راولو.
طریف جګ شو او په پریکنده انداز یې وویل : نه ! زه یوازې دخپل وروستی فرض پوره کولو لپاره ژوندی یم .
طریف په آس سپور شو خو نژدې نیم میل مزل وروسته حسن احساس کړه چې هغه پر زین ځان نشی تکیه کولی ، کله یوه او کله په بله خوا وزنګیږی ، هغه اس ورنژدې کړ دطریف تر ملا یې لاس را وګرځاوه او هغه یې پر خپل آس څملاوه ، طریف زګیروی وکړ ویې ویل : ما موسی ته ورورله .

* * * * *

(۵)

دسمسورو باغونو نه تیر شول حسن دیوه زاړه کور داوسپنیزې دروازې په مخکې آس ودراوه . یوه حبش غلام ددروازې له چولو بهر ته وکتل ، حسن وویل:

نوکرانو ته وويل يعقوب راوغواړئ .

يو حبشي په منډه ووت او ژر بيرته راغی وی ويل : هغه راځي .

يو دپوخ عمر خو دځواکمنو متهو خاوند کوټې ته ور ننوت طريف يې چې بېهوشه په بستره وکوت په سواليه نظر يې حسن ته وکتل .

حسن وويل : يعقوبه ! دآغا حکم دی چې ژر ترژره موسی له زندان نه را وباسه او دلته يې راوله .

يعقوب ددوه ژړه توب او پريشانۍ په حالت کې حسن او دهغه ملګرو ته وکتل دهغه چوپ کتلو ددغه ناځاپي حکم پر خلاف احتجاج کاوه .

حسن وويل : يعقوبه ! وخت مه ضايع کوه ژر کوه.

يعقوب لږ جرئت وکړ ويې ويل : بادار بې هوښه دئ ، او تر څو چې هغه پخپله امر ونه کړی ...

حسن پرې ورپرچ وهل : دبادار لخوا زه تاته امرکوم ژر کوه.

يعقوب : مګر هغه به ماژوندی پرې نږدی .

حسن : زمرئ په شغالانو غرض نه لری راځه زه در سره ځم ،

لږ څنډ ورروسته حسن ، يوغلام او يعقوب دکلا په بل کونج کی له يوی تنګی کوځې نه تير شول او ديوی پنجرې اوسپنيزې دروازې ته ودريدل ، بريری ددروازی کولپ خلاص کړ دکوټې په يوه کونج کی ددبرو تنګی زينی ښکته شوی وی . کومی شل پايی ښکته دوی تول ديوې بلې اوسپنيزې پنجرې اوسپنيزې دروازې ته ودريدل . يعقوب دروازه خلاصه کړه ، دننه سخته تياره وه ، يعقوب ددروازې تر څنګ په ديوال يو څرخ واړاوه . په ديوال کې له يوه درانه غږ نه ورروسته يوه دريڅه ښکاره شوه ،او تياره کوټه لږ رڼا شوه دا کوټه تشه وه خو تر څنګ يې په بله کوټه کې يو سړی دوهتـه را کتل چې دهغه ديوازيتوب دچرتونو

موسی چوپ ؤ او حسن ته یې کتل ، حسن بیا وویل : هغه تپې دی او وروستې هیله یې داده چې ته یې پخپلو پښو کې لوېدلو ته اجازه ورکړې.

موږ هغه دبې هوښۍ په حال کې دلته راوستی پوهېږو چې ته به هغه معاف نه کړې ، خو هغه توبه کړې ده ، او له وروسته نور دهغه معامله بنایي دخدای «ج» سره وی ، موږ ټول ستا مجرمان یو او که ته څه سزا را کوې زموږ لخوا به اطاعت وی .

دحسن په اشاره یعقوب په وېره وېره دروازه بېرته کړه موسی له تنګۍ کوټې نه را ووت یوه شیبه چوپ ودرید ، بیا یې وویل : زه په دې نه پوهېږم طریف خو دابو عبد الله لپاره هرې ګناه ته تیار ؤ ، هغه ولې تر عتاب لاندې شو ،

حسن ځواب ورکړ : طریف دفردیناند کسانو تپي کړی ، تاسو که په ټولو حالاتو خبر شی نو بنایي هغه دبخښنې وړ وبولی . مګر اوس دهغه دعمر ډیوه په ګل کیدو ده ، هغه ستا په انتظار دی ، تاته څه ویل غواړی .

موسی وویل راځئ !

*****

(٦)

طریف له درده زګیروی وکړ وېې ویل : زر کوی ما موسی ته بوزی .

یوه ملګری یې ورته وویل : حسن دموسی دراوستلو لپاره تللی هغوی به راروان وی .

طریف سترګی وغړولی یوه او بله خوایی واړولی ، جګ شو په بستره کې کېیناست وېې ویل : زه په دې حالت کې هغه لیدل نه غواړم . ما دهغه دپنجرې مخې ته بوزی' زه ددې وړ نه یم چې هغه راته راولی زر کوی.

طریف خپلی پښې له بسترې نه لاندې وځړولی ، دوو تنو هغه ته تکیه ورکړه ، کله یې چې هغه له دروازې نه بېرته وپوست نو یو حبشي نوکر راغی وېې ویل :

ولید دهغه په سترګو تیاره راغله ، توګوری وخوړ وراندې ولاړ . او بیا دبرندې یوی ستنې ته یی غیږ ورکړه ودرید . موسی چې ورنژدې شو ودرید ، او په تذبذب یې هغه ته وکتل ، دطریف له رېږدیدونکو شونډو نه دردناك غږ اوچت شو : موسی ! ستا مجرم دمرګ دروازه ورټکوی . مګر پخوا له دی چې ... پخوا له دی ... !

طریف ستنه پرېښوده یو ګام ور وړاندې شو او بې اختیاره دموسی په پښو ورپریوت . موسی یوه شیبه بې حس او حرکته ودرید بیا یی په شا کیدو هڅه وکړه ، خو دهغه پښې دطریف په متو کې ایسارې وې . دبې هوښۍ په حالت کې یې هم دهغه پښې په لاسو کې ټینګې نیولی وې ، ناڅاپه موسی احساس کړه چې پښې یې لمدې شوې ، طریف دهغه په پښو کې داوښکو څاڅکي تویول . نه دا اوښکی نه دی ، دموسی په زړه ګوزار وشو ، هغه تیری تولې ترخې خاطرې هیرې کړې ورټیټ شو طریف یی پاڅاوه ، داوښکو پر ځای دهغه له خولې دوینو دارې روانې وې ، موسی هغه اوچت کړ دننه یی یوړ ، په بستره یی وغځاوه ، دهغه په هوش راوستلو هڅه یی وکړه ، خو ستومانه پردیس په خپل وروستی منزل ساه ورکړی وه موسی انا لله وانا الیه راجعون وویل او دصبر له هڅې سره یې په سترګو کې اوښکې راوخوټیدې ، دا اوښکی دطریف پر مخ پریوتې ابو موسی دهغه سر له خپل زنګون نه پر بالښت کیښود او په ژړغونی غږ یی وویل : طریفه ! تهٔ زموږ دی !

# نويي ولولې

موسی له يوې مودې وروسته يو ځل بيا دويالي دهغه پله سره نژدې ولاړ ؤ چې له بلې غاړې نه يې دسرحدي شاهين آزاد هيواد پيل کيده ، دپله سره په هماغه ونه يوه تخته ځړيده ، خوپر هغې ليك له هغه ليکنې سره بدل ؤ چې موسی لومړی ځل دشاهين درې ته دننوتلو په وخت کې ليدلی ؤ. ددې ليك الفاظ داسې وو :

«ددې ويالې هغې غاړې ته دسرحدي شاهين مملکت دی ، داسې چاته چې دغدار ابو عبد الله پاچاهی منی دلته دننوتلو اجازه نشته ، دنصرانيانو له ظلم او ستم نه پناه اخستونکو مسلمانانو ته دننوتو اجازه ده ، خو ددښمن دجاسوس سزا مرگ ده.»

دمازديگر دلمانځه مهال ؤ ، موسی له اس نه پلی شو او هغه يې په يوه ونه وتاړه ، دويالې په اوبو يې له اوداسه وروسته په شنو وښو کې په لمانځه ودريد ، دپنځه ويشتو تنو په شاوخوا کې ځوانان له ونو راووتل او دموسی په شاوخوا راټول شول ، موسی چې له لمانځه نه وزگار شو جگ شو ، او دوی ته يې وکتل وې ويل : زه ستاسو له امير سره ليدل غواړم زما نوم موسی دی .

يو ځوان رامخکې شو هغه ته يې په ځير وکتل وې ويل : موسی ! ته !! ته ژوندۍ وې ! مگر دا دومره موده ته چيرته وې ، دځوان په تندی کې دخوښۍ علامې رابنکاره شوې.

موسی ووېل : خپل امير ته ووايې چې زه يې په خدمت کې حاضريدل غواړم ، زه همدلته دده دحکم انتظار کوم.

دوبالې نه له پورې وتلو وروسته همغه ځوان او پنځه تنه نور ملګري یې له موسی سره ملګري شول او پاتی نور دونو په مینځ کې غلی شول ، دځنګل او غره له تیاره او تنګو لارو وهلو وروسته نیمه شپه دیوی کلا دروازې ته ودریدل ، دموسی دتوقع پر خلاف د کلا دروازه خلاصه وه او بهر څو تنه ولاړ وو ددوی انتظار یې کاوه دهغوی دیوه تن په لاس کې بل مشال ؤ ، موسی چې دروازې ته ورنژدې شو ، نو یو سړی ور وړاندی شو دده داس جلب یې ونیو ، موسی له اس نه ښکته شو او دمشال په تته رڼا کی یې هغه ته وکتل ویې ویل : څوك یې ! بشیر !! او بشیر له هغه سره غاړه غړې شو . داحساساتو په څپو کې بشیر په وار وار دا الفاظ تکرارول : ته چیرته وې ؟ ولې دې دومره موده موږ له احواله نه خبریدو ! موږ خو په خوب نه وینو !

دبشیر له پنجو نه چې وزګار شو موسی نورو خلکو ته پام واړاوه ، یوه دتورو جامو خاوند لاس ور وغځاوه ، موسی لاس ورکړ بشیر ته یې وکتل ، بشیر وویل:

دا منصور بن احمد دی.

له منصور سره تر ستړی مشی وروسته دموسی نظر په ابو محسن ولګید ، ابو محسن بې حرکته ولاړ ؤ ، او خپل سالار ته یې کتل ، موسی لاس ور وړاندی کړ ویې ویل : ابو محسنه ! ته مې نه پیژنې !

ابو محسن دعقیدت او مینی نه دموسی په لاسو شونډی ورکیښودې دوی ټول بیاکلا ته ننوتل ، په یوه پراخه کوټه کې دسترخوان غوړیدلی ؤ ، موسی وویل تاسو تر اوسه ډوډی نه ده خوړلی ،

بشیر وویل : موږ ستاسو انتظار کاوه .

موسی : نو په دروازه کې هم تاسو زموږ په انتظار ولاړ وی.

مګر تاسو ته څه ور معلومه شوه چې زه راروان یم .

اوس چې دبدر پر ځای منصور بن احمد لاس پرې پرې مینځل نو ناځاپه مجلس ورته بیگانه غونډې ښکاره شو ، دبشیر دبې تکلفی او دمنصور داخلاص سره سره ده په دې مجلس کې دیوازیتوب احساس کاوه ، ده دبدر بن مغیره یادونه چیرل غوښتل خو څه یې ونه شو ویلای کوربنو ددې انتظار کاوه چې میلمه ډوډۍ ته لاس ور اوږد کړی .

بشیر وویل : بسم الله کوی !

موسی غیر ارادی یوه گوله اوچته کړه ، خو اشتهایی سوځیدلی وه ، لاس یې خولې ته تر رسیدو وراندی ودرید ، په سترگو یې داوښکو پردې وغوړیدې له خولی نه یې دردناك غږ ووت : بدر ! بدرا

او هغه اوچته کړی نوری یې بیرته په دسترخوان واچوله .

کوربنو په ډیره پریشانۍ هغه ته کتل ، موسی دچپنی په لستونی خپل مخ پټ کړ ، هغه غازی چې په مخکې یې دزمریانو زړونه ریږدیدل چې ټول عمر یې له توپانونوسره په مقابله او له تندرونو سره په لوبو کې تیر شوی ؤ ، او هغه غازی چې دمرگ دهیبتناکی خیری په وراندې به یې په کړس کړس دخندلو جرئت درلود په دې ډك مجلس کې په ژړا شو ، دیوه داسی ماشوم په څیر یې ژړل لکه ډیره گرانه دلوبو نانځکه یې چې ماته شوی وی .

ویخښی زما اشتها نشته ، موسی په ژړغونی آواز دا وویل او جگ شو له کوټی نه ووت .

کوربنو یو بل ته وکتل ، منصور وویل لږ انتظار وکړی ، زه اوس راځم ،

بشیره ! ته هم راسره تلای شی .

موسی په انگړ کې ولاړ ؤ او دآسمان ځلیدونکو ستوریو ته یی کتل ، بیا یی سلگۍ وکړې ویې ویل : بدره! بدره!

په رګونو کې دايمان تودوخه پيدا کوي په وار وار نه پيدا کيږي ، بدر زموږ دقوم مسيحا ؤ ، مګر هغه موږ ددار په تخته وځړاوه ، هغه ددې مره قوم په رګونو کې دژوند دوينې وروستۍ څاڅکې ؤ ، هغه زموږ توره وه چې ماته شوه ، هغه زموږ مې ؤ چې غوڅ شو ، هغه يو لمر ؤ چې ولويد ، او موږ اوس په تيارو کې سرګردان يو .

* * * * *

(۲)

دکلا نه بهر داسونو دپښو ترپهار شو ، منصور بشير ته وکتل او هغه ده په اشاره وپوهيده بهر ته ووت.

منصور موسى ته وويل : ته ستومانه يې راځه دننه کښينو .

موسى له څه ويلو پرته له منصور سره روان شو ، ده بړو په زينو پاسنى پوړ ته وختل او يوې کوټې ته ننوتل ، دننه شمې بلې وې ، دمنصور په اشاره موسى په يوه کرسۍ کښيناست ، منصور هغه ته نژدې په بله کرسۍ کښيناست ويې ويل: که تقدير يوه معجزه کولى شي نو بله هم کولى شي . موږ ستاله ژونده نا اميده وو نن چې کله موږ ته ستا دراتګ خبر راغى نوموږ داسې ګڼله چې زموږ خلکو اشتباه کړې خو ايا دا امکان نه لرى چې څه ور موږ ته موسى بيا را پيدا شو ، همدغسې تاته بدر را پيدا شي ؟ ايا ستا په شان هغه هم غلې کيداى نه شي ؟ موسى لږ اميد وار شو منصور ته يې وکتل خو بيرته مايوس شو ويې ويل : حالاتو له تانه هم زما په څير شاعر جوړ کړى ، مايوسي له هرسړي نه شاعر جوړوي.ما تولة لاره زړه ته همدا دروغ تسلې ورکوله چې بدر بن مغيره ژوندى دى، امکان لرى هغه سړى چې ابو عبد الله وواژه بل څوك وى امکان لرى هغه دوژل کيدو پرځاى زما په څير بندى وى ، او ستا په دسترخوان له کښيناستلو وروسته هم زما سترګې ددروازې په لورې وى ، زه دتقدير دمعجزې په انتظار وم

ما دځه ویلو پرځای له تاسو نه دځه اوریدو انتظار کاوه ، منصوره ! زه دژوند او مرګ له مفهوم سره نا بلد نه یم ، دمرو یادونو زه هیڅکله نه یم ځورولی ، په خوب کې هم ما زیاتره دوی ددې دنیا پر ځای په هغه دنیا کې لیدلی دی ، زموږ ددوستی موده ډیره لنده وه خو پردې سر بیره زه دا احساسوم چې هغه پر دې نړیه ماته ډیر زیات را نژدې ؤ ، بلکې هغه زما دوجود یوه برخه ؤ.

ددروازې نه بهر دچا دپښو غږ واوریدل شو ، دمنصور په شونډو یوه معنی داره موسکا خپره شوه وبی ویل : ته له بدر بن مغیره سره اوس لیدل غواړې؟

دیوې شیبې لپاره موسی هك حیران شو او منصور ته یی کتل ، بهر دپښو غږ زیات شو هغه دروازې ته وکتل او نا څاپه یې ټول حواس سترګو ته راټول شول ، بدر بن مغیره له سره تر پښو په اوسپنو پوښلی دده په مخ کې ولاړ ؤ.

یوه‌شیبه موسی بې حرکته په کرسۍ ناست ؤ . ورو ورو یې دزړه درزا زیاته شوه ، شونډې یې ورپیدې او په چیغو شو : بدره ! بدره !

بدر یو ګام را وړاندې شو لاس یی وغوړول او موسی ورجګ شو دواړه غیږ په غیږ شول ، موسی ویل : بدره ته ژوندۍ یی ، زما زړه ماته هیڅکله هم دوکه نه ده راکړی ، زما دوسته ،زما ملګریه ، زما متره !

دبدر په سترګو کې اوښکې راغلې وې خو هغه چوپ ؤ . او کله چې دوی دواړه یو بل ته مخامخ کښیناستل موسی منصور ته وکتل وبې ویل : تاسو دواړه ډیر ظالمان یاست ، تاسو له دې ځایه تر راتګ وړاندې ولې راته ونه ویل .

منصور ځواب ورکړ : ایا ته دا ګومان کوې چې له دومره ډیر ورکیدو وروسته ته دځه سزا مستحق نه وې ؟

له بدر نه وروښته هغه ستاپه باب ځومره نا کرار ؤ ، بیا هم زموږ دا نیت نه ؤ چې تا پریشانه کړو، بدر اوس له بهر نه راغیٔ ، که موږ تاته ویلی وای د انتظار شیبې به دریاندې سختې شوې وای.

بیا همغه کوټې ته ولاړل او تر ډیره یې خبرې سره کولې . موسی د اوږده مزله نه وروسته هلته ورغلی ؤ او بدر هم دیوې لرې پهرې نه تر هغې کلا پورې درې ځله اسونه بدل کړي وو، خو ددې ناڅاپي لیدو نه وروسته له یوه سره هم دستوماني او خوب احساس نه ؤ دواړو خپل خپل سرګذشت واوراوه له هغه وروسته دحال او راتلونکې په باب بحث شروع شو ،

موسی له ابو محسن نه دخوړوښتنو نه وروسته وویل : زه له خوشی کیدو وروسته دیوه سوداګر په جامه کې غرناطې ته ولاړم ، هلته مې یوازې دوه ورځې تیرې کړې ، په دې دوو ورځو کې ماته دا معلومه شوه چې هغوی به دذلت له مرګه دخلاصون لپاره له مور سره ملا تړې دفردیناند په باب اوس له چاسره څه غلط فهمي نشته له نورو ښارونو نه نژدې غلور لکه تنه مهاجر غرناطې ته راغلي دي او دهغوی د مظلومیت داستانونه یې چې اوریدلي دغرناطې هر اوسیدونکي په دې باوري شوی چې که ابو عبد الله دفردیناند لښکرو ته دغرناطې دروازې خلاصې کړې نو ددوی انجام به هم دمالقې اونورو ښارونو دمسلمانانو سره توپیر نه لري.

درضاکارو دلې دښار په دروازه پهرې کولې ، دالحمرا په دروازه کې شپه او ورځ دابو عبد الله پر خلاف مظاهرې وې ، زما باور دی چې که ابو عبد الله دخلکو داحساساتو قدر ونه کړ نو پوځ به له اولس سره یو ځای شي ، دغدارانو دلګۍ هم دا احساس کړی چې دوی به خپل محل دفردیناند پوځونو ته تشوي ، پخوا هغوی ګومان کاوه چې دفردیناند تر سر پرستی لاندې به دابو عبد الله په پاچهی کې اولس په دواړو لاسونو لوټ کړي ، خو اوس هغوی په دې ویره کې دي چې که غرناطې ته دفردیناند لښکرې ننوتې نو دوی به له ځانونو نه له خطر ناکو داکوګانو او لوټمارو سره لاس اوګریوان وي . دطریف یوه ملګري دهغه وروستي

موسى تکان وخوړ ويې ويل : که دا ربښتيا وي نو زما زرتر زره غرناطې ته رسيدل ضروري دي .

بدر بن مغيره وويل : زه دا گومان کوم چې تر اوسه پورې دغرناطې د خلکو په اړه خوشباوره يې.

موسى وويل : کله چې ما گومان کاوه چې دغرناطې خلک به دعزت دژوند په خاطر زموږ ملا تړ وکړي دا زموږ نيک گومان و ، مگرمقوي اوس دذلت له مرگه څان ژغوري او زما باور دى چې دهغوي په وړاندې له مرگه پرته بله لاره نه وي نو دذلت پر مرگ به دعزت مرگ غوره گڼي ، دا به دفرديناندپر خلاف زموږ لومړنى جگړه وي چې دغرناطې پخوانۍ غداران به هم زموږ ملا تړ کوي.

بدر بن مغيره وويل : او ددې سپيڅلي جهاد لپاره اوس ته بيا دابو عبد الله په مقدس لاس بيعت کوې ؟

موسى انديښمن شو ويې ويل : زه دابو عبد الله لپاره نه دغرناطې لپاره تاته راغلى يم ، کيداى شي دغرناطې په باب زه په غلط فهمۍ مبتلا وم خو ستا په باب داسې نه ده ، که زه دلته نه واى راغلى هم ته به دغرناطې دخلکو ملاتړ ته راتلې .

بدر بن مغيره دخو شيبو لپاره چوپ شو او بيا جگ شو دکړکۍ خواته ولاړ بهر ته يې وکتل شايې موسى ته وه .

موسى وويل : بدره ! که زما باور نه واى چې موږ اوس هم دغرناطې دخلور ديوالې دننه دفاع کولى شو نو ما ديوه نوم ورکي مجاهد په توگه ستا په پوځ کې شامليدل غوره گڼل ، خو زما باور دى چې موږ ستا په مرسته دا جگړه گټلى شو ، په غرناطه کې اوس هم تر يو لک تنو پورې سپاهيان را تولیداى شي .

بدر بن مغيره ناڅاپه موسى ته مخ واړاوه او ويې ويل : موسې ! ته پوهيږې

دي ، زما خبرې لرې ترخې دي خو نور دحقيقت ويروونکې څېره دښکلو الفاظو په ښايسته پردو کې دپوښلو هڅې بې ګټې دي .

زه دې منلو ته تيار يم چې دغرناطې اولس خپله غلطي احساس کړې دي . ددوی په زړونو کې ددفاع جذبه را پورته کيږي ، او هغوی ښايي جګړه هم وکړي ، خو له بده بختنه دهغوی امير اوس هم ابو عبد الله دی . چې دهغه دغدارۍ په وجه زموږ شاندارې فتحې په ماتو بدلې شوې ، دغرناطې داولس په اوږو دلاشونو بوج دی دداسې لاشونو چې له نن نه څو کاله وړاندې بايد ښخ شوي وای ، ته وايې چې خلک شپه او ورځ دالحمرا ددروازې په مخه کې مظاهرې کوي ، مګر آيا دهغو مظاهرو هدف دا نه دی چې ابو عبد الله دې له الحمرا را ووزي او ددوی لارښوونه دې وکړي ، زه داسې خلکو په باب څه ووايم چې دجګړې په ډګر دلارښوونې لپاره لاش په اوږو ګرځوي .

موسی ! دالحمرا په جوړولو کې زموږ دپلرونو وينې او خولې تويې شوې ، خو اوس يې ديوالونه ابوعبد الله غوندې غدارانو ته پناه ورکوي ، دخدای «ج» په خاطر دغرناطې خلکو ته ووايه چې دغه ديوالونه وغورځوي ، که دالحمرا دروازې ددوی لاسونه دغدارانو شارګونو ته نه وړپرېږدي نو دادروازې دې ماتې کړي .

که مړيو داقتدار کرسۍ نيولې وي ، نو هغوی له کرسيو سره ښخ کړي .

ته بدګمانه نه شي زموږ تورې دکوم پاچا لپاره له تيکي نه وې را بهر شوي ، له موږ سره دغرناطې دتش په نامه شاهي کورنۍ مينه نشته ، دابو الحسن بلنې ته مو ځکه لبيک ووايه چې هغه ددښمن له غلامۍ نه دقوم دژغورلو عهد کړی ؤ ، موږ دالزغل قومانده په دې خاطر ومنله چې هغه دقوم دآزادۍ لپاره دجګړې ډګر ته کوز شو ، خو زموږ دناکامۍ يوازينی دليل دا ؤ چې هغوی دجګړې ميدان ته تر دانګلو دمخه په غرناطه کې دمنافقينو څپل ضروري ونه بلل ، الزغل ته موکه په لاس ورغله خو هغه ددې پر ځای چې خپل وراره به دار وځوروي هغه يې دلوشه

بلنې ته راغلي وي نوله دې ځایه به مایوس بیرته نه ستنیږي ، خو آیا ددومره پیښو نه وروسته بیا هم ضروري ده چې موږ دابو عبد الله او دهغه دملګرو تابوتونه په اوږو واخلو ؟ ته داده اوسه موږ دسیلاب په وړاندې دسترګې پټوونکو له ډلې نه یو ، خو دخځلو پر بیړۍ تر سپړیدو نه غوره ګڼو چې په خپلو متو باوري وو موږ دشګو دبندونو شاته په پناه اخستلو ځان ته دوکه نه ورکوو ، ته وایې چې ابو عبد الله او دهغه ملګري چې خپلې ګټې په خطر کې وینې نو داولس سره به ملګري شي ، خو ددي ضمانت له چاسره دي چې سبا ته فردیناند ده ته داډ ورکړي چې ستاګټو ته خطرنشته ، ته کولی شې داولس وینې وزبیښې او دهرڅه درته اجازه ده نو دی به بیرته له قوم نه مخ نه اړوي ؟

ترکومه چې دغه خلك ژوندي دي دغرناطې ژوند ته خطر دی ، او زه ددوي ددې غیر طبیعي ژوند اوږدوالی نه غواړم ، ما چې څه ویل غوښتل ومې ویل، که پردې سربیره ته ماته څه امر کوې زه او زما ملګري تیار یو .

بدر بن مغیره په خپله کرسۍ کښیناست ، موسی تر څه وخته سرپه زنګون په چرتونو کې ډوب ؤ ، بالاخره یې وویل :

تاته معلومه شوې ده چې فردیناند په غرناطه حمله کوي .او خدای «ج» شاهد دی چې اوس زما سره داندلس دمسلمانانو دوروستی کلا ددفاع سوچ دی ، له موږ سره اوس دابو عبد الله په اړه د سوچ وخت نشته ، چې مناسب وخت راغی له ټولو غدارانو سره به حساب کوو ، ایا ته ګومان کوې چې زما په زړه کې به دهغوی په باب درحم څه جذبات وي ، چې ددوي له لاسه زموږ دقوم دډیرو لوڼو عصمتونه تار تار شو ل، مګر اوس یوې خواته زموږ پر سر دښمن ولاړ دی او پر سینه یې نیزې راته نیغې نیولې او بل لوري ته دا مجرمین دي . که موږددوي په لورې پام واړاوه ددښمن واربه تش نه ځي ، که خدای «ج» مه کړه فردیناند غرناطه فتحه کړه نو موږ به دتل لپاره له منځه ولاړ شو ، بدره ! زما په مخکې

مايوس شوم نو داسې به ګنم چې دغرناطې پر ځای دا غر او ځنګل زموږ وروستي مورچل دی ، زه به تاته راځم او زما سره به هغه خلك وی چې تروروستي سلګۍ له دښمن سره مقابلې او جګړې ته تيار وی.

بدر وويل : داتاته معلومه ده چې کله ستا توره ددښمن پر خلاف له تيکی راوتلې وی نوزموږ تورې په تيکو کې دننه نشی پاتې کيدای که دغرناطې اولس له دښمن سره تر وروستۍ سلګۍ دجګړې پريکړه کړې وې تا سو هغوی دلته مه راولی ، هغوی دې يوازې دمايوسی په حالت کې دلته راځی او دا ځای دمايوسو خلکو نه دی اونه مايوسو ته پکې دهستوګنې ځای شته ، که دوی پر خپل ځای مقاومت وکړی نو نه يوازی موږ بلکې دنړۍ له هر ګوټ نه به ورسره مرسته وشی ، دابو عبد الله او دهغه دملګرو په باب يو ځل بيا وايم که حالاتو تاته دهغه پرخلاف دزرترزره اقدام اجازه نه درکوله هم دهغه څارنه به په غور کوی.

موسی وويل : که ستا اعتراض نه وی ابو محسن زه له ځانه سره بيايم ؟

بدر : زما څه اعتراض نشته ، که ته له هغه پرته له موږنه بل څوك درسره بيايې هم موږ تيار يو .

دسهار له لمانځه نه وروسته بدر بن مغيره او دهغه ملګرو موسی او ابو محسن ته مخه ښه ويله.

*****

(٤)

فرديناند غرناطه کلابنده کړی وه. د هغه بې شميره پوځ په وار وار پر غرناطه يرغل وروړ، خو هر ځل د غشو په باران کې پر شا راتلو ته اړ شول. بيا هم فرديناند او د هغه لښکر د برې په نيشه مست وو او د معمولي زيانونو پروايی نه کوله. د ښار کلابندی ته يی دوام ورکړ، د شاوخوا کليو خلکو چې د نصرانيانو د حملې خبر واورید په ښار کې يې پناه واخستله، د فرديناند لښکرو د هغوی

احساساتو دا حالت ؤ چې دوه لوي سرداران يې د فرديناند د جاسوسانو په جرم اعدام کړل.

فرديناند داده ؤ چې په ښار کې د غذايي موادو د خلاصيدو نه وروسته به خلك پخپله وسلی کيږدی. مگر يوه ورځ له لرختلونه وړاندې چې د فرديناند لښکر نوي له خوبه راويښيده د غرناطې تولي دروازې خلاصې شوې او مسلمانانو پر هغوی حمله وکړه. دا حمله د فرديناند د اټکل پر خلاف وه.

د سترگو په رپ کې څلور زره نصرانيان ووژل شول ، په دې څنډ کې دفرديناند غشي ويشتونکی په کنډو کې تم شول او سنگرونه يې ونيول او پلی او سپاره پوځ يې د منظم کيدو موکه ومونده ، موسی د زر تنو سربښندويانو سره د ښار د لويديځې دروازې نه راووت او په نصرانيانو يې حمله وکړه، د دښمن ډير صفونه يې وځپل او دغشو ويشتونکو لومړی مورچلونه يې ونيول.

له لويديځې دروازې نه ابوعبدالله راووت او د دښمن پوځ پر دې اعتراف مجبور شو چې د غرناطې لاس کښينولی پاچا په نيزه وهلو او توره چلولو کې تر اوسه د. خپلو پلرونو روايات نه دی هير کړی.

تر ماسپښين پورې د فرديناند لښکر په هر محاذ کې په شا روان ؤ. خو قضا ماسپښين يې د وروستی کنډې له شانه سپور او پلی پوځ تنظيم کړ، او د غرناطې د حمله راوړونکو لپاره نور وړاندې تگ ممکن نه ؤ. د دواړو لوريو تر منځ د يوه غشي دالوت فاصله وه. د ابوموسی سره د پلی پوځ کمی نه ؤ. خو هغه د عامې حملې امر ورنه کړ، د هغه غشي ويشتونکو د ښار په دفاعی کربښه مورچې مزبوتی کړې وې. د سپرو وړو وړو ډلگيو به يی حمله کوله او پر دښمن به له کاری گوزارنه وروسته بيرته شاته راگرځيدل. فرديناند د درانده زيان ليدو سره سره پر دې حالت ډير پريشانه نه ؤ. هغه پر دې باوری ؤ چې لوږې مسلمانان له ښار نه راوتلو او حملی ته مجبور کړی دی په دوو دری ورځو کې به د هغوی پاتې

حمله کوي، تجربه کار خلك ددې حملې له نتیجې نه واده نه وو. بلکې هغوی دا حمله ځان وژنه بلله، د دښمن دغشو ویشتونکو په مورچلونو نیغه حمله ډېره خطرناکه وه پردې سربېره د فردیناند د سپرو شمېر ترموسی اته چنده زیات ؤ، او پلې پوځ چې موسی ډېره تکیه پر هغو درلوده په دې حمله کې چندان رول نشو لوبولی. خو د اولس پر موسی اعتماد ؤ، او دوی دده په اشاره اورته ورغورځېدو ته هم چمتو وو.

موسی پوځی سردارانو ته له لارښوونې وروسته د ښار په دروازه ننوت له آس نه پلی شو، په برج وخوت په وار وار د هرې دروازې په برجونو راوګرځېد بیایی افق ته وکتل، اوږدو سیوررو یې مایوسی زیاته کړه، هغه به له یوه برج نه په منهه کوز شو په بل به ورخوت او په دروازه کې به یې پوښتل: تر اوسه دې څه تر نظر نه دی راغلی؟ او چې کله به پهره دار منفي ځواب ورکړ نو د واړ لپاره به یې پخپله په افق سترګې مېخ شوې.

بل لوری ته فردیناند د قسطلي پاپ ته ویل: سپېڅلۍ پلاره ته دعا وکړه چې دښمن پر موږ حمله ونه ځنډوی ، که ستا دعا قبوله شوه نو دا جګړه به هم نن پای ته رسېږی. او پاپ به د سپېڅلی مریم د بوت په وړاندې په ګونډو شو او په دعا به یې پیل وکړ.

موسی چې دریم ځل د ښار د دروازې په برج ورخوت له پاسه پهره دار غږ پرې وکړ: په افق ګردونه راښکاره شول لکه چې کوم پوځ را روان دی.

موسی په منهه برج ته ځان ورساوه. افق ته یې وکتل او چیغه یې کړه: هغوی راغلل! هغوی راغلل. زموږ شاهین راورسید.نن خدای (ج) موږ ته بری راکړ.

اوچې کله دګردونو له منځه سپاره پوځیان راووتل نو د موسی په سترګو کې د احسان اوښکې ډنډ شوې له برج نه یې لاندې وکتل او په زوره یې ویل:

بیدار اوسی!

د دوبیدونکی لمر وروستی نظر د هلال او صلیب د علمبردارانو ترمنځ د یوی بلې معرکې ننداره کوله، دغرناطې لښکر د غشو په بلران کې پر مخ روان ؤ. فردیناند خپلو سپروته د حملې امر وکړ او سخته جګړه ونښته

* * * * *

(۵)

موسی، ابوعبدالله او ابو محسن د ښار د درې لوریو ته د سپرو پوځونو لاربنوونه کوله پلی پوځ دغشی ویشتونکو پر مورچلو یرغل وروړ. موسی د شمالی دروازې له لورې د دښمن صفونه تار او مار کړل او وراندې ولاړ، فردیناند آس ور وراندې کړ او پوځ ته یې امروکړ ددې ډلګۍ یو تن هم بېرته روغ ښار ته د ننه مه پرېږدئ. تعقیبوی یې مه پخپله راګرځئ، موسی له پنځه سوه تنو سپرو سره په یوه ګړ ېن تنوت او ورك شو، د فردیناند غشی ویشتونکی د دوی د بیرته راستنیدو په انتظار شول، خو موسی د ښار بل لوری ته ددې پوځ شاته ووت. له دې سره له شمال ته یو نوی پوځ راښکاره شو، هغه پوځ چې له موسی او ابو محسن نه پرته هیڅوك پرې خبر نه وو.

د شاهین غازیان د غرناطې د خلکو مرستې ته رارسیدلي وو، بدر بن مغیره د درې زره پوځ سره له شانه پر دښمن حمله وکړه او د سترګو په رپ کې یې د دیتمن صفونه تر پښو لاندې کړل.

فردیناند وارخطا شو پوځ ته یې ښې لوري ته د شاتګ قومانده ورکړه. خو په دې موده کې موسی له شانه حمله وکړه، اوس د فردیناند د لښکر مخی ته د بدر بن مغیره پوځ او له شانه د موسی سربښندونکی وو، دریم اړخ ته د فردیناند لښکر د ابوعبدالله سپاره په شاتګ ته مجبور کړی وو، خو دلته هم نصرانیان له یو ناڅاپی مصیبت سره مخ شول، د دوی ترشا ناڅاپه دوه زره تنه پوځ راښکاره شو. او د ماښام په خړه کې دوی ګومان کاوه چې مرستندوی پوځ یې راورسید. خو کله چې هغوی د الله اکبر نعری اوچتی کړی او حمله یې وکړه نو نصرانیانو په ډیره

ابو محسن تر مشرۍ لاندې ؤ.

بوازې يوه لور ته چې د ښار په څنډه کې سيند بهيده آرام ؤ. د سپوږمۍ ۱۴مه وه او د شپې هم په جګړه کې هيڅ کمی رانه غی، د دښمن پوځ ورو ورو شاته روان ؤ. او د ابو موسی په مشرۍ د ګوتو په شمير پوځ د دوی د لارې ترلو لپاره کافي ؤ.

منصور په آس يو اوږد چکر وواهه د دښمن تر پوځ راوګرځيد او موسی ته ورغی هغه ته يې ووېل ته دې زر تر زره پوځيان له دې ځايه اوچت کړه.

موسی ووېل: مګر زما په ګومان خو دا ښه وه چې زه ددې ځای د پرېښودلو پر ځای د خپل پوځ يوه برخه دلته راولم، هغوی په ښی او يا کيڼ لور په يوه اوږده دايروي چکر دلته رارسيدلی شی. که موږ پر دوی فشار راوړو نو د ښار د ديوالونو په لوری يې ورتلو ته تيار ولی شو، هلته به ټول زموږ د عسکرو تر غشو لاندې وی.

منصور: مګر که هغوی ښارته ننوزی نو بیا ؟

موسی: ما د دروازو د ترلو امر ورکړی دی.

ستا دا تجويز بد نه دی خو پلیٔ پوځ ډير زر شاته نشو راوستلی، د دښمن د سپرو شمير له موږ نه ډير زيات دی که هغوی ښی او يا کيڼ لوری ته د وتلو اراده وکړی موږ يې له ډير درانه ځانی تاوان ګاللو نه پرته مخه نشو نيولی. دا د بحث وخت نه دی. که ځنډوکړی نو زه ويريږم چې دښمن زموږ په يوه مهم چال باندې پوه شی.

موسی ووېل: ډير ښه که ستا له وړانديز سره د بدر هم توافق وی نو زه ددې ځای نه د پوځ په لرې کولو اعتراض نه لرم.

منصور: زه او هغه په يو دماغ سوچ کوو. ته دا محاذ پرېږده بل لوری ته ځان ورسوه مګر ډير زر که نه نو دښمن به بيدار شی، ته لږ شاته ولاړ شه او بيا دښمن ته د شاتګ لاره پرېږده. جګړه پرېکنده پړاو ته ننوتې وه. نصرانيان له دری لوريو نه تر فشار لاندې وو او شاته تلل. دا حالت چې فرديناند وليد خپلو تازه نفسه

ګروپونو زياته برخه د جګړې په ليکو ورګډ شوي وو، د فرديناند پاتې سپايانو د غذايي موادو او جبه خانې د ساتنې هڅه وکړه خو ګړندي سپاره له يوې خوا په پړاو ورننوتل، خيموته يې اور واچاوه، او بل لوري ته ووتل. ساتونکي لا نه وو سمبال شوي چې يوه بل ګروپ حمله راوړه، په يوه خيمه کې د قسطلې پاپ او ورسره ۳۰ تنه راهبان د سپيڅلې مريم بوت ته په ګونډو وو او د صليب د برې دعاګانې يې کولې، پهرې پهره دارانو چيغې پيل کړې: سپيڅلې پلاره ! خيمې اور اخستي، د خيمونه پرته د وچې پرورې يوې لويې ذخيرې اور واخيست او لمبو يې آن د جګړې ميدان روښانه کړ. د نصراني پوځ سپاهيانو د سالارانو او سردارانو يې د لويو سالارانو له حکم نه پرته د خيمو اورته متوجه شول او په همدې مهال د بدر غازيان پرې ورپريوتل.

مات شوی پوځ ته په خپل پړاو کې په اور کې دراښکيلو خيمو په منځ کې د پناه ځای نه ؤ. د اور د لمبو په رڼا کې د بدر سپاهيان ورپسې وو او يو يو به يې واژه. وارخطا او ترهيدلي آسونه به د خيمو په پړيو نښتل او راغورځېدل. فرديناند د ماتې او شکست نغاره وکړنګوله. او پاتې پوځ يې د سوځيدو په حال کې خيمې پرېښودې او وتښتيدل. موسی پلې پوځ ته د غذايي ذخيرې د ساتنې او سپرو ته د دښمن د تعقيبولو امر وکړ بدر بن مغيره او منصور بن احمد له ښي او کيڼ لوري دښمن تر ګوزارونو لاندې راوستي ؤ او د غرناطې سپاهيانو له شانه تعقيبول ، د فرديناند لښکر ته يوازې مخامخ لاره خلاصه وه.

تر درې ميله پورې د دښمن د تعقيب نه وروستم بدر موسی ته ورنږدې شو په لوړ آواز يې وويل: دلته لږ وړاندې يو خوړ دی پوځ دې ودروه دښمن زموږ تر وروستي ګوزار لاندې دی.

غشي ويشتونکي سپاره دې راوړاندې کړه. دښمن به ډېر ژر بيرته راوګرځي.

موسی پوځ ته د دريدو حکم وکړ . هغه په دې پوهيده چې د غرناطې خلك د کوم مصلحت له مخې له خپل پلان نه نه خبروي هغه پر دې هم پوهيده چې د خوړ په غاړه به د بدر غشي د دښمن لپاره څومره خطرناك وي.

د قسطلې لښکر د لومړي ځل لپاره احساس کړه چې د خوړ بلې غاړې ته بل مصیبت ورته سترګې پر لار دی. خو فردیناند ته د سوچ کولو فرصت نه ؤ، پوځ ته یې د خوړ نه د پورې وتلو امر وکړ، د خوړ سوړ او اوبه ډېرې نه وې، اوبه دسپرو تر رکابونو پورې رسیدلې . خو د خوړ څنډې جګې وې اوارې نه وې.
کله چې د آسونو لومړۍ کتار په اوبو ورګډ شول، د بهیدونکو اوبو تت غږ ناڅاپه د یوې هنګامې حالت غوره کړ، له بلې غاړې نه د الله اکبر نارې اوچتې شوې او ورسره سم د ونو له منځه دغشو باران پیل شو. سپاره ټپي کیدل او په اوبو کې غورځېدل او ترهیدلي اسونه په یوه او بله خوا تښتیدل. د قسطلې پر لښکر یو ځل بیا قیامت راکوز شو، پاتې پوځ چې لا په خوړ نه وو ورګډ شوی بیرته یې د آسونو جلبونه وګرځول او شاته ولاړل ، په خوړ کې چې څوك ژوندي پاتې وو، هغوی هم د شاته تلو اراده وکړه خو له ښۍ او کیڼ لوري د بدر غازیان وروړسیدل دوی چې شاته وتښتیدل د موسی د غشي ویشتونکو له حملې سره مخ شول.

د فردیناند لښکر د بدر، منصور بن احمد او موسی د سپاهیانو تر بشپړې قبضې لاندې ؤ له هرې خوا پرې د غشو باران جوړ شو، فردیناند مجبور شو بیرته یې د خوړ په لوري د حرکت قومانده ورکړه، خو د غرناطې او بدر سپاهیانو هغوی تر ګوزارونو لاندې نیولې وو، بالاخره فردیناند د خوړ په غاړه د غشو په باران کې د سیند لاره ونیوله او دا د فردیناند د ژوند تر ټولو سخته ماته وه. د هغه پوځ بالاخره د غشو په باران کې ګډ مات د سیند غاړې ته ورسید، او پر سیند یې آسونه ور وړاندې کړل، له شانه د تازه نفسه پوځونو لخوا د غشو تر باران لاندې وو.

تر سیند پورې د فردیناند بې شمیره آسونو د خپل سپاره له بار نه شاسپکه کړې وه، مجاهدینو په تورو له هغوی نه سرونه وهل، له جګړې نه یې متې شلې شوې وې خو د برې نښې یو له بل نه مخکې کولوته هڅول ، بدر بن مغیره خپل

ورننژدې شو ورته وې ویل: ستا زړور توب د ستاینې وړ دی خو داسې د دښمن منځ ته ور ننوتلو ته ضرورت نشته.

لږ څند وروسته چې د بدر سترګې یو ځل بیا د غرناطې په سپاهې ولګیدې هغه بې سیکه ؤ او په زین یې ور خولم شوی ؤ.

بدر آس ور وړاندې کړ ویې ویل: ته ټپي یې، د سپاره له لاسه توره وغورځیده ، او سرېې په زین کیښود، بدر د هغه تر ملا لاس چاپیر کړ او په خپل آس یې ورسره سپور کړ، نیمه شپه د فردیناند ګودمات پوځ له سیند نه پورې ووت.

*****

(٦)

له دې لویې فتحې وروسته موسی له آس نه ښکته شو او تر ډیره پروردګارته په سجده پریوت، د هغه له خولې په وار وار همدا دعا جاري وه: ای بخښونکیه او مهربانه خدایه! موږ ددی وړنه وو، دا بری ستا انعام او ستا رحمت دی.

بیا جګ شو خپلو ملګروته یې وکتل بدر څو ګامه وړاندې بشیر بن حسن ته چیغې وهلې. موسی ورمنډه کړه د هغه د آس قبضه یې ونیوه او د هغه په لاسو یې شونډې کیښودې ویې ویل: بدره ! خپل خول لرې کړه د غرناطې اولس د هغه پربتې لیدوته ناکرار دی چې له ځانه سره یې د خدای سل رحمتونه راوړی دی.

بدر ځواب ورکړ: اوس یوازې هغه څیری د لیدو وړ دی چې په تندې یې د شهامت وینې ځلیږي. له دې برې وروسته زه د ځان په ښکارولو اعتراض نه لرم. مګر تر اوسه د خلکو پام زما په لوری مه راړوه، د فردیناند پلې پوځ تر اوسه په سیمه کې خور دی. موږ باید هغوی ته د وتلو اجازه ورنکړو.

بدر دا وویل او بیایی نقاب پورته کړ.

موسی وویل: انشاء الله په هغوی کې به ډیر لږ په بیرته تیښته بریالی شی. زه غواړم چې آسونه مو لږ دمه شی.

موسی تکان وخوړ ویې ویل: بشیر چیرته دی؟

بدر: ما د خوړ په بله غاړه ستا د پوځ یو سپاهی پریښی ؤ بشیر می د هغه د تپ د پټی لپاره واستاوه، د هغه سپین آس ډیر ښکلی ؤ. له جامونه هم ستا د پوځ کوم لوی افسر ښکاریدو. هغه زړور ؤ خو ډیر زیات احساساتی ؤ. زه د هغه لیدل غواړم زما په گومان ډیر زیات تپی ؤ. یو سپور راوړاندی شو موسی ته یی وویل: د پاچا درك نشته، څینو خلکو د هغه آس یوازې لیدلی.

د بدر په څیره کې د خفگان نخښی رابرسیره شوې ویې ویل: زما گومان ؤ چې د غرناطې پوځ به د لاشونو له بوج نه ځانونه خلاص کړی وی. زه په دې ویریږم چې که له پاڼا نه مو مطلب ابوعبدالله وی بیرته غرناطې ته ولاړ نه شی او یو ځل بیا سپاهیانو ته د غرناطې دروازې بندې نه کړی.

منصور وویل: ما هغه ولید، خو ته به حیران شی که درته ووایم چې ما بې اختیاره دوه درې ځلی پرې آفرین ووایه. کله چې ابو محسن راته وویل چې دا ابو عبدالله دی نو زما باور نه کیده.

موسی وویل : ما تر ښاره دی د جگړی په ډگر بی ضرره گانه څکه می راوست.

بدر څه ویل غوښتل چې بشیر په اس سپور راغئ په مخکې یې ودرید او ویی ویل:

هغه تپی ستا لیدوته ناکراره دی.

بدر وویل: د هغه وضعه څنگه ده؟

بشیر : په پوښتیو کې تپي دی خو که د خدای (ج) رضا وه روغ به شی.

* * * * *

(۷)

تپی د زیتون د یوی ونې تنې ته ډډه وهلی وه، څو تنه سپاهیان یی شاوخواته ولاړ وو، بدر بن مغیره او د هغه ملگری یی چې ولیدل سپاهیان

حق لري چې ماته ډیره بده سزا وټاکي.

بدر چوپ ولاړ ؤ او هغه ته یې کتل، د هغه په مخکې ابو عبدالله ؤ. هغه ابو عبدالله چې د وطن پلورنې داستان یې د هر مجاهد په زړه ثبت ؤ. چې هیرول او بخښل یې د بدر بن مغیره د وس خبره نه وه.

بدر په خپل زړه کې ویل: کاشکي ما ددې خوښې په شیبو کې ستا څیره نه لیدلای.

موسی، بشیر، منصور او ابومحسن د بدر شاته ولاړ وو او چوپه یې یو بل ته کتل، د بدر بن مغیره له څیرې نه د هغه د احساساتو پته لګول ګران وو.

ابوعبدالله ناڅاپه اوچت شو او زنګیدلی زنګیدلی یو ګام بدر ته ورنژدې شو هغه ته یې وکتل له شونډونه یې دردناك غږ اوچت شو: ته ما ژلی نه وژنې! زما د ګناهونو بار نور زما له زغم نه اوچت شوی دی.

د ابوعبدالله له سترګونه اوښکې تویې شوې. بدر بن مغیره د یوه ګرنګ په څیر ولاړ ؤ. ابوعبدالله بیا وویل: ما د ژوند له عذابه ځان بې غمه کړی ؤ، د دښمن اسونو تر پښو لاندې غوبل کولم، مګر تا په ما ظلم وکړ. د خدای (ج) په خاطر ما ووژنه ! دې ځمکې ته نور زما بوج له زغم نه وتلی دی. هغه ژړل.

د بدر بن مغیره په زړه کې د ابو عبدالله غوندې غدار لپاره د رحم هیڅ ځای نه ؤ خو هغه د بې پایه غوسې په حالت کې هم په لویدلی غلیم ګوزار نه کاوه ویې ویل: ابوعبدالله ! ستا اوښکې په ما اثر نه لري. مګر ستا پر څپنه د وینو خاپونه دي، د جګړې په ډګر ستا وینه د شهیدانو له وینې سره ګډه شوې، زه په تا لاس نشم پورته کولی، تر کومه چې زما ذاتي معامله ده زه تا معاف کوم، خو د اولس مجرم یوازې اولس بخښلی شي. زه پر دې هم پوهیږم چې د غرناطې اولس د حماقت تر حده سخاوت لري. د داسې ساده

وینو لمبیدلې ده، او ستا د وینو څو څاڅکي بنايي ستا د تېرو ګناهونو داغونه ومینځي. د ابوعبدالله صبر ځواب ورکړ جګ شو او توکرې وخوړ په ونه یې ځان تکیه کړ وېې ویل: ته ډېر سخي یې خوږه پوهېږم چې د سمندر ټولې اوبه هم زما د ګناهونو داغونه نشي پاکولی، کاشکې تازه د مرګ له منګولو نه نه وای ژغورلی. بیا بې سیکه شو سترګې یې پټې کړې د غورځیدو په حال کې ؤ چې بشیر ور ورانګي شو تکیه یې ورکړه او ورو یې پر ځمکه څملاوه.

بدر بن مغیره د آس په رکاب پښه کیښوده وېې ویل: بشیره ده ساتنه او پټي ستا ذمه واري ده، زموږ ډېر کار لا پاتې دی. موسی ابو محسن او منصور هم په خپل خپل آس پښې واړولې.

د غرناطې پلې پوځ چې د سپرونه شاته پاتې شوی ؤ ډېر ګډ وډ او تیت پرک شوی ؤ، د بدر او غرناطې سپاره ور پسې شول او یو یو یې له تیغه تیرول، کومو پوځیانو چې په باغونو او ځنګلونو کې د پټیدو هڅه کوله، پلې پوځ پسې ورغې، پر دښمن د وروستي ګوزار لپاره بوداګان او تنکي هلکان هم راوتلي وو. د لمر ختلو نه ورانګي میدان بلکل صاف شو، ګام په ګام د دښمن د مړیو تنې پرتې وې د بندیانو شمیر د پنځو زرو تنو په شاوخوا کې ؤ، او د مړو شمیر ددې له څلور چنده نه زیات ؤ.

*****

(۸)

بریالي لښکر د «زونیل» د سیند په غاړه د سهار لمونځ ادا کړ د موسی په اصرار بدر د لمانځه امامت وکړ. له لمانځه نه وروسته یې لنډه دعا وکړه چې:

ای د سزا او جزا مالکه! موږ ته د خپلو پلرونو ایمان راکړه زموږ سرونه دې ستانه پرته بل چاته تیت نه شي. او زموږ په زړونو کې ستا نه پرته د بل چا ویره مه اچوه. موږ ته ستا د عبادت په خاطر د ژوند توفیق راکړه او د

د شکرانې په جذبو ډك وو بدر بن مغيره وويل:

زما درنو ملګرو او ورونو ! دغه شانداربرئ مو مبارك شه خو ګوری داسی ونه ګڼئ چې تاسو په راتلونکی کې له جګړی او خطر نه بچ یاست. تاسو دښمن يوازې د غرناطې له څلورو ديوالونو نه شړلئ دئ ، خو ستاسو د هيواد زياته برخه اوس هم د هغوی په واګی کې ده او ددې له لاسه ورکړې خاورې له بيرته ترلاسه کولو وروسته هم ستاسو دنده سر ته نه رسيږی. تر څو تاسو په ټول اندلس حاکميت و نه لرئ، تاسو به داړ منه ساه وانه خلئ. که تاسو له دی بری وروسته بيا ويده شوی نو په ياد ولرئ چې پروردګار ويده په وار وارنه را پاڅوی. تر څو چې هغه په کوم اولس کې د ژوند علامې وينی نو په وار وار يی څو څوی او جتکې ورکوی کله چې بيا د ژوند علامې تتې شی ورو ورو يی دمرګ په خوب ويده کوی. د اندلس مسلمانان ستاسو د هغو واکمنو د اعمالو سزاګالی چې ددې ستر سلطنت زياتی برخی يی دښمن ته له سپارلو وروسته يوه لويښت ځمکه ځانته بس وبلله او په آرام خوب ويده شول.

پيړی پيړی د اندلس مظلومو مسلمانانو ددی انتظار کاوه چې له غرناطې نه به د هغوی ورونه د دوی د مرستې لپاره راځی خو تاسی خوبونه کول، په اندلس کی ستاسو ورونه د ظلم په ميچن دل کيدل. د وحشت او بربريت لاسونو ستاسو د قوم د لونو عصمتونه تار په تار کړل خو تاسو خوبونه کول، ستاسو غيرت راوينې نه شو. د هغوی له خولی فريادونه وتل ، د هغوی له سترګو اوښکې بهيدې ، خو ستاسو هيڅ پروانه وه، او د خوښی په نغمو مو زړونه خوښ ساتل.

ابوالحسن د خپلو پلرونو د غفلتونو د جبران لپاره اوچت شو ، خو د رباب دخوږو نغمو خوب وړونو د تورو شرنګهار ښه ونه لګيده، او تاسو د هغه مجاهد ميړه لاسونه وروتړل.

دکوې او ترې پورې وزې به، تاسو تر اوسه د خپل تیاره ژوند پر افق پوازې تته رڼا لیدلې. که تاسو ویښ یاست نو سهار لرې نه دی مګر که خدای (ج) مه کړه بېرته ویده شوی نو ستاسو دا برئ به د دوبیدونکی لمر وروستی وړانګی وی.

زه له دښمن نه ویرېږم نه، خو تاسی باید د هغوی په باب غلط ګومان ونه کړی. د دوی وسایل حد او حساب نه لری. د دوی د پوځ شمیر له موږ نه ډیر زیات دی.

فرانسه، روم او داروپا نور هیوادونه د دوی تر شا ولاړ دی. دوی زموږ د ورکولو لپاره تر یوه بیرغ لاندی راټول شوی دی. ددی پر خلاف د المیریا او مالقه په له لاسه ورکولو موږ له نوری اسلامی نړۍ سره لاره نه لرو. دښمن له څلورو خواو را ایسار کړی یو، خو پر دې ټولو خبرو برسیره که زه پر دی داده شم چی تاسو به خپلی پخوانی اشتباه ګانی نه تکراروی نو په داډ ویلای شم چی د دنیا هیڅ طاقت مو نشی لاندی کولی. که تاسو له خپلی ماضی نه عبرت وانه خست، که تاسو د دښمن پر خلاف تر یوه بیرغ لاندی د راټولیدو پر ځای د خپلو منافقو مشرانو په خوله یو له بل سره لاس او ګریوان شوی او ترمنځ مو نژادی او قومی اختلافات وپالل نو په یاد ولری! لکه څنګه چې د نور اندلس مسلمانان د خپلو مشرانو د عملونو سزاګاللی همدغسی به په غرناطه کې ستاسو راتلونکی نسل ستاسو د کړو وړو سزاګالی.

د دښمن له چلونو نه خبر اوسی، او تر دښمنی زیات په خپلو غدارانو پام کوی، په دی کې شك نشته چې له هغوی نه زیاترو په دی جګړه کې ستاسو ملاتړ وکړ او دځینو لمن په خپلو وینو مینځل شوی خو دا امکان لری چی په ستونزو کی دغه خلك یو ځل بیا تاسوته دوکه درکړی. دغه خلك کلك څاری، دوی ته د خپلو اشتباهاتو د تکرار موکه مه ورکوی، دا هغه وخت امکان لری چی ستاسو په منځ کی د احتساب قوت راوپښ شی، او ستاسو په ملی کرکترونو کی د غدارئ او

ستاسو نيکمرغي ده چې خداى (ج) موسى غونډې لارښود درکړى دى.

زه بيرته ډير زر ستنيږم ، امکان لري دښمن زموږ په سيمه يرغل راوړي، خو زه په جار وايم چې کله ماته ضرورت وي تاسو به ما په خپل منځ کې ومومئ.

له بدر بن مغيره نه وروسته موسى جګ شو وينا يې وکړه:

مسلمانانو ! له نن نه څلور سوه کاله وړاندې چې کله نصرانيانو زموږ له اختلافاتو نه ګټه اوچته کړه او زموږ د هيواد زياته برخه يې له موږ نه ونيوله نو خداى (ج) يوسف بن تاشفين زموږ د مرستې لپاره راواستاوه، هغه مجاهد مسلمانان دداسې غليم له ظلم نه وژغورل چې پر دوى ژوند تنګ کړى ؤ ،او کله چې نن زموږ غدارانو دښمن ته د کور د روازې پرانستې کله چې د منافقينو ډلې د خو سکو په بدل کې موږ ته د غلامې کړۍ واغوستې بدر بن مغيره موږ ته د ژغورنې د پرښتې په بڼه راورسيد.

پرون لمر د تاسو په خيرو کې د مايوسۍ کرښې ليدلې، او نن لمر ستاسو په شونډو د خوښۍ موسکا وينې، د سر حد غازيانو تاسو ته يو هير کړى درس در زده کړ، او هغه دا چې د مسلمان ځواک د دوى په شمير کې نه دى د دوى په ايمان کې دى تاريخ ددې خبرې ګواه دى چې که مسلمانانو کله ماته خوړلې دهغو د خپلو د غدارۍ په وجه يې خوړلې دډښمن د ځواک په وجه نه . زموږ نني فتحه ددې ګواه ده چې موږ په دې تير وخت کې هم څه له لاسه ورکړي د خپل غفلت په وجه مو له لاسه ورکړي . تاسو د غدارانو خبره ومنله، تاسو منافقينو ته لاس ورکړ، تاسو پر خداى(ج) بروسه پريښوده او پر فرديناند مو تکيه وکړه او تاسو پخپلو سترګو وليدل چې په قسطله ، الميريا او مالقه کې ستاسو د کرو وړو سزا ستاسو بوداګانو، ماشومانو او تورسريو ته ورکول کيږي. تاسو هغه وخت ميدان ته راوتئ چې پردې پوه شوئ چې نور له جګړې پرته بله لاره نشته، تاسو ته د اور وژلو سوچ هغه وخت پيدا شو چې نژدې تول کوريې درسوځولي ؤ.

زه ددې خوشۍ په شپيو کې پخواني ترخه يادونه نه راسپړم خو په ياد ولرۍ

نه پاکه کړو چې د دښمن د ځواك رعب يې په زړونو خپور دی، موږ بايد د هغو شر اچوونکو نه خبر وو چې په هسپانيه کې د برېږي، هسپانيوي او عربي په نامه تعصبونو ته لمن وهي، زه پوهيږم چې الحمرا تر اوسه د غدارانو نه نه ده پاکه او په تاسو کې ځينې بنايي داوګڼي چې زه به د ابوعبدالله د خفه کيدو له ويرې پر هغوی لاس اوچت نه کړم. چې تر اوسه د فرديناند د لاس اله دی . خوزه تاسوته داډ ورکوم چې که زما د ابوعبدالله په نيت شك راشي نو زه به يې تر لمن راکش کړم او ستاسو مخې ته به يې دروم.

تاسوته به وايم چې ده له توبې وروسته هم قوم ته دوکه ورکول غوښتل نور پرده رحم کول ګناه ده.

ابوعبدالله له ماسره ژمنه کړې چې هغه به د اولس د يوه غدار سپارښت نه کوي، او زه تاسوته اعلانوم چې زه به د غرناطې د سرنوشت په اړه د ابوعبدالله د لاسوهنې زغم ونه کړم. او زه له تاسو نه دا تمه لرم چې که خدای(ج) مه کړه له مانه هم د اولس پر خلاف کومه ګناه کيږي تاسو به ما ونه بخښئ.

د غرناطې يو بوډا سردار اوچت شو ويې ويل: زموږد تولو هيله ده چې زموږ سرحدې وروڼه غرناطې ته راسره ولاړ شي، هلته به خلك د بدر بن مغيره ليدوته ناکراروي.

موسی بدر ته وکتل ، مګر هغه سر د نه پرځای وخوځاوه.

موسی بيا بوډا سردارته وکتل ويې ويل: لږ مخند وړاندې زما هم همداسې هيله وه، چې زه خپل محسن لږ تر لږه د يوې ورځې لپاره غرناطې ته بوزم. خو له بدر سره تر خبرو وروسته زه پر دې نظر شوم چې موږ پخپله هم بايد غرناطې ته ستانه نه شو، موږ به خپل پرمختګ ته دوام ورکوو، د غرناطې د خلکو پر ځای هغه خلك زموږ زيات ناکرار انتظار کوي چې تر اوسه پورې پرې زموږ د دښمن قبضه ده.

# د لوشه نوی والی

د لوشه والی ابوداؤد د خپلی ماتی په یوه کوټه کی ناست ؤ ، دولتی اسنادیی کتل، د هغه د دروازی پهره دار کوټی ته ورننوت او تر څه ځنډه چوپ ودرید، کله چی څو دقیقی د ابوداؤد هغه ته پام نه شو نو پهره دار زړه نا زړه ورېل: د ملاقات په کوټه کی جان مایکل ستاسی انتظار کوی، که ستاسو حکم وی دلته به یی راولم.

ابوداود جګ شو ویی ویل: جان مایکل! نه زه پخپله هلته ورځم د هغه د راتګ خو به زیات ځنډ نه وی شوی ؟...

پهره دار: نه همدا اوس راغی.

ابوداود بهرته ووت او په برنډه کی څو ګامه ولاړ او بیا یوی پراخی کوټی ته ور ننوت، دَ یو پوخ عمر او مزبوتو متو خاوند چی پر ده سترګی ولګیدی له کرسۍ نه جګ شو. او ابو داود له لاس ورکولو وروسته هغه ته مخامخ په دوهمه کرسۍ کښیناست.

ابو داود جان مایکل ته په ځیر وکتل ویی ویل:

زما په ګومان ته محاذ ته تللی وی؟

جان مایکل ځواب ورکړ: هو، مګر اوس له قسطلی نه راغلم. زه معظم پاچا د ځینو مهمو مشورو لپاره هلته ورغوښتی وم.

ابو داود: نو په لوشه کی به ته زما پر ځای والی وی ؟

جان مایکل یو لیك، ابوداود ته ورکړ ویی ویل: دا د پاچا فرمان دی. زه د حکم د تعمیل لپاره دلته راغلی

مایکل: مگر ما له تانه زیات هدایات غوښتل.

ابو داود وویل: زما لومړنۍ او وروستنۍ هدایت دا دی چې لوشه په هر قیمت د دښمن نه وساتې.

جان مایکل : په دې برخه کې تاسو په ما اعتماد کولی شی، تر سبا پورې به پنځه زره تنه پوځیان نور هم راورسیږی.

ابو داود: له دې وروسته زه دا وایم چې د دښمن تازه بریاؤ د مقامی مسلمانانو په زړونو کې تر یوه حده جوش او جذبه راویښه کړې ده، ما خطرناك کسان نیولی دی.، اوس د بغاوت څه اندیښنه نشته، د مسلمانانو د احساساتو سړولو لپاره د دوی د مشرانو یوه ډله لاس په کار ده. ته له هغوی سره مرسته وکړه. او هغوی له مالی ستونزو سره مه مخ کوه، زه به له روانیدو نه وړاندې ستا ملاقات له هغوی سره وکړم.

جان مایکل وویل: ته به څومره وخت بهر وې؟

ابو داود : دا په حالاتو پورې اړه لری. که زما تر تگ پورې ټول هغه علماء چې قسطلی ته بلنه ورکړای شوې ده راغلی وو نو زه به ژر راستون شم، که نه، زه به وځنډیږم.

جان مایکل : زما په گومان له قرطبې، اشبیلیې او نورو ښارونو نه تر اوسه پنځه سوه تنه عالمان راغلی دی.

ابو داود : نو په قسطله کې به زما کار ژر پای ته ورسیږی ، خو زه به بیا نورو ښارونو ته ځم. ښه اوس دا ووایه چې د جگړې وضعه څنگه ده؟

جان مایکل: د جگړې وضعه ورځ په ورځ مخ پر خرابیدو ده، د غرناطی خلکو له موږ نه زیاتی سیمی بیرته نیولی، د غرناطی له ماتې وروسته زموږ پښې په هیڅ ځای کې هم تینگې نه شوې، ابو داؤد وویل: دا د ډویډونکی لمر وروستی وړانگی دی.

جان مایکل : مگر د غرناطی خلك دا د لمر راختلو لومړنی وړانگی گڼی

راتبښتیدلی دی دا خبره یی تایید کړی، د پاچا سلامت هم دا گمان دی، امکان لری ابو عبدالله هغه نه وی وژلی.

ابو داود وویل: که ابو عبدالله بی عقل نه وای نو ددی امکان ؤ.

جان مایکل: تر څه مودې پورې زما هم دا گومان ؤ چی ابو عبدالله یو لاابالی او رنگین مزاجه سړۍ دی. خو د هغه ورروستیو بریاو زما نظر د هغه په باب بدل کړی دی.

ابو داود وویل: زه یوازی دومره پوهیږم چی د غرناطی بربادی دده په لاس ده، د لیونتوب مختلف ډولونه لری. یو وخت دده د لیونتوب کیفیت داسی ؤ چی د خپل پلار او تره پر خلاف یی بغاوت وکړ او موږ ته یی د غرناطی دروازی پرانستی، اوس د هغه د لیونتوب په کیفیت کی بدلون راغلی. تر څه مودی به همدغه حالت ورسره دوام کوی. تاسو به تر څو میاشتو پوری د غرناطی په باب عجیب او حیرانوونکی خبرونه اوری.

جان مایکل وویل: پادشا سلامت تر څو هفتو پوری پر غرناطی باندی د پریکنده او درنی جملی پریکړه کړی ده. د هغه گومان دی چی که ستا تدبیر کامیاب شو د غرناطی کلابندی به ډیره دوام ونه کړی، زه دا پوښتنه کولی شم چی تا څه تدبیر سنجولی دی؟ آیا ته غرناطی ته د اندلس د علماؤ کوم هیأت استول غواړې؟

له ابوعبدالله سره د سولی لپاره خوبه د خبرو اترو اراده نه لری؟

ابو داود: زه تاته یوازی دومره ویلی شم چی پر « الحمرا » د پاچا فردیناند د بری بیرغ رپول زما د ژوند لویه هیله ده. له دی نه وړاندی موږ ډیری غلطی کړی، نور به کومه غلطی نه کوو ، توپان یوازی هغه دیوالونه غورځوی چی تاداونونه یی وراسته شوی وی. د غرناطی لپاره چی کوم تدبیر ما سنجولی دی د هغی په بری به د غرناطی د خلکو د مقاومت زغم پای ته

تاته د زیاتو کوټو ضرورت ؤ نو درته خالی به یې کړم.

جان مایکل وویل: زه یوسپاهی یم، له دې پرته زه یوازې یم زما ضرورتونه ډیر لږ دي. یوه وړوکې کوټه زما لپاره کافي ده، زه ستا بچوته زحمت ورکول مناسب نه بولم.

ابو داودوویل: د محل کیڼ لوری ټول خالی دی. تاسو یې وګورئ زما په ګومان به هغه ستا لپاره بس وي.

*****

(۲)

د شپې مهال جان مایکل د ابوداود کره ډوډۍ وخوړه، په دې مهمانۍ کې د ښار د څو سردارانو نه پرته د ښار څو دلوړې طبقې ښځې هم شریکې وې، ربیعې ناجوړی پلمه کړه او د میلمنو محفل ته ورنه غله. انجیلا هم د سرخوږ پلمه کړ خو موریې پلمه ونه ومنله، د غرناطې له پریښودو سره د انجیلا په مزاج کې ډیر بدلون راغلی ؤ. د ربیعې په خیر هغې هم په کوم مجلس کې شریکیدل نه خوښول. دا ناسکه خوینده یو د بل همرازې او خواخوږې وې دوارو به یو بـل ته د زړه د راز ویلو لپاره یوازیتوب خوښاوه، میریا دا احساسوله چې لور ئې د ربیعې خوی او عادت خپل کړی. هغې دا شکایت هم درلود چې انجیلا د یکشنبې په ورځ کلیسا ته د عبادت لپاره د تلو پر ځای دا خوښوي چې له ربیعې سره په کور کې پاتې شي. او د ربیعې په څیر له خلکو سره د لیدو کتو مینه نه لري. کله به چې میریا ډیره په غوسه شوه نو ربیعې ته به یې زیاتې سپکې سپورې ویلې او انجیلا ته به یې ویل چې له هغې نه لرې وګرځې، خو انجیلا د مور له کمزوریو نه خبره وه، ناروغې به یې پلمه کړه په بستره به وغځیده او له خوراك ځښاك نه به یې انکار کاوه. میریا به د هغې د پخولا کولو ناکامه هڅه وکړه خو چې مجبوره به

میریا به خپله ماته ومنله او خپلې کوټې ته به ولاړه، او لږ څند وروسته به خدمتګاره ورغله ورته وبه یې ویل: هغوی دواړه دوه‌ دې خوری له داسی پیښو وروسته به څو ورځې په خیر تیری شوی، په وار وار میریا د دروازی له چولو، نه د انجیلا او ربیعی د خبرو اوریدو هڅه کړی، خو انجیلا له خپلی نا-سکه خورنه عربی زده کړی وه، او دا هغه ژبه وه چی د اندلس عیسوی حکومت غیر قانونی ګرځولی وه. میریا به ابوداود ته شکایت وکړ خو هغه به ورته ویل چی انجیلا د عربی په زده کولو پاچاهی ته د لوی خدمت ترسره کولو جوګه شوه. که کومه نازکه موکه راغله نو موږ به د دښمن په لیکو کی د ګډوډۍ خپرولو لپاره له داسی نجونو نه کار اخلو.

نن چی کله میریا انجیلا ته په میلمستیا کی د ګډون خبره وکړه نو هغی له ځواب ورکولو پرته ربیعی ته ورغله ورته‌یی ویل: ربیعی ! زه دی مجلس ته نه ورځم . د دوی خبری زما له زغم نه وتلی دی.

ربیعی وویل: انجیلا دا مجبوری ده، تر اوسه هغه مهال نه دی راغلی چی موږ هر کار په خپله خوښه وکړو، ته هلته ورشه امکان لری له دوی نه څه نوی خبره واوری.

کله چی انجیلا د ربیعی له کوټی نه راووته نو مور یی په دروازه کی ولاړه وه، ورته ویی ویل: انجیلا د خدای (ج) په خاطر ما مه پریشانه کوه. جان مایکل ډیر لوی سړیٔ دی. د هسپانیی ډیری معتبری ښځی له هغه سره خبری کول د ځان ویاړ بولی، ته تر اوسه ځوانه یی له ماسره ستا د راتلونکی سودا ده. داسی موکه هر وخت نه راځی، د جان مایکل میرمن مړه شوی ده، ته به نن وګوری چی د لوشه ښځی د هغه د پام ور اړولو لپاره څومره ناکراری دی، انجیلا په غوسه شوه ویی ویل: مورجانی ! که ته داسی خبری کوی نو زه به هیڅکله هغه ته ورنه شم.

مجونو د عصمت د لوټلو داغونه دي.

میریا : ته ربیعی په خپل مذهب بدگومانه کړې یې.

انجیلا ځواب ورکړ: که کوم مذهب دمعصومو ماشومانو وژل، د بې ګناه خلکو قتل، او په ډك بازار کې د تورسریو بې عزته کولو ته اجازه ورکوي نو زما د داسې مذهب له نامه نه هم کرکه ده .

میریا لږ پښیمانه شوه ویې ویل: انجیلا: مایکل به ستا د پلار په غیاب کې ددې ښاروالي وي، زما په ګومان که موږ له هغه سره ځانونه بلد کړو هغه به ښه تر تاثیر لاندې راوستلای شي، اوس ته ځان تیار کړه میلمانه راتلونکي دي.

* * * * *

(۳)

د ډوډۍ له خوړلو وروسته چې کله میلمانه رخصتیدل انجیلا غلې له کوټې ووتله او ګړندۍ د ربیعی کوټې ته ورغله، دروازه یې بنده کړه او په ویریدونکې لهجه یې وویل: ربیعی ! زه له هغه نه ویریږم ، هغه د وږي لیوه په څیر ماته کتل، زه د خپلې خوښۍ پر خلاف د هغه ترځنګ کښیناستم. هغه دشرابو په نشه کې ډوب ؤ او اوس به په همدې محل کې اوسي. ربیعی! زه له هغه نه ویریږم، ویل یې د غرناطې پوځ له دې ځایه (۳۰) میله لرې یوه کلا نیولې ده، کاشکې موږ هلته تلای شوای.

ربیعی هغې ته داډ ورکړ ویې ویل: انجیلا! خدای(ج) زموږ په بې وسۍ خبر دی، هغه به مو مرسته کوي.

چا دروازه ورټکوله، انجیلا وارخطا شوه دروازه یې خلاصه کړه میریا ژرکوټې ته ورننوته ویې ویل: انجیلا ته موږ مه شرموه ، د میلمنو نه د مخه باید نه وای راستنه شوې. ما دا پلمه وکړه چې ددې سر خوږیده ایساره نه

تر لږ خنډه د مور او لور بحث دوام درلود چې ابو داود کوټې ته ورننوت. میریا خپل میړه ته وکتل ورې ویل: انجیلا د ربیعې نه پرته د بل چا خبره نه مني.

ابو داود بیله دې چې میریا ته پام وکړي په کرسۍ کښیناست، میریا بیا وویل: انجیلا خپلې کوټې ته نه ځي، هغه به دا گومان کوي چې قصدي یې توهین کوي.

ابو داود په غمجنه لهجه وویل: یو شرابي دومره په حواسو هوښیار باید نه وي. ما هغه په خپله کوټه کې پرېښود او ترې راغلم، میریا! لکه چې ما دا غلطي وکړه چې ده ته مې په دې محل کې د اوسیدو اجازه ورکړه. کاشکې ما تاسو له ځانه سره بیولای شوای. هغه به زما په غیاب کې ستاسو سره د ځه بد چلن جرئت ونکړای شي، خو بیا هم دا مجبوني د هغه له نظره پټې ساته.

د نشې په حالت کې دې له هغه سړي سره توپیر لري چې ما د خپل محل په یوه کونج کې د اوسیدو اجازه ورکړې.

میریا وویل: زه د تولواك فردیناند خاص افسر دومره ذلیل نه گنم چې ...ابو داود د هغې خبره ورغوڅه کړه ورې ویل: بیا هم په احتیاط کې څه تاوان دی؟

میریا بې ځوابه شوه ورې ویل: ته پوهیږې چې انجیلا د ربیعې له ویلو پرته له چا سره خبرې هم نه کوي. او ربیعه له کوم عیسوي سره که پرېښته هم وي، انجیلا ته د خبرو اجازه نه ورکوي. ځکه خو له ماسره په دې اړه ستا خبرې بې گټې دي. که څه ویل غواړې ربیعې ته یې ووایه.

ربیعې وویل: مورجانې ! زه به د پلار جان له ویلو پرته هم خپل فرض پوره کوم.

میریا: تا پر هغی کوډې کړی دی. ته هغی ته د خپل مذهب تعلیم ورکوی، عربی ژبه دې ورښولی ده، تازما د معصومی او ساده لور په زړه کی زما پر خلاف د کرکی تخم کرلی، ته زما دښمنه یی... ته .... انجیلا چیغه کړه ویی ویل: موری ! د خدای (ج) په خاطر داسی خبری مه کوه، که ستا د خبرو په وجه د ربیعی له ماسره کرکه پیدا شی نو زه به ژوندی پاتی نه شم. زه به ددی مانۍ له تر تولو لوړ برج نه ځان راوغورځوم.

انجیلا د مور په خوړ رګ ګوتی کیښودی ، میریا وویریده خپلی لورته یی وکتل، هغی ژړلی ، د لور د سترګو درنو اوښکو ځاځکو د مور خوله وګنډله او چوپه بهر ته ووتله.

ابو داود چګ شو ویی ویل: ربیعی ! زه انجیلا تاته سپارم او ځم. د میریا د خبرو پروا مه کوه.

* * * * *

(٤)

د قسطلی د شاهی مانۍ په یوه پراخه کوټه کی د اندلس هغه مشران او دینی عالمان راټول وو چی د ابو داود په بلنه له لری لری ښارونو څخه راغلی وو. له غونډی نه وړاندی ابو داود ددوی له زیاترو سره یوازی یوازی خبری کړی وی. ابو داود په غونډه کی دوی ته په خطاب کی وویل:

ددین مشرانو ! تاسو چی نن پر کومو مسایلو د غور لپاره رابلل شوی یاست، هغه د هسپانیی د مسلمانانو په راتلونکی پوری اړه لری. د غرناطی له یوه لویشت خاوری او څه غرنی سیمی نه پرته د اندلس ټوله سیمه د فردیناند په ولکه کی راغلی . او ټول مسلمانان د ټولواک فردیناند رعیت شویدی. او تر کومه چی زموږ له غرناطی سره جګړه نه وه نو د اندلس مسلمانان د خپل عادل او مهربانه پاچا تر سیوری لاندی آرام او په امن ژوند تیراوه ...

خفګان ور دی . خو که تاسو په سره سینه پر دې پېښو غور وکړی نو دا به احساس کړئ چې څه غفلت له موږ نه هم شوی دی. اولس تل لنډ نظری وی. خو زموږ تر ټولو لویه بدمرغی دا ده چې تر اوسه پوری زموږ علماؤ هم د سیلاب مخه نه ده پیژندلې. په موږ کې څوك داسې شته چې پر دې نه پوهیږي چې د غرناطې او قسطلې تر منځ جګړه د پیل او میږي تر منځ جګړه ده. د غرناطې اولس چې په کومه لاره ګام اوچت کړی دا یوازې د بربادۍ لاره ده، هغوی څو اونۍ یا څو میاشتې خپله تباهي ځنډولې شي خو خپل تقدیر بدلولی نشي.

که دا مسئله یوازې د غرناطې او قسطلې تر پوځونو پورې محدوده وای نو موږ به دومره اندیښمن نه وو ما به تاسو ته دلته د راتلو زحمت نه درکاوه، خو دا یو تریخ حقیقت دی چې دغه جګړه زموږ په حال او راتلونکې پورې اړونده ده. د اندلس لکونه مسلمانان دعیسویانو او د دوی د حکومت رحم او کرم ته اړ دي. د قسطلې او غرناطې جګړه او د اسلام او عیسویت تر منځ په جګړه بدله شوې ده. ښکاره ده چې په داسې حال کې د اندلس مسلمانان له عیسویانونه د ښه چلن تمه نشي کولی.

په غرناطه کې چې کوم عیسویان مري، خپلوان یې دلته له موږ نه بدل اخلي، اودا جګړه چې څومره اوږدیږي هومره به د عیسویانو د کسات جذبه زموږ پر خلاف تونده وي. زه د غرناطې د اوسیدونکو په باب هیڅ اندیښنه نه لرم، هغوی د یوه څواکمن ګاونډي سره د جګړې حماقت کړی دی. او ددې سزا به ګالي. خو موږ د اندلس د لکونو مسلمانانو له سرنوشت سره بې پروايي نشو کولی. زموږ د ژغورنې لپاره اوس یوازې یوه لاره ده، او هغه دا چې د غرناطې جګړه زر پای ته ورسیږي. تر کومه چې دا جګړه دوام ولري د اندلس حکومت به زموږ په وفادارۍ بدګومانه وي، او د هغوی چلن به له

یوه تن ځواب ورکړ: د اندلس هر مسلمان دا خبره درك کوی! بل سړی جگ شو ویې ویل : موږ ټول له تاسره موافق یو. ابوداود له دی خلکو نه د مخالفت ټمه هم نه درلوده، دا ټول شاهی میلمانه وو او ابو داود هر یو ته ځانگړی ځانگړی دا ویلی وو چی د څه لپاره راغوښتل شوی دی.

ددی علماؤ د هری ډلی مشر یو یو جگ شو او د ابوداود د خبرو تایید یی کاوه، ابو داود داړه شو او خپلی خبری یی له سره پیل کړی:

ښاغلیو! ما د عیسویانو ٭ داړه کولو لپاره د لوشه او نورو ښارونو مسلمانان دی ته وهڅول چی د پاچا په لښکر کی شامل شی، په تیره حمله کی نژدی پنځه سوه تنو مسلمانانو د حکومت له پوځ سره مرسته وکړه. خو له بده مرغه د دوی زیاتره تر احساساتو لاندی راغلل او د غرناطی له پوځ سره یو ځای شول. ددی نتیجه دا شوه چی پر مسلمانانو د عیسویانو لږ او دیر پاتی اعتماد هم ختم شو. او په مختلفو ښارونو کې چې له مسلمانانو سره څه چلن وشو د همدې نتیجه وه.

له مانه دا غلطی وشوه چی په داسی لنډ فکره خلکو می اعتماد وکړ چی د احساساتو خپو ورسره واخستل . اوس زه تاسو ښاغلیو ته یو مهم مسئولیت درسپارم تاسو به د اندلس د مسلمانو مهاجرو په نامه غرناطی ته ځی ، هلته چی ولاړی تاسو به د غرناطی چارواکو او عوامو ته دا وایی چی جگړه بی هدفه او بی حاصله ده، ستاسو ددی مقاومت سزا د اندلس نور مسلمانان گالی، پر هغوی ژوند تنگیږی. ښاغلیو که تاسو د غرناطی خلك وسلی ایښودلوته چمتو کړل، نو نه یوازی د فردیناندمسلمان رعیت بلکی پخپله د غرناطی اوسیدونکی به د عیسویانو له کسات نه وژغوری او دا به دیر لوی کار وی.

ددی دندی د ...

جګ شو او په لوړ آوازیې وویل:

ښاغلیو! زه نن دلته رارسیدلی یم. ما د خپل عیسوی حکمران په مخکې د څه ویلو اراده درلوده، خو داسې ښکاري چې زه نیغ له فردیناند سره مخامخ نشوای شم . بیا هم ددې غونډې د رئیس احسان من یم چې ماته یې په پایتخت کې د څه ویلو اجازه راکړه، دا سوچ د مجلس د رئیس کار ؤ چې ایا دا ځای د آزادانه نظر د څرګندولو لپاره مناسب دی که نه، په هر صورت ددې بلنې نه وروسته هغه زما په اوږو د مسؤلیت یو پېټی را اچولی دی، او زه به دا مسؤلیت تر سره کړم. زه به د خپلو احساساتو د څرګندولو پر ځای د اسلام د علماؤ د ډله ایزو احساساتو ترجماني کوم. ښاغلیو ! د اندلس په ډیره برخه زموږ د واك ختمیدل یو ډیر لوی زیان ؤ، له دې وروسته به زیان دا ؤ چې زموږ د قوم لویه برخه د ذلت په ژوند قانع شول، خو دغه زیانونه نه جبرانیدونکې نه وو، امید مظلومان، بې وسان او بې کسان ژوندي ساتي، کله چې زموږ د مجلسونو ټولې ډیوې مړې شوې نو په غرناطه کې یوه ډیوه بله شوه، یو توپان له ډیرې مودې راهیسې د غرناطې د ډیوې د مړې کولو هڅه کوي. او د ډیرو ناکامو هڅو نه وروسته دا توپان له موږ نه غواړي چې موږ په خپلو لاسو دا ډیوه مړه کړو. نن د قوم د جنازې پورته کولو لپاره د دین هغه علما ټاکل شویدي چې د مړه اولس په غوږونو کې به ئې اسرافیلي شپیلۍ پوکلې ابوداوده! د قیامت په ورځ ته زما ګواه یې، دا ټول مشران او علما چې دلته ناست دي زما شاهدان دي، چې ما له ټولو کمزوریو سره سره دغو خلکو ته له ملاتړ نه انکار کړی. چې د حق له جګړې نه یې مخ اړولی، د باطل د بری په انعامونو کې خپلې برخې لټوي ابوداوده! ته ماته د آزادانه نظر څرګندولو بلنه راکوې نو واوره ! ښایي دا په قسطله کې د حق وروستې چیغه وي په کومه ورځ چې په

بې عزتي نه کيده؟ آيا د غرناطې له مسلمانانو سره د دوستۍ سره سره عيسوي چارواکو په لکونو مسلمانان له هيواد نه ونه شړل؟ ايا هغوی يې په زور عيسويان نه کړل؟ ايا زموږ جوماتونه يې په کليساؤ بدل نه کړل؟ آيا په عربي ژبه خبرې کول ئې موږ ته جرم ونه ګرځاوه؟ په نړۍ کې چې څه ډول ظلم ؤ هغه له موږ سره وشو؟! ابوداوده! د هر اولس د عزت ساتنه د هغوی دفاعي ځواک کوي ماته معلومه ده چې کله د ابو الحسن پوځونو لوشه ته مخه کړه زموږ عيسوي واکمنو اعلان وکړ چې د اندلس له مسلمانانو سره بد چلن کوونکو افسرانو ته به بده سزاورکړو. له هغې وروسته چې کله ابوعبدالله غداري وکړه او زموږ د حکومت په نظر د غرناطې خطر لرې شو نو موږ يې د بدترين سلوك مستحق وبللو.

غرناطه د اندلس د مسلمانانو وروستي مورچل دی. که دغه حصار او برج مات شو نو په ياد ولرئ چې په اندلس کې به د مسلمانانو ژوند تر مرګ بدتر او درد ناك وي.

د مجلس رئيس دا ويلې چې څرنګه چې اوس د غرناطې د مسلمانانو مرګ حتمي دي نو ځکه خو د دښمن د خوښۍ لپاره بايد موږ پخپله د دوی مرۍ خپه کړو. خو زه وايم چې که ددوی لاسونه زموږ تر شاه رګ پورې ورسيدل زموږ شاه رګونه به غوڅ شي.

د اورېدونکو له خوا د احتجاج غږونه اوچتيدل خو د هغه د توقع پر خلاف ابو داود په سره سينه دده خبرې اورېدې د خبرو په جريان کې څو ځله نورو خلکو د شور زور جوړولو هڅه وکړه خو ابو داود د لاس په اشاره هغوی چوپ کړل. کله چې ټول عالم چوپ شو، نو ابوداود په داډ وويل: زما مشره! ته نور څه ويل غواړې؟

هغه پر خپل ځای کيناست ويې ويل: نه!

داشبیلیی څلور عالمان جګ شول.

ابوداود وویل: په دی مجلس کی یوازی پنځه تنه زماسره په یو نظر نه دی زما امید دی چی موږ له یوه آزادانه بحث وروسته یوی نتیجی ته ورسیږو. زه به ماښام د لمانځه نه وروسته تاسو راوغواړم ددی غونډې له پای ته رسولو نه وراندې زه له ټولو حاضرو علماؤ نه غواړم چی ددی غونډې په هکله چاته څه ونه وایی، د شپی د ابوداود یوه خدمتګار هغه پنځه تنه عالمان له ځانه سره بوتلل، بیا دا چاته معلومه نه شوه چی هغوی څه شول، سبا ته د دوی ځینو ملګرو دا ګومان کاوه چی دوی بلی دنیا ته استولی شوی دی. نږدی دوی اونی د تش په نامه علماؤ او د قوم مشرانو دغی ډلی له ابوداود نه ځانګړی درسونه زده کړل او بیا د غرناطی په لوری وخوځیدل له دی نه وروسته ابوداود له فردیناند نه د هر ولایت د والی په نامه احکام واخستل او د نویو رضاکارو د راټولولو په غرض د ښارونو په دوره روان شو، هغه په هر ښار کی د خپل نظر سره سم یوه ډله جوړه کړه او بیایی اشبیلیه د خپلو فعالیتونو مرکز وټاکله. د نورو ښارونو والیانو به اعتباری کسان جلبول او ده ته به یی را استول او ده به ځانګړی تربیه ورکوله او غرناطی ته به یی استول. د عیسویانو د ظلم له لاسه د اندلس مسلمانانو خپل کلی او ښارونه پریښودل او غرناطی ته به یی هجرت کاوه. د ابوداود جاسوسان به د همدغو مهاجرو په قافلو کی ګډ شول او له څه ستونزو پرته به غرناطی ته رسیدل.

د غرناطی حکومت ته د مهاجرینو مسئله ډیره لویه ستونزه شوه ، خو د اولس د ایثار او خلوص په وجه حکومت له دغی پریشانی نه خلاص ؤ. دوی به مهاجروته په خپلو کورونو کی ځای ورکاوه، او د خپلی خولی مړیه یی

ځان ته را اړاوه ، بیا به یې د خلکو په ذهن کې د اوړ واچوله چې: دا جګړه به څه وخت پای ته رسیږي؟ نتیجه به یې څه وي؟

افسوس چې له افریقانه د مسلمانانو د مرستی هیڅ امید نشته، عیسویان د مسلمانانو نه څو چنده زیات دي مګر کاشکې زموږ مقابله یوازې د اندلس له عیسویانو سره وای. اوس د ټولې اروپا عیسویانو زموږ د وړوکې پاچاهۍ د منځه وړلو سوګند کړی دی، د مسلمانانو زړونه مات شویدي. مسلمانان بې زړه نه دي، وژل او وژل کیدل ښه پیژني اوس هم که فردیناند خپل ټول لښکر راوباسي نو موږ به یې په څو ورځو کې تر پښو لاندې کړو، خو اوس د ټولې اروپا عیسویان زموږ پر خلاف د هغوی ملاتړ ته راوتلي. ددې پر خلاف په افریقا کې زموږ وروڼه زموږ له حاله بې خبره دي. موږ به ترڅو جنګیږو، د دې جګړې نتیجه به څه وي؟

سهار به د غرناطې په جوماتونو دغسې اعلانونه ځړیدلي وو:

د دین علما څه فرمایي، ایا داسې جګړه روا ده چه نتیجه یې له مرګ پرته بل هیڅ نه وي؟

د منافقینو ددې هڅو په نتیجه کې په غرناطه کې د ماته خوړلیو ذهنیتونو شمیر مخ په زیاتیدو شو، د اندلس د مشرانو نه د غرناطې مشران هم اغیزمن شول، ددې زهرجنو پروپاګندو له اثر څخه تر اوسه پوځ پاك ؤ. خو د ابوداود جاسوسان په پوځ کې هم شاملیدل ، د اشبیلیې نه ځینې یهودي سوداګر هم د مهاجرو په بڼه راغلي وو او د فردیناند په طلا او نقرو یې د نفوذ د خاوندانو سرونه او ضمیرونه اخستل.

* * * * *

(٥)

او کوخوته به ووتل، په جوماتونو به ورننوتل لمونځ کوونکی به یی وډبول، د شپی مهال به یی د مسلمانانو د کورونو دروازی ورماتی کړی ورننوتل به، او د هغوی ښځې به یی په زور خپلو پوځی هدوته له ځانونو سره بوتلی.

یوه ورځ یو ځوان په غیرت راغی او د خپل گاونډی کورته ورننوتی دری پوځیان یی ووژل، له دی نه وروسته جان مایکل پر ښار د پوځی حکومت اعلان وکړ، د ښار یو نیك خویه راهب د عیسوی سردارانو سره د یوه هیأت په بڼه والی ته ورغلل، له هغه نه یی هیله وکړه چی ښار ته د پوځیانو په ننوتلو بندیز ولگوی، په شرابو بدمست سپاهیان د مسلمانانو پر کورونو سربیره کله کله د عیسویانو په کورونو هم ورننوزی والی دا امر وکړ چی عیسویان دی د خپلو دروازو پر سر صلیب وځړوی چی پوځیان پری غلط نه شی.

د لوشه یو شتمن عیسوی سوداگر د جان مایکل دوست ؤ، جان مایکل به د شپی زیاتره وختونه د هغه کره ؤ. هره شپه به ددې سوداگر کورته عیسوی سپاهیانو کومه بدمرغه نجلۍ راوستله یوه شپه جان مایکل د شرابو په نشه مست ؤ، خپل کوربه ته یې ووېل: ما نور د واده پریکړه کړې ده.

سوداگر په کرس کرس وخندل ویی ویل: واده! ته واده کوې، جان مایکل په درنده لهجه ووېل: چوپ! ته فکر کوې چې زه په نیشه کی اوتې بوتې وایم. ما د واده پریکړه کړی، زه به د اندلس تر ټولو ښکلې نجلۍ سره واده کوم او هغه په لوشه کی ده، پوهیږی څوك ده؟

سوداگر: زه پوهیږم.

جان مایکل: ښه ووایه څوك ده؟

سوداگر: هغه د ابوداود لور ده.

جان مایکل غوریدوته په ورته لهجه وویل: دا ربیعه یی لاڅوك ده؟
سوداګر: هغه د انجیلا ناسکه خور ده، هغه د نارینه ۋ مخی ته نه ورځی.
کلیسا ته هم نه ځی، ما اوریدلی د هغی مور مسلمانه وه.
جان مایکل: ته اوتی بوتی وایی. د اندلس یوه نجلی هم تر انجیلا ښکلی نه ده زه د هغی سپکاوی نشم زغملی. که دی بیا وویل چی بله نجلی تر انجیلا ښکلی ده نو د سر خیر دی نشته.
سوداګر: نو تا له انجیلا سره د واده تصمیم نیولی.
هوکی زما تصمیم قاطع دی خو هغه له مانه کرکه کوی.
زه نه پوهیږم چی د فردیناند له یوه خاص افسر نه یوه نجلی ولی کرکه کوی؟
د هغی مور عیسوی ده او زه پوهیږم چی هغه به دا خپله نیکمرغی بولی چې ته یې زوم شی. که ستا اجازه وی زه به له پاپ سره په دې اړه خبرې وکړم.
ما پخپله د نجلی له مور سره خبره کړې ده. د هغې هیڅ اعتراض نشته خو نجلی له مانه نفرت لری. آ بله ورځ مې میلمستیا ته رابللی وو، مور یې راغله خو دې د سرخوږ پلمه کړ، پوهیږې ښکلې نجونې کله د سرخوږ پلمه کوی، ته نه پوهیږی ته بی عقل یی، کله چی دوی د چا لیدل نه غواړی نو د سرخوږ پلمه کړی، ما د خپلې خدمتګارې په لاس د ګلو ګیډی ورواستولی وه پوهیږی هغې څه وکړل؟ ته نه پوهیږې ودریږه زه یې درته وایم.
جان مایکل جګ شو د میز له سره یې د ګلو ګیډی جګه کړه او د سوداګر پر سر یې وویشته په کړس کړس یې وخندل ویې ویل: هغې د ګلو ګیډی زما د خدمتګارې پر سر ویشتلی وه او ورته ویلی یې وو چې که دې

پوهیږی، ته یو احمق سوداګریې.

* * * * *

(٦)

په عامو حالاتو کی بنایی میریا د انجیلا له رضا پرته هیڅ ګام نه وای اوچت کړی. خو یوه پیښه وشوه چی دایی د انجیلا د راتلونکی په باب زردی پریکړی کولوته اړه کړه.

میریا تر ډیره په خوب عادت وه، خو یوه شپه د طبیعت د خرابی په وجه خوب ورنه غی. د انجیلا کوټه ددی تر څنګ وه، د شپی په وروستی برخه کی تېری شوه د اوبو منګی په برنډه کی ؤ میریا خادمی ته د آواز کولو پر ځای پخپله جګه شوه. اوبه یی وڅښلی بیرته چې راستنه شوه څه خیال یی په ذهن کی وروګرځید او د انجیلا د کوټې خواته ورغله، دروازه خلاصه وه خو د انجیلا بستره تشه وه.

له هغی نه وړاندی بله کوټه د ربیعی وه او دننه د خبرو غږ راوت. میریا ورو ورو دروازی ته ورغله ورو یی دروازه تیل وهله، لږ چوله یی وکړه او د ننه یی ور وکتل د ننه شمه بله وه، انجیلا یو کتاب په لاس کی ربیعی ته مخامخ په قالینه ناسته وه او ورو ورو یی لوست، چی په کوم لفظ به ودریده ربیعی به ورته ووایه، دا هغه کتاب ؤ چې میریا به زیاتره ربیعه لیده چی په ډیر سوز او ګداز یی لوللی دا قرآن ؤ.

میریا تر څه ځنډه حیرانه ودریده. ددی په ګومان انجیلا په ډیره بده ګناه اخته وه.

زړه یی غوښتل ورمنده کړی د لور له لاسه یی قرآن واخلی. خو پښنی یی په ځمکه ګنډلی وی. ددی د پریکړی ځواک ځواب ورکړ.

انجیلا قرآن بند کړ، د بخمل په پوښ کی یی ونیپچه او په الماری کی یی

وهځوي. تر ډيره په کوټه کې بې حسه غوندې پرته وه، ناڅاپه يې څه ذهن ته ورغلل جګه شوه او له کوټې ووتله. د بهرني دروازې نه ورسته يې مخ د پاپ د هستوګنځي په لورې ؤ. له دې نه وړاندې د محل کوم ملازم او سپاهي دا پلې نه وه ليدلې چې بهرته وزي.

لږ څنډ وروسته دا د پادري « پاپ» په مخکې ناسته وه هغه ته يې ويل: سپيڅلې پلاره ! زه غواړم چې د انجيلا واده وکړم، خو هغه ډيره سرکشه او خودسرې ده، زما خبره نه مني.

پاپ پوښتنه وکړه: دا غواړي راهبه شي؟

ميريا: نه ! ددې دغه رشته خوښه نه ده.

پاپ: ما غوښتل په دې باب زه له تاسره ووينم. جان مايکل ماته خو ځلې ويلې دي چې ستا لور يې خوښه ده.

ميريا: سپيڅلې پلاره ! زه دا د ځان عزت او وياړ ګڼم، خو انجيلا ډيره ضدي نجلۍ ده، ته هغه وپوهوه.

پاپ لږ سوچ وکړ ويې ويل: زما په ګومان که تا له خپلې لورسره د جان مايکل د ليدو کتو زمينه برابره کړې وای نو دا ستونزه به پخپله لرې شوې وه.

ميريا: سپيڅلې پلاره ! که دا معامله دومره آسانه وای نو ما به تاته هيڅ تکليف نه و درکړی. پر انجيلا زما نا سکه لور کودې کړې دي، هغه مسلمانه ده او د انجيلا په زړه کې يې د خپلو هم مذهبو پر خلاف کرکه راپيدا کړې ده، زه ويريږم چې هغه بې لارې نه شي ځکه زه زرترزره ددې واده کول غواړم.

پاپ وويل: که دا خبره وي نو موږ بايد غفلت ونه کړو، خو زه دا پوښتنه کوم چې که ستا لور د خوښې پر خلاف واده کړو نو ستا خاوند خو به نه ناراضه کيږي؟

خلاف ده؟

میریا وویریده ویې ویل: سپیځلی پلاره ! هغه د شراب خورو نه کرکه کوي. او دا ددې له ناسکه خور سره د. ناستي اثر دی، جان مایکل چې کله لومړۍ ځل زموږ کره راغئ نو په شرابو مست ؤ ښایي له همدې امله د انجیلا تری کرکه پیدا شوې وي.

پاپ وویل: زه داسې احساسوم چې ستا د کور وضعه د عامو عیسویانو د کور له وضعې سره توپیر لري، ته باید دومره پریشانه نه وي ، دا معامله به سمه شي، نن ماښام به زه ستاسو کره درشم ته جان مایکل ته میلمستیا وکړه ، سمدستي د بل چا رابللوته ضرورت نشته.

میریا وویل: سپیځلی پلاره ! زه ویریږم چې د جان مایکل نوم واوري ناروغي به پلمه کړي او په بستره به پریوزي.

پاپ: ددې د وړاندې د جان مایکل د نامه اخستلو ضرورت څه دی، هغه به داسې وخت راشي چې موږ د خوراك په میز ناست وو.

*****

(۷)

د لوشه له پاپ سره تر لیدو وروسته نوره توله ورځ میریا له ربیعی او انجیلا سره وه، انجیلا په دې خبره خفه وه چې د مور په موجودیت کې دا له ربیعی سره په لمانځه کې شریکه نه شوه. خو هغه پر دې خوښه وه چې دده له ناسکه خور سره ددې د مور چلن ډیر ښه شوی ؤ.

نن میریا په ربیعه ډیره مهربانه وه. ددې د ویښتانو په جوړولو او د جامو په بدلولو یې اصرار کاوه، ویل یې: ربیعی ته د جامو په بدلولوکې ډیره بې پروایي. خلك به وایي چې ستا میره درسره بې پرواده. ته توله ورځ غمجنه ناسته وي. وګوره رنګ دې زیړیږي. که دې پلار راشي ویه وایي چې ته ماځوروله یې. د خدای (ج) په خاطر لږ د ځان خیال کوه.

مایکل خبره رایاده کړه، انجیلا په ډیره بې پروایی د هغه د زړورتیا او شجاعت داستانونه اوریدل. پاپ د هغه د جګړو یادونه کوله ویې ویل: د جان مایکل په باب زه په یوه خبره خفه یم چې هغه په شرابو څښلو کې اعتدال نه مراعاتوی، که نه نو د هسپانیې هیڅ افسر دده سره برابری نشي کولی، بیا هم کوم خلك چې دده د ددې کمزورۍ په سبب پوهیږي نو ده ته برائت ورکوی. ده له خپلې میرمن سره بې شانه مینه درلوده. د هغې له مرګه وروسته دی په شرابو کې ډوب وی او د خپلې میرمنې غم غلطوی. ده داسې د ژوند ملګری نه ده موندلی چې دده دغه غم ورسره سپك کړي. د اندلس ډیرې عزتمندې کورنۍ له ده سره د خپلې هیله لري او دا د ځان لپاره ویاړ ګڼي خو دده هیڅ نجلۍ نه خوښیږي، تر دې چې د شاهي کورنۍ نجونې دده په معیار پوره نه خیژي.

اوس دده یوه دوست ماته ویلي چې دی له یوې ډیرې معصومې نجلۍ سره واده غواړي، که هغه نجلۍ هوښیاره وی نو زما باور دی چې د جان مایکل په ټولو عادتونو کې به بدلون راولي. او دا به د کلیسا ډیر لوی خدمت وی. د کلیسا بچیان اوس له دښمنانو سره په جګړه مصروف دي. او د کلیسا لوښو ته په کار ده چې د دوی د تسکین او آرامی اسباب برابر کړي، پر جان۔ مایکل د شرابو څښلو له امله د ګوتې نیولو پر ځای باید په هغو عواملو غور وکړو چې دې یې دې عادت ته مجبور کړی. هغه د خپلې میرمنې په مرګ ضربه لیدلې. پر دې علاوه هغه خپل ډیر خواږه یاران له وحشي مسلمانانو سره ولیدل چې ووژل شول. که د قوم لوښې پر هغه د رحم پر ځای له هغه نه کرکه وکړي نو دا ډیر د افسوس ځای دی.

د انجیلا ناکراری زیاتیده، دې دا احساس کړه چې کوم جال ورته غوړیدلی دی. دې یو ځل مور او بیا پاپ ته وکتل څه یې ویل غوښتل خو

میریا رنګ تك زیړ شو، پاپ او انجیلا میریا ته په پوښتونکی نظر وکتل، پاپ اندیښمن شو پوښتنه یی وکړه: څه خبره ده؟

میریا جګه شوه ویی ویل: هیڅ خبره نشته زه اوس راځم.

خو په برنده کې یې د پښو غږ واورید ودریده ، له دی سره جوخت یی د خپل حبشی نوکر غږ واورید: زه به تا په دې حالت کې د ننه تلو ته پری نږدم.

په خوب کی یی په شرابو کې ډوب غږ واورید: ته زما لاره نشی ترلی، زه ددی ښار والی یم، لری شه که نه په دار به دی وځړوم.

د میریا پښې په ځمکه ونښتی ، لږ شیبه وروسته جان مایکل په دروازه کې ولاړ ؤ، په یوه لاس کې یی طلایی صراحی او بل کی یی جام ؤ، له سترګونه یی وحشت وریده، میریا ، انجیلا او پاپ حیران حیران ورته کتل.

میریا په ویریدلی لهجه وویل:-انجیلا ته د شاکوټې ته ولاړه شه. مګر د انجیلا غیرت مور یوازی پریښودل نه منل پاپ هم ددی ناخاپی حالت سره مخ کیدوته تیار نه ؤ، هغه کله په غوسه او پښیمانی جان مایکل ته او کله د عذر او بخښنی په نظر میریا ته کتل.

جان مایکل په دروازه کی له صراحی نه پیاله ډکه کړه او په سریی واړوله بیا په لړزیدونکو ګامونو کوټې ته ننوت، صراحی او پیاله یی په میز کښیښودل او پاپ ته نژدی په تشه کرسی کښیناست. انجیلا له خپل ځایه ورو لری شوه او د مورتر څنګ ودریده.

جان مایکل وویل: ته ولی ودریدی، کښینه، ستاسو نوکر ډیر بی ادبه دی، د لوشه هر سړی ما پیژنی، خو ستاسو نوکرانو ته دا نه ده معلومه چی زه ددی ښار والی یم.

سپیڅلی پلاره! زه به نن دلته پریکړه کوم او ځم به، مګر دا ولی ولاړه

احترام زما فرض دی خو هیڅ افسر به دا ونه زغملی شی چی څوك یی دی کورته ور وغواړی او بی عزتی یی دی وکړی. آیا زه دوی دلته نه یم رابللی؟

انجیلا په حقارت خپلی مور ته وکتل، پاپ بیا وویل: ما همدا اوس تاسوته دا ویل چی اوسنی حالات داسی دی چی زموږ ډیر غوره افسران د ډیرو شرابو په خوړلو عادت شوی دی، کله چې دا حالات بدل شی، د دوی عادت به هم بدل شی، میریا ، انجیلا کښینی ، د مایکل په زړه کی ستاسو د سپکاوی خیال نه شی پیدا کیدای.

میریا یوه شیبه دوه زړی شوه خو بیا په کرسی کیناستله مگر انجیلا ولاړه وه.

مایکل خپله لهجه بدله کړه ویی ویل: سپیڅلی پلاره ما له تاسره نن وعده کړی وه چی د شرابو په خوړلو کی به اعتدال کوم، خو زه افسوس کوم دا زما دوس خبره نه ده. زه پوهیږم چی انجیلا له شرابونه کرکه لری. سپیڅلی پلاره ! زه به یی پریږدم د انجیلا لپاره زه هر څه کولی شم، انجیلا ! د خدای په خاطر کښینه ! ته نه کښینی ؟ ، ته باید کښینی ! زه ستاسو په کور کی خپل سپکاوی نشم زغملی.

جان مایکل په خپلو لړزیدونکو لاسونو یو بل جام ډك کړ او په شونډو یی کیښود.

میریا د انجیلا لاس ونیو ورکش یی کړه ورویی ورته وویل: انجیلا! د خدای (ج) لپاره دا د یوه شرابی ضد دی کښینه ! انجیلا د مور تر الفاظو د هغه په هیله منو کتو تر تاثیر لاندی راغله او کښیناستله، د مایکل په اړه ددی ویره په کرکه بدله شوه. څو شیبی وړاندی د حیا غوښتنه داوه چی دا وتښتی او اوس د غیرت تقاضا دا وه چی د حالاتو سره د غړي ووهی.

جان مایکل څو شیبی انجیلاته په چوپه خوله وکتل بیا یی وویل: تا خوراك ولی پریښود، وخوره زما فکر مه کوه، زه دغه مهال څه نه خورم. زه

زیات. ته به همیشه مدهوش اوسیدی. په هوښیاری کې سړئ ډول ډول خیالونه عذابوي، زما په باب تاسو دا ګومان مه کوی چې تل مې همداسې شراب څښل، ته يو وخت مې له شرابو ته دومره کرکه وه چې په مذهبي مراسمو کې مې هم بد ایسیدل، خو اوس يې تر هر څه زیات څښم. زما دا عادت د انجیلا ښه نه ایسي، د انجیلا به زما دا عادت هم نه خوښیږي چې د شپې مهال د خلکو په کوروټو ورننوزم، انجیلا به بنایي ما ظالم بولي.

پاپ د مایکل رتل ضروري وبلل ويې ویل: ما انجیلا ته ویلي دي چې تا د خپلې میرمن له مرګ وروسته په شراب څښلو پیل کړی، مایکل وویل: دا دروغ ده، دا بلکل دروغ دي، زه پوهیږم چې زما د میرمنې د مرګ سبب زما د شرابو څښل وو. یوازې شراب نه د هغې زما ډیر عادتونه بد ایسیدل. د الحمد له بري وروسته چې څه وشول نو هغې به تل ماته ویل چې ته وحشي يې خو په دې کې زما ګناه نه وه.

د الحمد له برې نه مخکې ما ډیر لږ شراب څښل. خو په هغه ورځ مې د برې په خوښۍ خو صراحي تشې کړې. او بیا هغه پیښه رامخې ته شوه، د نشې په حالت کې زه په دې نه پوهیدم چې زه څه کوم. هغه ډیره ښکلې وه، ما له هغې سره وعده هم وکړه چې ژوند به دې ژغورم. د هغې ګناه معمولي نه وه، زموږ دوه سپاهیان يې وژلي وو، د هغې څلور ورونه په جګړه کې وژل شوي وو د ښار خلکو وسله کیښوده، نور د دوی ذمه واري وه چې زموږ لپاره د ښلو کوروټو دروازې خلاصې کړې خو د هغې ښکلې نجلۍ د کور دروازه بنده وه. ما د دروازې د ماتولو امر وکړ، ماښايي داسې نه واې کړې خو د برې په خوښۍ کې مې ډیر څښلي وو. کله چې زما سپاهیانو دروازه ماتوله د کور له بامه خو غشي راغلل زما اته سپاهیان ټپیان شول او ټول همالته انبار شول، کله چې کورته ورننوتو نو هلته یوازې یوه نجلۍ وه. پرمايي په خنجرحمله وکړه خو ما خنجر د هغې له لاسه واخست، که ما نه واې منعه کړې نو سپاهیانو به د هغې بوټي شکولي وې. سپاهیان ولاړل او

اوچتی وی. بیا زه پر ځان ونه پوهیدم چی څه کوم، دا رپیدله او زما لاس ددې په مری‌ورکلکیده، سهار چی کله زه راپه هوش شوم ددی لاش زما سره نژدی پروت ؤ، په مری‌یی زما د ګوتو خاپونه وو، ما دا ګنله چی ویده ده، ما چې د هغې خیری ته وکتل دا باور می نه شو کولی چی وژلی به ّمی وی. مابی د پاځولو هڅه وکړه، بیا می توله ورځ په شرابو ځښلو تیره کړه. اوله همغی ورځی وروسته زه په شرابو کی ډوب یم. خو دا داسی تنده ده چی هیڅکله به هم ماته نشی ماچی لومړی‌ځل انجیلا ولیده ، هماغه نجلی‌ه رایاده شوه، تر اوسه پوری چی ما څه کړی ذمه واره یی هماغه نجلی ده. او اوس که په راتلونکی کی څه کوم ذمه واره به یی انجیلا وی. زه نن د همدی پریکړی لپاره راغلی یم، انجیلا ته به دا ځواب راکوی چی له ماسره واده کوی که نه ؟

د انجیلا په سترګو کی اوښکی راغلی، په تصور کی یی د هغی مظلومی نجلی زړه لرزوونکی کریږی اوریدی، د جان مایکل په پوښتنه یی تکان وخوړ ویی ویل : تاته زما ځواب څرګند دی . او بیا پر ځای ودریده،

مایکل په دروند آواز وویل: که دا همغه ځواب وی چی هغی نجلی‌راکړی نو واوره چی د کوم ګل وړمی زما لپاره نه وی زه یی په خپلو لاسو په موښلو او پانی پانی کولو عادی یم.

انجیلا ځواب ورکړ: له هغی نجلی‌سره دی مخ تورول غوښتل او ماته دی د واده پیغام راکړی. د فردیناند افسراو د کلیسا زرور ته زما ځواب دا دی چې زما په نظر تر تانه د لوشه یو سوالګر د ډیر عزت خاوند دی. د هغی بی کسه نجلی لپاره ته د یوه وړی لیوه په څیر وی. خو زما په وړاندی د یوه لیونی سپی په څیر یی. ته هغه وخت هم د کرکې وړ وی او اوس هم .

پاپ او میریا په یوه غږ وویل: انجیلا ! انجیلا! خو دی هغوی ته پام ونه کړ ویی ویل: ته د انسانیت په نامه یو تور داغ یی. ته ماته اخطارونه راکوی خو تر څو می چی خدای مل وی ته می یو ویښته نشی کږولی، تاسو

نکرای شي.

انجیلا پاپ ته وکتل ویې ویل: او ته د مریمې بوت لمانځې. خو د خپلو سپاهیانو لخوا د معصومو نجونو عصمتونه لوټل د مریم د زوی د دین لوی خدمت گڼې ! ته د هغه صلیب عبادت کوې چې دخدای زوی يې پرې راځړولی ؤ خو زه پوښتنه کوم چې د اندلس په هر ښار کې څومره بې گناهان دي چې ته هره ورځ هغوی ته د پانسې سزا ورکوې؟

پاپ جگ شو ویې ویل: دې نجلۍ لاره ورکه کړې ده، ددې خور جادو پرې کړی، دا نه پوهیږي چې څه وايي! مایکله ! راځه چې ځو !

مایکل وویل : نه زه به پریکړه کوم او ځم به. هغه ورروستي جام هم پر سر واړاوه او د بیهوشۍ تر حده رسیدلی ؤ. جگ شو د انجیلا په لوری ورغی. پښې يې ريږدیدلې. انجیلا د میز له سره درنه گلداني اوچته کړه او یوې خواته ودریده میریا خپل حبشي غلام ته غږ وکړ، هغه په منډه راغی، خو په دې ځنډ کې مایکل انجیلا ته ورنږدې شو، هغې په گلداني پر سر گوزار ورکړ، مایکل د لویدو لپاره یوه پلمه غوښته او د گلداني په گوزار يې توازن ونه شو ساتلای وغورځید. له لویدو سره پاپ ورواړاندې شو حبشي غلام ته يې وویل: ته دې زر تر زره خپلې کوټې ته ورسوه. که د هغه نوکرانو پوښتنه وکړه ورته ووایه چې په شرابو نشه دی، د مزبوتې تنې خاوند غلام مایکل په اوږه واړاوه او بهرته ووت.

پاپ انجیلا ته وکتل ویې ویل: انجیلا! جان مایکل ما دلته راغوښتی ؤ، ستا د مور په دې کې هیڅ قصور نه ؤ او زما دا خبره بلکل غلطه ده چې ستا ناسکه خور په تا جادو کړی، که دا خبرې هغې تا ته درښودلې وی نو ته باید له هغې نه ډیر څه زده کړې. ما مایکل د اصلاح ورگانه خو زما خیال غلط ؤ. ته باید له هغه نه لرې واوسې. زه سبا ته له خپل منصب نه استعفی ورکوم. زه له یوې مودې راهیسې په دې فکر کې وم چې د یوه پاپ

# جرم او دهغې سزا

سبا ته د جان مایکل خدمتګاری میریاته د هغه یو لیك ورور، د لیك له لوستلو وروسته د میریا باور نه کیده چی دا به مایکل لیکلی وی، هغی په وار وار له خدمتګاری نه پوښتل چی : آیا دا رښتیا د هغه لیك دی؟ او ختدمتګاری به د میریا د باور په خاطر په سپیځلی مریم سوګند وخوړ.

جان مایکل په ډیره عاجزی او شرمنده ګی عذر غوښتی ؤ، هغه لیکلی وو چی زه د خپلی پښیمانی او خفګان لپاره الفاظ نشم موندلی، زه ډیر شرمنده یم تاسوته معلومه ده چې زه د نشې په حالت کی وم. څکه خو زما هیله ده چی زما ګناه به د بخښنې وړ وبولی. زه وعده کوم چی بیا به هیڅکله هم د نشې په حال کی ستاسو کورته نه درځم، او زه به له انجیلا سره تر هغه وخته د خبرو هڅه ونه کړم تر څو دا پخپله پر دی اعتراف ونه کړی چی زما په اخلاقو کی ژور بدلون راغلی. زه به په پوره داډ د هماغه وخت انتظار کوم چی زما چلن هغه پر دې مجبوره کړی چی ما انسان وبولی. زه پوهیږم چی د شپی په پیښه ستاسو د کور دروازه زما پر مخ بنده شوه، خو تاسو داډه اوسی تر څو تاسو ما پخپله درونه غواړئ زه به ستاسو د دروازی ټکولو جرئت ونه کړم.

د جان مایکل د خدمتګاری له راتلونه لږ وراندی میریا د خپل خاوند په نامه یو اوږد لیك لیکلی ؤ خو د مایکل د لیك په لوستلو یی د هغه لیك له

لیکلی چې د شپې هغه په هوش کې نه ؤ او ډیر پښیمانه دی، هغه له مانه هیله کړې چې زه دده له لوري ستاسونه معذرت وغواړم.

میریا: هغه موږ ته هم دا لیك رالیږلی ته یې ولوله!

پاپ لیك د میریا له لاسه واخست او ویې لوست بیا یې وویل: هغه ماته هم همدغسې خبرې لیکلي ، زه ددې لپاره راغلی یم چې تاخو به خپل میره ته د شپې د پیښې په اړه څه احوال نه وي لیږلی؟

میریا : نه! ما لیك لیکلی دی خو استولی مې لانه دی!

پاپ : انجیلا لیك لوستی دی؟

میریا: نه!

پاپ: هغه راوغواړه زه څه خبرې ورسره کوم.

میریا: زه ستا د حکم نه سرغړاوی نه کوم. خو ښایي هغه اوس د جان مایکل په اړه څه خبره اوریدل ونه غواړي.

پاپ: زه د جان مایکل استازی نه یم!

میریا: ښه ده زه به یې راوغواړم.

پاپ وویل: دا لیك یوسه غوره دا ده چې میریا ماته تر راتلو د مخه دا ولولي. میریا د انجیلا راغوښتلو لپاره پاس وختله.

د شپې د رخصتیدو په وخت کې پاپ څه خبرې وکړې په انجیلا یې ډیر تاثیر وکړ. خو کله چې میریا د جان مایکل لیك دې ته ورکړ او ورته ویې ویل چې پاپ له تاسره لیدل غواړي نو دې سمدستي وویل: که پاپ د هغه شرابي د استازي په حیث راغلی وي نو زه هیڅ نه ورسره ګورم پرون یې ویل چې زه به د لوشه د کلیسا له مشرۍ استعفی ورکوم او اوس د یوه کرکجن انسان لپاره به ذلیل ترین خدمت نه شرمیږي.

انجیلا: نو هغه به په دې منظور راغلې وي چې زموږ تر منځ سوله او منځګړیتوب وکړي.

میریا: له هغه سره تر لیدو د مخه د هغه په نیت بدګوماني مه کوه.

انجیلا وویل: راځه او له ځایه جګه شوه.

پاپ انجیلا ولیده ویې ویل: لورې ! پرون ما درته ویلي وو چې له خپل منصب نه مې د استعفی اراده کړې، خو نن مې د مایکل لیک ولوست. هغه په خپل چلن ډېر شرمنده دی، که دا بدلون هسې اضطراري او لنډ مهال نه وي نو زه باید د استعفی په اړه بېړنی قدم اوچت نه کړم. له دې نه علاوه زه ستا د پلار تر راستنیدو پورې باید په لوشه کې پاتې شم. اوس دې مور ماته د مایکل بل لیک راوښود.

انجیلا وویل: ما هم دا لیک ولید.

پاپ: ددې لیک په باب ستا نظر څه دی؟

انجیلا: زه یوازې دومره پوهیږم چې حالاتو هغه د یوه لیوه د وحشیتوب پر ځای د یوه ګیدړ په مکارۍ غوره کولو اړ کړی دی. هغه خپله د کار لاره بدله کړې پخپله نه دی بدل شوی، هغه چې کوم ښکار په پنجو ونه وژلی شو اوس دام ورته غوړوي. او زه تر پښیدونکې مار نه چوپه او د جال په ځنډه کې غلې غنه خطرناکه بولم.

پاپ : امکان لري ستا ګومان پر ځای وي. د چا د زړه حال له خدایﷻ پرته چاته نه دی څرګند، په دې معامله کې زما خواخوږي له تاسو سره ده ، زه تا او ستا مورته دا مشوره درکوم چې له دې لیک نه وروسته تاسو ته په کار ده چې ده ته په ځواب کې داسې لیک واستوئ چې هغه ونه پاروي. زه تاسوته دا مشوره نه درکوم چې له هغه سره راشه درشه ولرئ. خو زه دا مشوره هم نه درکوم چې هغه ته تند ځواب ورکړئ.

ابوداود بوختیدنې داسې دی چې ځایی د غرناطې له فتحې وراندې راستون نه شي. د هغه په غیاب کې که تاسو له لږ تدبیر نه کار واخلې نو هیله ده چې هغه تاسو پریشانه نه کړي.

انجیلا وویل: هغه وعده کړې چې په راتلونکې کې به هغه مونږ نه پریشانه کوي. او تر څه وخته چې هغه پر خپله وعده پابند وي مونږ ته ددې ضرورت نشته چې ورسره تکر شو، که ته دا ګومان کوې چې زما د مور ځواب به د هغه وحشیانه فطرت بدلولی شي نو ته یې پخپله ځواب ولیکه ور ویې لیږه. تر کومه چې په ما پورې اړه لري، نو خدای شاهد دی چې که هغه تر زرو کلونو پورې عبادت وکړي او زه پخپل سترګو پرښتې ووینم چې له آسمان نه راکوزیږي او ده ته سلام کوي هم ترې کرکه او نفرت کوم.

*****

(۲)

له دې پیښې نه یوه میاشت وروسته فردیناند پر غرناطه حمله کړې وه، ملکې ازابیلا او فردیناند د غرناطې له فتحې پرته سوګند خوړلی ؤ چې نه به راستنیږي، خپل ټول پوځي ځواك یې د جګړې میدان ته رسولی ؤ، ابوداود هم له اشبیلیې نه د غرناطې یوه سرحدي ښارګوټي ته تللی ؤ او د خپلو فعالیتونو مرکز یې ټاکلی ؤ. هغه په تیرو څلورو میاشتو کې په سلګونو جاسوسان غرناطې ته استولي وو. هغه خپلې میرمنې ته لیك استولی ؤ چې غرناطه به زمونږ له اټکل نه هم وړاندې فتحه شي او پادشا سلامت ماته وعده راکړې چې په غرناطې کې به ده د نائب منصب راکوي.

په لوشه کې تر یوې میاشتې پورې جان مایکل میریا ته څه پریشانی جوړه نه کړه، له وروستۍ ملاقات نه وروسته د هغه په چلند کې ښکاره بدلون راغلی ؤ. د هغه خدمتګاره به یوه ورځ کې یو ځل د میریا دوی کره ورتله او

خوښه شوه چې د مایکل په دې بدلون کې د انجیلا رول دی، خو چې دا به یې په خیال کې ورغلل چې انجیلا په هیڅ صورت هم له هغه سره واده ته تیار نه ده نو زړه به یې ولویده او په جان مایکل به یې زړه وسوځید.

جان مایکل اوس زیاتې شپې د خپل سوداګر دوست کره تیرولې، او د ښار د بې کسه ځوانو سره د هغه چلند ډیر وحشیانه ؤ. میریا له دې خبرونه ناخبره وه، خو په ښار کې د مسلمانانو د بدې ورځې خبرونه به په یو دول ربیعې او له ربیعې نه انجیلا ته رسیدل، له جان مایکل نه د انجیلا کرکه ورځ په ورځ زیاتیده.

یوه ورځ پادري « پاپ» انجیلا ته ووېل چې تر یو دوو ورځو پورې جان مایکل د جګړې محاذ ته روانیږي او د هغه پر ځای له قسطلې نه بل ځوک راځي . سبا ته د کوتوال د میرمنې ځوا میریا ته د جان مایکل د رخصتیدو په وړاندې د میلمستیا د بلنې پیغام ورغی، میریا دې میلمستیا ته د انجیلا او ربیعې د بیولو هڅه وکړه خو هغوی دواړو انکار وکړ. میریا انجیلا ته نصیحت وکړ چې لوری هغه جګړې ته روان دی.

ستا په زړه کې باید له هغه سره هیڅ کینه نه وي پاتې شوې د ښار ټول عزتمندان به هلته راټول وي. که ته ولاړه نه شې نو ټول به پوه شي چې ستا او د هغه تر منځ څه ناوړه پیښه تیره شوې ده.

خو انجیلا پر خپل ضد ولاړه وه او میریا له مجبورۍ نه یوازې ولاړه، د ماښام په خړه کې چې کله میریا له خپل محل نه وتله جان مایکل یې په دروازه کې ولید. هغه د پوځ له څو تنو سپاهیانو سره ولاړ ؤ او څه خبرې یې ورسره کولې. میریا نوکر ته د ګاډي درولو امر وکړ او بهرته یې وکتل د لاس په اشاره یې جان مایکل ځان ته ور وغوښت.

میریا وویل: انجیلا ډیره بدله شوې ده، کله چې ته له جګړې راستون شې نو ستا په راتللو به هیڅ اعتراض نه کوي. زه لکه چې له وخته وړاندې روانه یم، ته هلته څه وخت راځې؟

جان مایکل : زه د خپلو دوستانو په انتظار یم، تاسو ورځئ زه هم در روان یم، مګر ته خو یوازې یې!

میریا: هو! افسوس چې د انجیلا طبیعت خراب دی ، که نه هغه له ما سره راتلو ته چمتو وه.

مایکل وویل: د هغې طبیعت زیاتره خراب وي هغه علاج ته اړتیا لري، ښه درځه نو!

کله چې د میریا ګاډې لږ لرې ولاړ، مایکل خپلو ملګروته وویل: د هغې یوه طبیب ته ضرورت دی او ما د ډیرو ناروغانو علاج کړی دی.

* * * * *

(۳)

ربیعه او انجیلا په پاس پوړ کې په یوه کوټه کې ډوډۍ خوړله ناڅاپه یې لاندې څه شور واورید. ربیعه وارخطا شوه ویې ویل: ښایي له احمد سره د چا جګړه ده.

انجیلا وویل: دا به جیمس وي زه به یې نن چاره وکړم، کله کله مې احمد ته هم غوسه راځي، هغه د سندا غوندې غټ دی خو هر نو کریې ډبوي.

ربیعې وویل: دلته هر مسلمان ، عیسوي خپل بادار ګڼي انجیلا خدمتګارۍ ته وویل: ورشه جیمس راوله زه یې نن چاره کوم، خو ناڅاپه په زینو کې د چا د پښو غږ اوچت شو او انجیلا وویل: ودریږه لکه چې هغه بخپله را روان دی، او س به له احمد نه شکایت کوي.

قدم وراندې شو او انجيلا څلور گامه شاته ولاړه، په دې موده کې ربيعه د شا د کوټې دروازې ته ولاړه، نوکره په خپل ځاى ولاړه وه او ريږديدله. جان مايکل وويل: د تيښتې او شور ماشور هڅه مه کوه هيڅ گټه نه لرى. اوس ستا مرستې ته هيڅوك نه راځي. ستا نوکران زما د سړيو په قبضه کې دي. مور دې زما د رخصتيدو په وياړ د کوتوال په ميلمستيا کې ده، تر څو زه هلته ورنه شم هغه دلته نشي راتلاى.

جان مايکل څو گامه نور هم ور وراندې شو انجيلا په منډه د کوټې په يوه کونج کې ودريده او چيغې يې کړې: ته وحشي يې، ته سپك يې په شرابو بې هوشه يې.

جان مايکل انجيلا ته د ځواب پر ځاى نوکرې ته وکتل ويې ويل: ته دلته څه کوې ! تښته، او هغه په منډه له کوټې نه وتښتيدله.

مايکل بيا انجيلا ته ور وراندې شو هغه يې گير کړه تر لاس يې ونيوه او د کوټې بل کونج ته يې راوستله. بيايې ربيعې ته پام شو ويې ويل: ته ددې خور يې !

خلکو دروغ نه ويل د اندلس برخه ښکلا توله خداى تاسو دواړو خويندو ته دربخښلې ده. مگر زه اوس يوازې د انجيلا لپاره راغلى يم، ته تلاى شې!

مگر ربيعه له خپل ځاى نه ونه خوځيده، مايکل چيغې کړې ! ورځه !

ربيعې په حقارت ورته وکتل ويې ويل: ته ډير زړه ور يې، د ښځو په مقابله کې ته ريښتيا هم ډير زړور ى، پر يوى نجلۍ د حملې لپاره دې يوازې ځوتنه له ځانه سره راوستي که نه ددې کار لپاره پوره پوځ ته ضرورت و.

ته خپل خنجر ولې نه راوباسې! انجيلا ورته وواېه چې زه تش لاس يم، د فرډيناند د ځانگړى افسر وار باېد خالي نه وي، که نه نو د کليسا په تاريخ

ستا به شان زړورو په همت يې بيړۍ د بې گناهو د وينو په سمندر کې لامبو وهي. زه تا پيژنم ته د ميړونو په وړاندې پسه او د ښځو په مقابل کې ليوه يې !

مايکل د زخمي ځناور په څېر ور وړاندې شو ربيعه يې تر دواړو متو ونيوله او د شاته کوټې په لورئ تيل وهله، هغه پر مخې وغورځيده په دې ځند کې انجيلا په منډه ورته او د زينو په لورې له کوټې نه بهر شوه، د مايکل چې ور پام شو، نو ربيعه جگه شوه دروازه يې بنده کړه او کولپ يې پرې واچاوه.

مايکل په انجيلا پسې منډه واخستله، انجيلا په منډه منډه کوزيدله او د مرستې لپاره يې چيغې وهلې، د نيمايې زينو له کوزيدو وروسته يې احساس کړه چې په مانۍ کې ددې د مرستې غږ ته د لبيك ويلو څوك نشته. ربيعه يې ورپه ياد شوه او پښې يې ځاى پر ځاى ودريدې.

ناڅاپه يې لاندې د څو تنو کرسندې خنداگانې واوريدې په زينو کې شمه بليده، سمدستي يې په لاس شمه وغورځوله او مړه يې کړه، د مايکل سړيو په کړس کړس خندل او په زينو کې پاس راختل. د انجيلا په زړه کې ورو گرځيدل چې که د پاسنې پوړ برندې ته ځان ورسوي نو چيغې او فرياد به يې د کلا د دروازې پهره داران واوري. بيرته په خپ غږ پورته وختله، د زينې په وروستي کړليچې يې يوه ويروونکې خندا واوريده او دا د مايکل مزبوتو متوته لويدلې وه. چيغې يې کړې: ظالمه ! مردار خوره لوچکه ! پرې مې ږده! پرې مې ږده! جان مايکل پورته راختونکو سپاهيانوته غږ وکړ: تاسو اوس د کلا په دروازه کې ودريږئ. تر څو زه غږ در ونه کړم يو هم دې خواته رانه شي، سپاهيان بيرته وگرځيدل او جان مايکل انجيلا چې چيغې او ترپکې يې وهلې بيرته همغې کوټې ته بوتله چې له ربيعې سره يې دودې

ظالمه! بې ناموسه، ما پرېږده! او د هغه په مزیوتو لاسونو کې یې ترېکې وهلې.

ناڅاپه جان مایکل په واپیلا شو، د هغه د لاس ګوتې د انجیلا خولۍ ته برابرې شوې، هغه په بل لاس د انجیلا مرۍ ونیوه او خپل لاس یې خلاص کړ. له دې نه وروسته مایکل لکه لیونی په یوه لاس د انجیلا مرۍ کلکه کړه او په بل یې د هغه جامې شکولې.

ناڅاپه د شا دروازه خلاصه شوه، د ربیعې په لاس کې برچه وه او غلې غلې ورنژدې شوه، د مایکل دې ته شا وه خو انجیلا ولیده، ربیعه چې مایکل ته ورنژدې شوه په پوره زور یې د برچې ګوزار پرې وکړ، هغه یو لټ وخوړ او په ځمکه ولوېد د برچې تیغ د هغه تر سینې بوټ وتلی ؤ او ترېکې یې وهلې، انجیلا له ربیعې سره غاړه غړې شوه، سلګۍ یې وهلې، ربیعې، ربیعې! ما داسې ګڼله چې زه دې پرېښودم او وتښتیدې، هغې ورته وویل: ما د برچې په موندلو ځنډ وکړ، د بهر نه د زینو له لارې د احمد کوټې ته ولاړم.

انجیلا: مګر دا خو دې وواژه، اوس به څه کیږي !

نه، نه ربیعې! تا هغه ونه واژه، ما وواژه. او زه د یوې لوېې محکمې په وړاندې دا ځواب ورکولی شم چه ولې مې وواژه. اوس بـه دده سپاهیان راشي، ته دې خپلې کوټې ته ستنه شه د خدای (ج) لپاره زرکوه!

ربیعې په داډ ځواب ورکړ: نه انجیلا! ته ماردې نیکۍ له ثواب نه مه محرومه.

انجیلا : نه ربیعې، زه تا دې ته نه پرېږدم، نه نه هیڅکله نه! انجیلا په زوره زوره وژړل.

ربیعې وویل: انجیلا! ستا جامې! ستا ټول بدن لوڅیږي، ورشه جامې دې

دی. دی د ملکی د دوستانو څخه دی چا وواژه!

ربیعی وویل: ته له مانه په دی اره د څه پوښتلو حق نه لری ورشه کوتوال خبر کړه.

مگر هغه به دده په بدل کی مور تول په دار وځړوی زه له تگ نه وراندی د هغه د قاتل نیول ضروری بولم.

ربیعه: هغه ما وژلی دی.

سپاهی یوه شیبه حیران شو ربیعی ته یی کتل.

ربیعی چیغی کړی: ولی نه ځی! ماته څه گوری، آیا ته په دی نه پوهیږی چی ددی ښار اصلی والی زما پلار دی. هغه ددی ښار حاکم نه د فردیناند دوست هم دی، ته د داسی سړی ذمه واری ولی اخلی چی شراب خوری او د شریفو خلکو کورونو ته ورلویږی. زه دا پوښتم چی ته هغه وخت چیرته وی چی په دی کوټه کی د یوی بی وسه نجلی کریږی پورته کیدی. تاسو بهر په کرس کرس خندل، زه درته امر کوم چی ورځه! که نه تا ته به سپه نه وی او واوره تر څو کوتوال رانه شی ستاسو کوم ملگری ته د پورته راتلو اجازه نشته.

سپاهی د پریشانی په حالت کی پریکړه نشوای کولی چی څه وکړی هغه ربیعی ته وکتل او بهر ته ووت.

*****

(۵)

د سپاهی له وتلو نه لږ وروسته ربیعه له کوټی نه ووتله او په برنډه کی ودریده لاندی یی وکتل. د انجیلا له کوټی نه د وره ټکولو غږ راته. ربیعه د هغی د کوټی په لوری ورتله خو په وره کې یې پښې ودریدی. د انجیلا غږ اوریدل کیده: ربیعی! ربیعی! ربیعه تر لږ ځنډه زړه نازړه ولاړه وه او بیا

زه به له دوی نه د رحم غوښتنه هم ونه کړم، زما پلار د قوم غدار دی هغه باید د خپلې غدارۍ انعام واخلي، امکان لري زما له قربانۍ وروسته پر هغه د توبې دروازه خلاصه شي.

ربیعي د محل د دروازې له لورې د خلکو شور واورید، دی د برنډې په لورې منډه واخسته، یو ځل یې له شاته کتلو وروسته بیرته مخ راوګرځاوه او راستنه شوه ویې ویل: انجیلا! خلك په دروازه کې راغونډېږي، سپايي د کوتوال له کوره یې څوك په پوښتنې پسې راوتلي وي. د مایکل خلك به دده د پوښتنې لپاره دلته راشي نو زه څم خدای پامان!

انجیلا چیغې کړې: نه نه ! ربیعي! ربیعي مه ځه زما خبره واوره. زه د مرګ تر غېږې ستا سره ملګرتیا کوم، ربیعي ودرېږه! ربیعي ربیعي! ... ربیعه تللې وه.

*****

(٤)

له انجیلا سره تر خدای پاماني وروسته ربیعه همغې کوټې ته ولاړه چې د جان مایکل مړی پکې پروت ؤ. د هغه وینه په قالینه وچه وه. څېره یې ډېره ویروونکې شوې وه، ربیعي له بلې کوټې نه یو څادر راوړ د هغه په مخ یې وغوړاوه او په یوه کرسۍ کیناسته.

لږ څند وروسته یې په زینو کې د چا د پښو غږ واورید، څوك وره ته راورسیدل غږ یې وکړ: باداره! ډېره ناوخته شوه! دکوتوال خلك دي په لټه کې دي، دلته درپسې راغلل.

ربیعي د خپل زړه درزا راقابو کړه. جګه شوه ور یې خلاص کړ بهرته یې وکتل ویې ویل: دلته راشه زما په کوټه کې د یوه شرابي مړی پروت دی ته یې پیژنې!

دی. دی د ملکی د دوستانو څخه دی چا وواژه!

ربیعی وویل: ته له مانه په دی اړه د څه پوښتلو حق نه لری ورشه کوتوال خبر کړه.

مګر هغه به دده په بدل کی مونږ تول په دار وځړوی زه له تګ نه وړاندی د هغه د قاتل نیول ضروری بولم.

ربیعه: هغه ما وژلی دی.

سپاهی یوه شیبه حیران شو ربیعی ته یی کتل.

ربیعی چیغی کړی: ولی نه ځی! ماته څه ګوری، آیا ته په دی نه پوهیږی چی ددی ښار اصلی والی زما پلار دی. هغه ددی ښار حاکم نه د فردیناند دوست هم دی، ته د داسی سړی ذمه واری ولی اخلی چی شراب خوری او د شریفو خلکو کورونو ته ورلویږی. زه دا پوښتم چی ته هغه وخت چیرته وی چی په دی کوته کی د یوی بی وسه نجلی کریږی پورته کیدی. تاسو بهر په کرس کرس خندل، زه درته امر کوم چی ورځه! که نه تا ته به ښه نه وی او واوره تر څو کوتوال رانه شی ستاسو کوم ملګری ته د پورته راتلو اجازه نشته.

سپاهی د پریشانی په حالت کی پریکړه نشوای کولی چی څه وکړی هغه ربیعی ته وکتل او بهر ته ووت.

* * * * *

(۵)

د سپاهی له وتلو نه لږ وروسته ربیعه له کوتی نه ووتله او په برنډه کی ودریده لاندی یی وکتل. د انجیلا له کوتی نه د ورو ټکولو غږ راته. ربیعه د هغې د کوتی په لوری ورتله خو په وره کې یې پښې ودریدی. د انجیلا غږاوریدل کیده: ربیعی! ربیعی! ربیعه تر لږ ځنده زره نازړه ولاړه وه او بیا

پاماني اخسته، خو دا تولې دلچسپۍ پر خپل ځای وې.

د ژوند تکرونو د ربیعې له زړه نه د بدر بن مغیره هیله ونه ایستله، توپان تیر شوی ؤ اوس یې په سره سینه د خپل راتلونکې په باب سوچونه کول. دا د زندان له تیارو نه نه ویریده، په دار له ځړیدلو او یا په اور کې له سوځیدلونه نه ویریده. د مرګ څیره دی ته ویروونکې نه وه، خو په زړه کې د بدر بن مغیره له هیلو سره مرګ ته زړه کول، دې ته ډیر ګران وو، په زړه کې وروګرځیدل: کاشکې له مرګه وړاندې مې یو ځل لیدلی وای. کاشکې هغه ته یې دا ویلې شوای چې په نوې ژوند کې به دې په انتظار وم. کاشکې دا د هغه لپاره ژوندی پاتې وای. کاشکې ددې له مرګه وروسته دې سپوږمۍ او ستورو بدر ته دا ور په یادولې. هغه ته یې دا ویلې شوای چې ددې په ژوند کې داسې ماښام نه ؤ چې ستا له یاده به تش ؤ.

ربیعې په خپل زړه کې وویل: مګر دا زه په څه سوچونو سریم، بدر یوازې زما نه د تول قوم سپاهي دی. هغه زما په شان د زرګونو نجونو د عصمت د دفاع لپاره جنګیږي. زه څومره نادانه یم، زه ګومان کوم چې هغه به هم اوس په کومه لوړه غونډۍ ولاړ وي او دا سپوږمۍ او ستوري به ویني. او دوی به ده په زړه کې زما یاد ورتازه کوي. زه فکر کوم چې هغه به زما آهونه اوري. زما اوښکې ویني خو دا د هغه سپکاوی دی. د هغه تصور یوازې زما تر ذاته پورې نشي ایساریدای. هغه به اوس د زرګونو بې وسه نجونو فریادونه اوري. د هغوی اوښکې به ګوري د اوښکو او آهونو په دې توپان کې به ده ته زما غږ پیژندل له امکان نه لرې وي. هغه به په کومه غونډۍ د دریدو او له سپوږمۍ سره زما د یادولو پر ځای داسې وایي چې: تا زما د اولس عروج هم لیدلی نن یې زوال هم وګوره! تا په دې ځمکه د طارق او عبدالرحمن دبدبه او جلال هم لیدلی، نن د ابوعبدالله ذلت او زوال وګوره،

ایښودل؟، آیا دا هماغه اولس دی چې بچیان یې د یوې غریبې خور د عزت په خاطر لوپې لوپې پاچهۍ تر پښو لاندې کړې؟

لږ څه وروسته چې کله ربیعه بیرته راګوزیدله د زړه بوج یې سپک شوی ؤ. له ځانه سره یې ویل: ربیعې! د تولنیزو مصیبتونو په دې دوران کې ستا ژوند هیڅ ارزښت نه لري خو که ته وغواړې خپل مرګ دې د اندلس د تاریخ یوه د یاد وړ پیښه ګرځولی شې، که مرګ حتمي دی نو په زړورتیا باید ورسره مخ شې ته باید دا ثابته کړې چې د ظلم لاس د کرکې وړ دی ویروونکی نه. ستا او د پلار د ژوند مقصد یو دی، هغه د باطل پر خلاف جنګیږي ته د حق په خاطر قرباني ورکوې، د قیامت په ورځ به ته د هغه لمن ونیسې او دا به وایې چې موږ دواړه په دنیا کې یو د بل ملګري وو.

* * * * *

(٦)

د ښار کوتوال، د پوځ څوتنه منصبداران، پادري او څوتنه مشران د مایکل د مړي په شاوخوا راټول وو،

کوتوال هغه سپاهي ته بد رد ویل چې ددې پیښې خبر یې وروړی ؤ:

ته ډیر احمق یې له دې محل نه به د وتلو څولارې وي، هغه حتماً له ماڼۍ نه تښتیدلې ده. تا خپلو ملګروته د ماڼۍ د دروازې بندولو هم ونه ویل تا ولې هغه ونه نیوله؟

کوتوال بیا د پوځ او پولیسو منصبدارانو ته پام واړاوه ورته وېې ویل: تاسو څه ننداری ته راغلي یاست! ورځئ ښار کلابند کړئ او د مسلمانانو د کورونو تلاشي پیل کړئ، څه کسان ددې محل د تلاشۍ لپاره پرېږدئ. ربیعه د برنډې له لاري کوټې ته ورننوته او وېې ویل: د محل د تلاشۍ ضرورت نشته!

کوتوال: دده په وژلو کې بل څوك درسره شريك وو؟

ربيعه: نه!

ميريا ساه نيولې سيليدلې کوټې ته ورننوته وې ويل: ربيعې! انجيلا چيرته ده، هغه چيرته تللې څه پرې وشول، د خدای په خاطر ووايه!

ربيعې ځواب ورکړ: انجيلا همدلته ده، ته له هغې نه بيغمه اوسه.

ميريا: هغه چيرته ده؟

ربيعه دغه مرحله کې چې وليد ډېره پريشانه شوه، چيغې يې وهلې او په يوه او بله خوايي منډې وهلې، ما هغه ددې د خوب د کوټې تر څنگ په بله کوټه کې بنده کړه. خوته يې اوس دلته مه راوله دا به د هغې لپاره غوره وي، زه ويريږم چې دا مړه وگوري بيا به د بيهوشی دوره پرې راشي.

ميريا په منډه د انجيلا کوټې ته ورسيده، او انجيلا! انجيلا! چيغې يې وهلې او د همغې کوټې دوره په لوري ورنږدې شوه.

انجيلا له ننه نه چيغې کړې: ربيعه چيرته ده! د خدای(ج) په خاطر ورخلاص کړې، هغه ما وژلې دی، هغه ما وژلی. ربيعه بې گناه ده.

د ميريا لاس تر کولپ پورې ورسيد خو ودريد او بيايې منډه کړه د دهليز خواته خلاصه کړکۍ يې بنده کړه.

بل لوری ته د ښار کوتوال له عجيب کشمکش سره لاس او گريوان ؤ د جان مايکل وژل معمولي خبره نه وه، خو د هغه قاتل د داسې چا لور وه چې فرديناند ډېر پرې مهربانه ؤ. د محکمې له پريکړې نه وړاندې ده ته د والي د لور نيول او له عامو بنديانو سره يې جيل ته اچول ډېر گران وو. له دې سره سره هغه پر دې هم ويريده چې که له دوه زړه توب او غفلت نه کار واخلي نو نه يوازې دا چې د ښار دعيسويانو ذهنيت به يې پرخلاف شي بلکې د اندلس ټول پوځي منصبداران به يې دښمنان شي.

هغه په دې سربېره چې شرابي او بدخويه سړی ؤ خو يو خاص منصبدار ؤ او ربيعه د ابو داود د لور سره يوه مسلمانه نجلۍ ده. خو هغه پر دې خبره اندېښمن ؤ چې ابوداود به د خپلو خدمتونو په بدل کې د خپلې لور پر خلاف د هرې سترې محکمې پرېکړه بدله کړای شي،

کوتوال له پاذري نه مشوره وغوښته هغه ورته وويل:

زما په نظر تر څو د محکمې لخوا کومه پرېکړه نه وي شوې دغه نجلۍ دې په همدې محل کې په کومه کوټه کې بندي وي. يا لږ تر لږه څو نوی والي نه وي راغلی دا بايد له عامو بنديانو سره يو ځای نه وي. په دې موده کې بنايي د پادشا سلامت له خوا هم ددې نجلۍ په باب څه هدايات راشي.

*****

(۷)

يوه اونۍ د انجيلا تېزه تبه وه، کله به چې هغه په هوش راغله چيغې به يې وهلې« ربيعې! ربيعې! جګه به شوه، کله کله به يې منډه کړه او له کوټې نه به يې د وتلو هڅه وکړه خو څوګامه به چې ولاړه بېهوشه به شوه او ورپه لوېده، کله به ميريا د نوکرانو په مرسته هغه په زور بېرته په بستره څملوله. دې به د بې وسۍ په حال کې چيغې وهلې: ما پرېږدې، پرې مې ږدې چې ربيعې ته ورشم، مايکل ما وژلي. هغه زما په سبب وژل شوی، هغه زما د ژغورنې په خاطر ځان قربانوي.

ميريا به وويريده ورپه يې تمبه کړ، د ښار ښځې به يې چې پوښتنې ته راغلې په يوه او بله پلمه به يې د انجيلا کوټې ته نه ور پرېښودې، له ميريا سره دا اندېښنه هم وه چې په دې ورځو کې ابو داود راته شي، هغه پر دې وېريده چې د انجيلا لپاره به هغه د ربيعې قرباني ونه زغمي. له ربيعې سره يې تر انجيلا نه زياته مينه کوله، ځکه خو ميريا ددې پېښې احوال هم ورته

ته باید سخته سزا ورکړای شي، د هغه په مرګ د عیسویانو د احساساتو دا حالت ؤ چې له جنازې ښخولو نه وړاندې یې ډیر مسلمانان ووژل شول.

د ښار کوتوال د اشبیلیې حکمران ته ولیکل چې که دې نجلۍ ته ژرترژره سزا ورنکړای شوه نو په ښار کې د ډېرې بد امنۍ او هنګامې خطر دی. فردیناند ته دا خبر د جګړې په ډګر ورسید، که وژل شوی ځوم بل ځوك وای نو ښایي ددې معاملې د غلې کولو هڅه یې کړې وای خو مایکل دده خاص افسر ؤ د ملکې د نژدې خپلوانو نه ؤ. او ملکې دا نه اوریدل چې قاتل ځوك دی او د هغې پلار څومره خدمتونه ورته تر سره کړي. جان مایکل په هر صورت یو خاص افسر ؤ او قاتل یې یوه مسلمانه نجلۍ.

که ښېر میاشتې وړاندې دا پیښه شوې وای هم نوښایي فردیناند به د ابوداود د زړه آزارولو نه ځان ساته، مګر اوس له هغه نه کار اخستل شوی ؤ. اوس د هغه د نه ستومانیدونکو هڅو په نتیجه کې د اندلس په هر ښارکې ډیر وطن پلوري پیدا شوي وو. هغه مشران او علما چې ابوداود ووژل او غرناطې ته یې د جاسوسانو په ښه واستول اوس یې تیغ په تیغه له فردیناند سره اړیکې پیدا کړې وې. هغوی د ډیر انعام په تمه د خپلو فعالیتونو راپور د ابو داود پر ځای تیغ ملکې او فردیناند ته ورکاوه، پادشاه او ملکه اوس داده وو چې له دوی سره په سلګونو داسې کسان شته چې د ابوداود ځای ډکولی شي هغوی پر دې هم پوهیدل چې د غرناطې د پاتې ځواك د ماتولو لپاره دوی ته د سپاهیانو دتوږو اړتیا ده او که د مایکل قاتل ته سزا ورنکړای شي لوی لوی افسران به مخالفت وکړي.

ملکې پادشاه ته وویل: آخر زمونږ د جګړې هدف له دې پرته بل څه دی چې پر مسلمانانو د کلیسا عظمت ومنو، آیا دا د کلیسا لپاره رسوایي نه ده چې یوه مسلمانه نجلۍ د مایکل په څېر منصبدار ووژني او موږ یې بدل

که هغه موږ ته دوکه نه راکوي نو له دې مجلس سره باید هيڅ خواخوږي ونه لري چې زموږ يو غوره منصبدار يې وژلی، دغه مجلس مسلمانه ده او مايکل يې د مذهبي جنون په وجه وژلی.

موږ د ابو داود د خدمتونو په بدل کې ده ته کم انعام نه دی ورکړی، د لوشه والي مو وتاکه، دا واك مو ورکړ چې زموږ له خزانې نه څومره مصرفولی شي مصرف دې يې کړي.

اوس د وفادارۍ غوښتنه دا ده چې که موږ د کومې دعوې د پريکړې اختيار ده ته وسپاره دی هم بايد خپلې لورته په سزا کې څنډ ونه کړي.

فرديناند ووېل: زه ويريږم چې که هغه راشي زه به د محکمې د پريکړې په بدلولو اړ شم.

ملکه غوسه شوه ويې ويل: ته پاچا يې او ستا ملکه دا نشي زغملی چې يو نوکر دې تا د کليسا د محکمې د پريکړې په بدلولو مجبور کړي.

د ملکې په اصرار پاچا نوي والي ته دا فرمان وليږه چې مجرم ته د سزا په ورکولو کې څنډ مه کوي.

* * * * *

(۸)

ربيعه د محکمې په مخکې ولاړه وه، بهر او د ننه د خلکو گڼه گونه وه. دپادريانو قاضيانو لوی پاپ ته خپله پريکړه ورکړې وه. ربيعې پر خپل جرم اعتراف کړی ؤ. کوتوال د نوکرانو له شاهدۍ وروسته په محکمه کې د نورو گواهانو وړاندې کولو ضرورت نه احساساوه. دوی ورځې وړاندې چې ربيعې د محکمې په مخکې څه ويلي وو پر هغې يې ځان د بدترينې سزا وړ ثابت کړی ؤ، هغې پر دې محکمه پورې خندلي وو، د کليسا سپکاوی يې کړی ؤ هغې ويلي وو:

ورماتولې، چې بې وسه او بې ګناه ځوانو به په کرېږ کرېږ ستاسونه مرسته غوښته. کله به چې هغوی وېل: د عدل او انصاف اجازه دارانو! راشي زموږ آبرو لوټېږي موږ وژغوري.

تاسو ته پر ما د دعوی چلولو ضرورت نشته، تاسو د محکمې له پرېکړې پرته ماته سزا راکولی شئ، د کلیسا د عظمت د ساتنې په خاطر تاسو زما په څېر په سلګونو ځوانې بې له کومې پرېکړې او عدالتي فیصلې وژلې دي. ستاسو لمنې د بې ګناهو په وینو داغداري دي. زما د وینو څو څاڅکي به په بد بڼکارېدو کې څه زیاتوالی نشي راوستلای تاسو عدل نشي کولی او زه له تاسونه د رحم سوال کول د انسانیت سپکاوی ګڼم، تاسو تر اوسه له مانه دا ونه پوښتل چې هغه ما ولې وواژه، تاسو له مانه ونه پوښتل چې هغه زما کوټې ته په کوم نیت راننوتی و، ستاسو لپاره یوازې دا بس ده چې هغه ما وواژه.

یوې مسلمانې نجلۍ د خپلې آبرو د ساتنې په خاطر ستاسو یو خاص منصبدار وواژه، تاسو داسې ګڼئ چې ددې ځناور په مرګ ستاسو د کلیسا یوه ستنه ونړېده. تاسو مجبور یاست چې ماته سزا راکړئ. زما سره انصاف ستاسو د وس خبره نه ده، تاسو په اندلس کې د کلیسا د نوې ماڼۍ معماران یاست. تاسو ددې بنسټ د بې ګناهانو په وینو او هډوکو ایښی دی.

زما د مرګ لپاره د فتوا ورکولو په خاطر تاسو باید همدومره پوه شئ چې زه بې ګناه یم. ما د خپل عزت ساتلو هڅه کړې زه یوه مسلمانه یم، ځکه خو زما وینې او هډوکي د کلیسا د ماڼۍ په جوړېدو کې کارېدلی شي. ما یوازې یو جان مایکل وژلی. خو تاسو هر یو جان مایکل یاست. هغه به په شرابو بد مست شو او بې وسه مسلمانان به یې وژل، او تاسو د عدالت

اورولو ته تیار نه ؤ چې نور پادریان ورسره هم نظره وو. دده پرېکړه دا وه چې نجلۍ دې جلا وطنه کړای شي، ده په جان مایکل هم د جرم تور لګولو هڅه کړې ده. د والي او پادریانو دا نظر ؤ چې په «جان لوقس» ربیعې کودې کړې دي. څکه خو د پرېکړې په ورځ د لوی قاضي پر کرسۍ یو بل پادري ناست ؤ. د محکمې د ننه او بهر چې خلك راټول وو په دې پوهېدل چې پرېکړه به څه وي. ربیعې د کلیسا د محکمې سپکاوی کړی ؤ. هغې د کلیسا یو ساتندوی وژلی ؤ. څینو کسانو ته د پادري لوقس د نه راتګ سبب معلوم شوی ؤ او هغوی ربیعه یوه خطرناکه جادوګره بلله، خلکو یو له بل سره ګونګوسې کاوه: هغه به په دار وځړوي، په شکنجه کې به یې ووژني او که به یې ژوندۍ وسوځوي؟!

یوه پادري خلك چوپ کړل او بیا لوی پادري پرېکړه اعلان کړه خلکو ربیعې ته کتل، د هغې د مرګ حکم جاري شوی ؤ، خو هغه چوپه وه، کله چې قاضي وویل چې ملزمې ته د کلیسا او محکمې د سپکاوي نه وروسته د سختې سزا ورکولو حق ؤ خو ددې د پلار د خدمتونو په‌خاطر محکمه دې ته د ژوندۍ سوځولو پر ځای د مرګ سزا اوروي. ناڅاپه یوه ځوانه نجلۍ د خلکو په منځ کې راتېره شوه وراندې ولاړه او ربیعې ته ورنږدې شوه چیغه یې کړه: ودرېږئ د انسانیت او عدالت خون مه اخلئ. جان مایکل ما وژلی!

په محکمه کې چوپتیا خوره شوه.

ربیعې تکان وخور نجلۍ ته یې وکتل، هغه انجیلا وه، قاضي، پادریان او ټول حاضر خلك تر لږ څنډه حیران دریان ودریدل، انجیلا په خپل بغل کې یوه وړوکې غوټه نیولې وه.

ربیعې قاضي ته وویل: ته اندیښمن کېږه مه، دا زما ناسکه خور ده، ددې پر دماغ د هغې پېښو ډېر بداغېز پرېوت دی.

کې بندي کړم، له هغې وروسته څو ورځې زه بې هوښه وم. زما مور زما په کوټه پهره درولې وه، زما د خور په څېر هغه هم زما د ژغورنې هڅه کوي.

قاضي وویل: ته اوس هم ناروغه ښکارې، ستا د اعتراف له اخستلو نه وړاندې محکمې ته دا ضروري ده چې ستا د دماغي حالت ازموېښت وکړي.

انجیلا وویل: زما په دماغ یوازې دا بوج ؤ چې زما بې ګناه خور زما لپاره خپل ژوند قربانوي، نور دا بار زما له دماغه لرې شو.

قاضي : عدالت ته د ثبوت اړتیا ده.

انجیلا: ثبوت! داوګوره! انجیلا ور وړاندې شوه د جامو وړه غوټه یې د قاضي په میز کېښوده ویې ویل: دا په څېر وګوره، دا هغه جامې دي چې په هغه شپه مې اغوستې وې، چې ستاسو زړور منصبدار څیرې څیرې کړې. دا جامې به ذدې خبرې ګواهي ورکوي چې د وژلونه وړاندې د کلیسا زړور سپاهي د چا لمن ته لاس اچولی ؤ.

په محکمه کې یو ځل بیا چوپتیا خوره شوه.

د میریا ساه لنډه لنډه کېده او د محکمې کوټې ته ورننوته، وړاندې ولاړه او انجیلا یې په غېږ کې ونیوه: انجیلا! زما لورې ستا طبیعت ښه نه دی راځه کور ته ځو، دایې وویل او انجیلا یې ترمټ ونیوله او بهر ته یې د کشولو هڅه وکړه.

قاضي وویل: ودرېږه! زه یو څو پوښتنې کوم.

انجیلا یې د مور لاس وښنده، میریا په هیله منو سترګو قاضي ته وکتل ویې ویل: زما لور له دې قتل سره هیڅ اړه نه لري دا ناروغه ده حواس یې پر ځای نه دي.

قاضي غوټه خلاصه کړه میریا ته یې شلېدلې جامې وروښودې ویې ویل: ته یې پېژنې دا جامې د چا دي؟

ګلداني پر سر وواهه او ځان مې وژغوره.

ستا سره اوس هم هغه ليك شته چې هغه پر خپل حرکت پښيماني ښودلې وه، له هغې وروسته په دې بله شپه په ډېره هوښياري هغه ته له کوره لرې وليږلې او د خپلو پستو هدفونو لپاره زموږ کور ته راغې، ته کورته راتلې خو کوتوال نه پرېښودې چې راشې.

بيا انجيلا قاضي ته مخ واړاوه ويې ويل: مور ته مې ښايي مينه د حق ويلو اجازه ورنه کړي. خو لوی پادري لوقس به پردې خبرې ګواهي ورکړي چې زما په اړه د مايکل نيت سمې نه ؤ، ما د لوقس په مخکې له هغه سره له واده انکار وکړ. او دې د خپل سپکاوي د بدل لپاره د يوې مناسبې موکې په لټه کې ؤ. ميريا په ډېره بې وسۍ قاضي ته وکتل ويې ويل: سپيڅلې پلاره! زما لور بې ګناه ده، پردې د ربيعې د جادو اغيزه ده، هغې زما لور له مذهبه اړولې ده، د ربيعې د کوډو په وجه اوس زما لور غلې غلې قرآن لولي او لمونځ کوي. ماله مايکل سره ددې د واده هڅه کوله خو ربيعې دا دوکه کړه، ربيعه د جادوپه زور چې څه وغواړي پر دې يې کولې شي. انجيلا معصومه ده په دې نه پوهيږي چې څه وايي. دا ټول د ربيعې د کوډو اثر دي. زه ويريږم چې په پادري لوقس هم د ربيعې د جادو اغيزه نه وي شوې. په کومه ورځ چې مايکل وژل شوی دی له هماغې ورځې زما لور د جنون په ناروغۍ اخته ده، ورماتوي او بهرته د وتلو هڅه کوي دا جامې چې ته يې ګورې د همدې ليونتوب په حالت کې دې پخپله داسې څيرې کړې دي.

انجيلا په حقارت خپلې مور ته وکتل او بيايې قاضي ته وکتل ويې ويل: زما خور زما ګناه پر خپل سر اخستې ده، که زما په باب ددې نيت خراب وای داسې به يې نه کول، خو زما مور ددې له ايثار نه د اغيزمن کيدو پر ځای يوازې زما د ژوند ژغورلو لپاره پر حقيقت پردې اچوي، ګومان

زه چې په څه خفه يم هغه دا چې ما تر اوسه لمنځونه پټ کول ، دا زما بې زړه توب ؤ، خو اوس زه د مرګ او ژوند له مفهوم سره آشنا يم، اوس له ماسره د چا ويره نشته که د مسلمانيدو څه سزا وي زه ورته چمتو يم، خو تر کومه چې د مايکل د وژلو خبره ده دا کوم ګناه نه ده. هغه يو ځناور ؤ يو بد معاش ؤ. دا محکمه د هغه په باب ښکه انديښمنه ده چې هغه د ملکې خپلوان ؤ. کاشکې ملکې ته دا معلومه وای چې د نړۍ هره ښځه په ځانګړي ډول هغه ښځه چې د توحيد کلمه وايي خپله آبرو تر ژوند ګرانه بولي. د کليسا محکمه پر دې خبره خفه ده چې د خلکو په زړونو کې د کليسا د هيبت کښېنولو يو لاس غوڅ شو. خو کاشکې هغه لاس چې زما جامې يې څيرې پيرې کړی کله د کليسا د علمبردارانو دخوپندو او لونو په لور هم ور اوږد شوی وای.

د قاضي، پادريانو او نورو حاضرو خلکو حوصله او زغم پای ته ورسيد، قاضي په دروند غږ وويل: ګستاخي نجلۍ چوپه شه! خو د انجيلا غږ نور هم اوچت شو، هغه په دې حالت کې نه پوهيده چې څه وايي. د ښار نوی والي دان لويي چې د دعوی په نوي جنجال خبر شو راغی د محکمې په دروازه ولاړ ؤ او د انجيلا خبرو ته يې غوږ نيولی ؤ. انجيلا د کليسا په عدل او انصاف پورې ملنډې وهلې، هغې تر دې پورې وويل چې تاسو په غريبانو ، بيوسه او تش لاسو ظلم کوی خو د زورور په وړاندې د پسونو په څير شي. تاسوته د اته سوه کالو غلامي ورسته د حکومت موکه په لاس درغله خو دا موثابته کړه چې اهل يې نه ياست.

دان لويي وروړاندې شو وې ويل: زه د محکمې دا سپکاوی نشم زغملی، دې نجلۍ ځان د بد ترين سزا مستحق ثابت کړ، دا کليسا

کولو حق په جانب یم چې یوه لیونۍ سپۍ ته زما د غوښو د شکولو اجازه ورکوي خو ما ته د هغه د کوپړۍ ماتولو اجازه نه راکوي.

د والي په اشاره سپاهیانو انجیلا په ډیکو وایستله هغې همداسې چیغې وهلې، تاسو ظالمان یاست، تاسو وحشیان یاست، تاسو هغه بې غیرته یاست چې په هنداره کې ځپلې خیرې ته نشې کتلې، میریا بې هوشه شوه او په ځمکه راپریوته، سپاهیانو هغه هم پورته کړه بهر ته یې یوړه ربیعه تر اوسه په محکمه کې پر خپل ځای ولاړه وه، والي ورورباندې شو د قاضي په غوږ کې یې څه وویل او هغه له سرخوځولو وروسته ربیعې ته وکتل ویې ویل: ته دا منې چې جان مایکل انجیلا وژلی.

ربیعې ځواب ورکړ: ما خپل بیان بشپړ کړی، زما په باب محکمې پریکړه اعلان کړې، ځکه خو زه دنورو څه ویلو ضرورت نه وینم، انجیلا چې څه وویل د ناروغۍ په حالت کې یې وویل، د مایکل له وژلو سره د هغې هیڅ اړه نشته.

قاضي پوښتنه وکړه: ایا دا رښتیا ده چې انجیلا له خپل مذهب نه بې لارې شوې ده؟

ربیعه: نه انجیلا بې لارې شوې نه ده هغې رښتینی دین غوره کړی ، والي بیا د قاضي په غوږ کې څه وویل او هغه د سر له خوځولو نه وروسته وویل: ددې دوسیې په اړه د ناڅاپي بدلونونو په خاطر عدالت د ربیعې په باب خپله اعلان کړې پریکړه بیرته اخلي، د ربیعې د ناسکه خور د اعتراف نه وروسته محکمه په دې نظر ده چې د مایکل په وژلو کې د دواړو خویندو لاس دی. پر دې علاوه دواړه له حکومت نه پر بغاوت او د کلیسا پر خلاف دکرکې خپرولو په جرم ککړې دي، پولیسو ته د پلټنې د موکې په خاطر د محکمې جریان تر سبا پورې موقوف دی.

ته کتل بیا ناڅاپه جګه شوه او کښیناسته ویې ویل: انجیلا چیرې ده، زه چیرته یم؟
د نوکرې په سترګو کې اوښکې راغلې ویې ویل: انجیلا له ربیعې سره بندي ده.
میریا ته د محکمې ټولې پیښې ورپه یاد شوې له بستري نه راکوزه شوه ودریده ویې ویل: زه والی ته ورځم ، هغه زما له لور سره داسې سلوك نشي کولی.
نوکره ورجګه شوه تر لاس یې ونیوه ویې ویل: ستا طبیعت ښه نه دی، ته د بهر وتلو نه یې.
میریا وویل:نه زه بلکل روغه یم. خو زه چیرته یم په محکمه کې لکه چې زه بې هوښه شوم، دا د چا کور دی؟.
د خدمتګارې د ځواب له انتظار پرته میریا له وره نه بهرته وکتل او بیایې نوکرې ته مخ واړاوه ویې ویل: دلته خو هیڅوك هم نشته، زه دې ویجاړ کورته چا راوستې یم، ایا زه خوب وینم، زما د کور سامان دلته چا راوړی؟
نوکرې د ځواب پر ځای په زوره زوره وژړل، پادرې لوقس انګړ ته ورننوت او میریا چې هغه ولید له کوټې نه ور ووته په ربړیدلې لهجه وویل: سپیڅلې پلاره ! دا څه لوبه ده! زه چیرته یم، زما د کور سامان تیت پرك پروت دی نوکره ځواب نه راکوي.
پادرې په بې پروایی ځواب ورکړ: دا ټول ستا د کړو وړو سزا ده.
میریا حیرانه شوه یو ګام په شا ولاړه او د ډیرې بې وسې په حالت کې یې پادرې ته کتل. له یوې شیبې وروسته یې د بهر دروازې په لورې منډه واخستله ، بهرته یې وکتل او بیرته یې پادرې ته مخ واړاوه ویې ویل:

له محکمې نه به د انجيلا گناه پته شي. کاشکې تا په لومړي ورځ انجيلا د محکمې له تگ نه نه واى راگرځولى، هغه وخت چاته دا نه وه معلومه شوې چې دا مسلمانه شوې ده ستا سره ددې پوره ثبوت ؤ چې مايکل ستاسو کورته په بد نيت ننوتلى ؤ. که ستا حماقت نه واى نو اوس به ددې دوسيې پريکړه بلکل بدله واى. خلکو به دا گنله چې انجيلا يوه عيسوى نجلۍ ده، پاچا او ملکې به هم دا جرئت نشو کولى چې ووايي چې هغې د خپل عزت د ساتلو لپاره څه کړي دي بايد سزا پرې ورکړ شي. اوس هغوى دواړه بندي دي، او تاته يې دا انعام درکړ چې والى د بيهوشي په حالت کې له محل نه راوايستلى او په دى کنډواله کې يې وغورځولې.

د ميريا په وچو سترگو کې اوښکې راډنډ شوې. ورورانډې شوه او د پادري په پښو کې ولويده ويې ويل: سپيځلى پلاره په ما رحم وکړه، انجيلا وژغوره! د خداى په خاطر انجيلا وژغوره زما باور نه راځي چې مايکل به دې وژلى وي. خو که دې وژلى وي هم بې گناه ده، انجيلا چې څه کړي دخپل عزت د ساتنې په خاطر يې کړي دي.

پرلوقس د ميريا اوښکو اغيزه ونه کړه، يو گام شاته ولاړ ويې ويل:

بې عقله ښځې اوس ژړا څه گټه لري انجيلا پر دې قتل برسيره بې گناه ثابتيداى شواى. خو اوس ستا د بې عقلۍ په وجه پر هغې له وژنې نه لوى تورونه لگيدلي دي. د کليسا سپکاوى له خپل مذهب نه کرکه او له حکومت نه بغاوت دا يوهم معمولي تورونه نه دي اوس ددې ژوند ژغورل زما په وس کې نشته.

ميريا جگه شوه د لوقس لمن يې ونيوله ويې ويل: نه نه ! ته ډير څه کولى شې، ته د لوشه د کليسا مشريې،

لوقس: له نن نه وروسته زه د لوشه د کليسا مشر نه يم ماپرون د والى

جانب ده. خو زما بیان د والي د نظر مخالف دی ځکه خو زما باور دی چې محکمه به هغه غلې کړي. زه ابوداود ته ورځم امکان لري هغه له پاچا او ملکې نه د رحم غوښتنه وکړي، که څه هم د کوم مقصد په خاطر چې پاچا هغه ته اهمیت ورکړی ؤ تر ډیره حده هغه پوره شوی دی فردیناند غرناطه کلابنده کړي. د ابوداود په هڅو د غرناطې یوه با نفوذه طبقه د جګړې مخالفه شوې. او پاچا اوس په دې باوري دی چې د غرناطې فتحه د کومې یوې ورځې خبره ده.

د ابو داود په ډله کې اوس ډیر خلك دده رقیبان شوي دي، په دې حالاتو کې زما امید نشته چې پاچا به د ابوداود د رحم په غوښتنه څه غور کولو ته چمتو وي خو کیدای شي د هغه د تدبیر په توکري کې لاداسې غشي پاتې وي چې پاچا یې مهم وګڼي او دده په هیله غور ته تیار شي.

اوس چې زه تاته د کومې ضروري خبرې لپاره راغلی یم داده چې ته سبا محکمې ته ولاړه شه دا ووایه چې تر څو لوقس «زه» دلته رانشي او ګواهي ورنکړي عدالت د پریکړې کولو حق نه لري.

که محکمې ستا دا اعتراض رد کړ او پر دوسیه د پریکړې بیړه وکړي نو ته ددې پریکړې پر خلاف پاچاته د عرض مهلت وغواړه. امکان لري محکمه تاته دا مهلت درنکړي خو ستا ددې غوښتنې نه وروسته به محکمه پر خپله پریکړه د پاچا د تصدیق په ترلاسه کولو مجبوره شي، په دې ځند کې به ستا میره ته د منډو رامنډو څه موکه په لاس ورشي. میریا سرترپایه هیله شوه ویې ویل: سپیڅلي پلاره! ته ډیر مهربانه یې، زه به ستا نیکي نه هیروم، ته څه وخت روانیږې!

لوقس: زه نن شپه روانیږم.

# د انجيلا او ربيعي پلار

د ۱٤۹۱ م کال د اپريل په مياشت کې فرديناند پر غرناطه په خپل ټول توان درنه حمله پيل کړه، د پادشا او ملکې په څېر ډېرو خاصو منصبدارانو دا سوګند خوړلی ؤ چې د غرناطې له فتحې پرته به نه ستنيږي، د شاهين د درې او الپکسرا د سيمې د مجاهدينو د بوخت ساتلو په خاطر يې د سپاره پوځ يوه برخه هماغه لورې ته راواستوله، د غرناطې د پوځ مشري د موسی په غاړه وه، که څه هم په غرناطه کې د منافقينو يوې لويې ډلې فعاليت کاوه خو د اولس اکثريت د موسی په اشاره سر ورکولو ته تيار ؤ.

فرديناند د خپلو پخوانيو ماتو نه عبرت اخستی ؤ. هغه د پوځي برترۍ او زيات پوځ سره سره پر ښار د تيغ يرغل پر ځای لږ لږې پراو واچاوه او په شاوخوا کليو کې يې لوټ ار چور پيل کړ. دوی له درې لوريو غرناطه کلابنده کړې وه، خو لښکر يې پر ښار د ورختلو پر ځای د شاوخوا باغونو او فصلونو په سوځولو بوخت وو. فرديناند داډه ؤ چې د اوږدې کلابندۍ په وجه به د ښار خلك له لوږې او کاختي نه مجبور شي او وسله به کيږدي، څکه خو يې د ښار نه بهر د بزرګرانو د فصلونو او باغونو له ويجاړولو وروسته هغوی پردې مجبورول چې غرناطې ته هجرت وکړي، په درې مياشتو کې يې د غرناطې په درې خواو کې پراخه سمسوره سيمه شاړه او ويجاړه کړه. يوازې د «جبل بشارت» له لورې غرناطې ته لاره خلاصه وه،

د فرديناند لښکروته به يې له زيان رسولو وروسته بيرته ښارته مخه کړه، موسى گومان کاوه چې فرديناند چې هره ورځ د خپل لښکر زيانونه وگوري پر ښار به يرغل ته چمتو شي خو پر فرديناند د دغو زيانونو هيڅ اغيزه نه وه پوځ يې د ښار په شاوخوا کې د کندو او مورچو په جوړولو لگيا ؤ.

د کلابندۍ په موده کې د غرناطې د شاه زلميانو د تن په تن مقابلې ډير داستانونه پاتې دي، يو سپور به آس پونده کړ او له ښار نه به ووت له لرې به يې په لوړ غږ د فرديناند کوم ځانگړي افسر د مقابلې لپاره وغوښت. يوه خاص منصبدار ته له مقابلې نه ځان غړول د شرم خبره وه هغوى به له مجبورۍ ميدان ته ورتلل په داسې تـــن په تن جگـــړو کې د غرناطې د شاه زلميانو پله درنده وه، د يوه افسر له وژلو وروسته به يې د بل نوم واخيست او هغه به يې ورغوښت. په دې تن په تن جگړو کې د فرديناند ډير مهم افسران ووژل شول، يوه ورځ يو سپور ميدان ته راغى، زغره يې اغوستې او له سترگو پرته يې ټول مخ په خول کې پټ ؤ، د هغه آس ډير ښکلى ؤ، د فرديناند د لښکر د لومړى کتارنه لږ لرې ودريد غږ يې وکړ: څوك شته چې مرگ ته يې زړه وشي؟

کله چې ددښمن له لورى تر لږ ځنده چا ځواب ورنه کړ هغه وويل: زما آس ته وگورئ، په داسې آس به ستاسو پاچا هم نه وي سپور شوى، او زما په توره کې داسې غمې دي چې ستاسو د پاچا په تاج کې هم نشته، په تاسو کې داسې څوك شته چې ددې آس او تورې هيله ولري؟

کاونت تنديلا د پاچا يو ځانگړى افسر آس ورودراندى کړ وېې ويل: زما په زړه کې ددې آس او تورى پرځاى ددې گستاخ د ژبې غوڅولو هيله ده. خو يوه شيبه وروسته د فرديناند زړور پهلوان په خاورو کې لتې وهلې او ساه يې ورکړه. د قادس «مارکوس» ډگرته راغى خو د هغه هم همدغه انجام

رنګ لیدل غواړي.

یو افسر احساساتي شو خو فردیناند یې د اس جلب ونیو ویې ویل: نه، تاته له هغه سره د مقابلې اجازه نشته. د غرناطې شاه زلمی د ښار د دروازې په مخکې خول له سره لرې کړ، پهره دارانو یې په درناوی سرونه ښکته کړل دا موسی بن ابي غسان ؤ، د غرناطې د مسلمانانو وروستی توره،

* * * * *

(۲)

ابو داود د فردیناند په مخکې ولاړ ؤ ، هغه په ډېره بې وسۍ د پاچا په څېره کې د خپلو عذرونو اغېزې کتلې، پاچا د لوشه د مذهبي محکمې د پرېکړې پر خلاف دده عرض رد کړی ؤ، د عدل نه مایوس ابوداود د رحم غوښتنه وکړه، د پاچا چوپتیا ده ته له زغم نه اوچته وه، دایې احساس کړه چې د بخت ستورې یې سرګردان شو. دا لومړی ځل ؤ چې دی د فردیناند په مخکې ولاړ ؤ او په کرسۍ ناست نه ؤ. کله چې دی لومړي خیمې ته ورننوت نو فکریې کاوه چې د معمول سره سم به اوس فردیناند ور وړاندې شي او ده ته به په مصافحه لاس ورکړي دی به په چوکۍ کښېنوي، او دده د راتګ د سبب له معلومولو وروسته به ووایي د لوشه پادري لیوني شوي دي، خو چې فردیناند دی ولید ویې ویل: ابوداوده زما له تاسره خواخوږي شته خو دا د کلیسا د محکمې پرېکړه ده، محکمې پرېکړه ماته د تصدیق لپاره را استولې ده. زه مجبور یم ، ستا له لونو نه مې دا توقع نه وه، ابوداود په خپلو غوږو باور ونه کړ، تر ډېره ځنده یې پاچا ته کتل بالاخره یې په ماتو ګوډو الفاظو خپله وینا پیل کړه، خو جملې وروسته یې په وینا کې فصاحت راغی، د ربیعی او انجیلا د بې ګناهۍ په ثبوت کې یې ډېر دلایل راوړل، خو فردیناند سړدنه پر ځای وخوځاوه ویې ویل: ته ما نشې

له اغیزی دی. خو د حکومت ، کلیسا او محکمی په اړه ددې خبرې ماته هم له زغم نه وتلې دی. که د لوی پادري لور هم داسې خبرې کړی وای نو انجام به یې ستا د لور په شان ؤ.

د ابوداود غږ کبښناست، خو بیایې هم همت وکړ او درحم غوښتنه ئې وکړه هغه خپل خدمتونه واسطه کړل، ویې ویل: اعلیحضرته! ما دا ویښتان ستا په خدمت کې سپین کړل، دا لونې زما وروستۍ تکیه ده، پر دې زاریو فردیناند لږځند چوپ ؤ. بالاخره یې وویل: زما رحم د عدالت پریکړه نشي بدلولی، ابوداوده زه افسوس کوم ته له صبر نه کار واخله، دا ستا د وفاداری دازمویښت مهال دی.

هغه وویل: اعلیحضرته! زما په وفاداری کې هیڅ فرق نه دی راغلی، خو هغه زما لونې دی، هغوی ستا د هغه وفادار غلام لورانې دی چې د هغه دهڅو په نتیجه کې نن ستاپوځ د غرناطې څلور دیوالی ته رسیدلی. دا د هغه سړی لورانی دی چې تاته یې الحمراته د ننوتلو ټول بندو بست بشپړ کړی. ستا له مخې نه یې الحمرا ته د ننوتلو لپاره د ابوالحسن اوالزغل غوندی کمرونه لری کړی دی. زما باداره! ما تر اوسه پوری د هغو انعامونو لپاره لمن نه ده غوړولی د کومو وعده چې تا راسره کړی. ما یوه وړوکی هیله درته راوړی . تا زما سره وعده کړی چې په غرناطه کې به ستا نایب یم. ایا زما لونې دومره حق هم نه لری چې زما په غیاب کې د خپلې آبرو ساتنه وکړی؟

فردیناند: خو هغوی مایکل وژلی، هغه د ملکې خپلوان ؤ، زه ستا په خدمتونو اعتراف کوم، خو د مایکل خدمتونه هم نشم هیرولی. ملکه ازابیلا چې د پردې تر شایی داخبرې اوریدلی کوټې ته ورننوته ابوداود سرترپایه زاری او عذر شو ورته ویې ویل: ملکې عالیې! په مارحم وکړه.

ملکې وویل: که ته موږ پردې ویروې چې موږ ستا له مرستې پرته غرناطه نه شو نیولی نو دا ستا اشتباه ده، موږ ستا په لاس یوازې څو ضمیرونه اخستي دي. خو که ته نه وای هم موږ داکار کولای شوای، تا یوازې معامله کړې ده قیمت زموږ له خزانو نه ورکړ شوی دی. اوس که ته دا ګواښ کوې چې ته به موږ پرېږدې او ولاړ به شې نو واوره چې په غرناطه کې داسې کسان شته چې تر تا ډېر هوښیار او د کار خلک دي.

ابوداود لږ سوچ وکړ پاچاته یې وکتل وېې ویل: اعلیحضرته! ښایې زه ستاتولی هیلې پوره نکړای شم. امکان لري د غرناطې د فتحې لپاره ته زما د خدمتونو ضرورت احساس نه کړې. خو تر اوسه یو محاذ شته چې ته به ماته اړ وې. د سرحدي عقابانو په بنو کې تر اوسه زور شته، د بدر بن مغیره له مرګه وروسته هم د هغوی په ګرندي توب او تیزۍ کې کمی رانه غی.

فردیناند تکان وخوړ ابوداود ته یې وکتل وېې ویل: ته پوهیږې چې بدر ژوندی دی موږ ته دې دوکه راکړه.

ابوداود ځواب ورکړ: تر کومه چې ماته معلومه ده هغه مړ دی ما هغه بندي کړ، ابوعبدالله هغه جلاد ته وسپاره، خو که د تقدیر کومې معجزې هغه ژغورلی وي نو زه دا ذمه واري اخلم. چې ژوندی یې تاسو ته وسپارم. ددې هدف لپاره به زه ډېر لوی خطر قبلوم که تاسو زما د لونو د خلاصون وعده وکړې زه دې خطر منلو ته چمتو یم.

که بدر بن مغیره ژوندی وي نو زه به یې ستاسو په مخ کې حاضر کړم، که هغه ژوندی نه وي نو مرستیال به یې ووژنم او ګډودي به یې په منځ کې واچوم زه دا ذمه واري اخلم.

فردیناند وویل: د غرناطې د یو څو تنو اسیرانو وویل چې هغه ژوندی

فردیناند ملکی ته وکتل او بیایی له لږ سوچ وروسته وویل: ابوداوده کښینه! واوره، که ستا پر لونو د کلیسا د سپکاوی تورنه وای نو د جان مایکل قتل هیرول آسانه وو، بیا به هم موږ ستا د دی کامیابی نه وروسته په لوی پادری ستا د لونو سزا وبخښو.

ابوداود: عالی مقامه! تاسو به له دی غلام سره وعده کوی.

فردیناند: موږ وعده کوو چې ستا د لونو سزا معاف کړو، خو که دی دا شرط پوره نکړای شو بیایی زموږ په مخکی مه یادوه.

ابو داود وویل: عالی مقامه! زه یوه میاشت مهلت غواړم نن د قمری ۵ مه نیته ده، تاسو محکمی ته امر وکړی چې د راتلونکی میاشتی تر ٤ می پوری سزا وځندوی ، که زه په دی موده کی د ننه بریالی بیرته راستون نه شوم نو زما لوڼې دی د راتلونکی میاشتی ٤ می نیتی په ماښام د لمر لویدو په مهال په سزا ورسوی. زما د غیابت معنی به دا وی چې زه به ژوندی نه یم. او په بله دنیا کی به د خپلو لونو انتظار کوم.

فردیناند وویل: زه نن دغه هدایت د لوشه والی ته استوم. خو تر دی وړاندی ته ووایه چې ستا د بری امکانات څه دی؟

ابوداود وویل: بدر بن مغیره زما له مشری لور ربیعی سره واده کول غوښتل. که هغه ژوندی وی او ما هغه پر دی داړه کړای شو چې پاچا سلامت به ستا پخوانی گناهونه درویخښی نو د ربیعی په خاطر به له ماسره راشی.

ملکی او پادشا پر دی خبری باورنه کاوه خو ابوداود چې په سرحدی کلا کی د اوسیدو او له هغی وروسته الحمرا ته د بدر بن مغیره د ورتگ پیښی له ضروری ادلون بدلون سره دوی ته بیان کړی نو تر څه حده یی باور شو.

پاچا وویل: که هغه ژوندی نه ؤ بیا!

که ته په دی ذمه واری کی کامیاب نه شوی نو څونو ته به خامخا سزا ورکړای شی. ته باید د سپوږمی د څلورمی نه لږ تر لږه دوی ورځی وړاندی ځان ماته راورسوی. چی زه د لوشه والی د سزا له عملی کولو نه وژغورلی شم.

ابوداود ځواب ورکړ: امکان لری چی زه په دوو هفتو کی د ننه بیرته راستون شم. خو که زه په څه سبب وځنډیدم هم تاسوته به ددی میاشتی تر پایه د خپلو کړو وړو رپوټ راواستوم، که ضرورت شو نو امکان لری لږ مهلت زیات وغواړم او زما باور دی چی اعلیحضرت به خپل غلام ته څو ورځی فرصت خامخا ورکړی. خو که ددی میاشتی تر وروستی نیټی زما له لوری څه پیغام راونه رسید نو تاسو وپوهیږی چی ستا غلام پر تاسو قربان شوی دی.

فردیناند وویل: ستا د غوښتنی په رارسیدو به تاته څو شپی نور هم مهلت درکړو.

ابوداود ور وړاندی شو د فردیناند په مخ کی په زنګنو شو د هغه لمن یی ښکل کړه او بیا جګ شو ویی ویل: اعلیحضرته! زما د بری لپاره دعا کوی، بیایی ملکی ته وکتل ملکی ده ته لاس ور اوږد کړ، دی یو ځل بیا په ګوندو شو او د ملکی لاس یی ښکل کړ، جګ شو ویی ویل: ملکی عالیی! زه پوهیږم چی مایکل ستا خپل ؤ. زه د هغه په مرګ خفه یم، امید دی چی ستا دا غلام ددی خدمت له ترسره کولو وروسته بیا هم ځان ستاسو د مهربانی حقدار ثابت کړی.

ملکی وویل: زه به په دی ذمه واری کی ستا بریالی توب د مایکل د وژل کیدو جبران وبولم. موږ له شانه د قبایلو وخت ناوخت یرغلونه پریشانه کوی.

لږ ځنډ وروسته ابوداود په یوه ګړندی اس سپوږ او د عقاب د دری په لوری چارګام څغلیدو. دده یوه لوری ته د غرناطی شانداری ماڼی او بل

بنابسنه خوبونو تعبیر دی.
ابوداود بیا د فردیناند د پوځ خیموته وکتل او په زړه کې یې وویل: مورخین به دا لیکي چې غرناطه فردیناند فتحه کړه. په تاریخ کې به دا لیکل کیږي چې د فردیناند پوځونه د غرناطې له پوځونو نه ځواکمن وو، کاشکې ما له تګ نه وړاندې په یوه دېره لیکلې وای چې ابوداود نه وای نو مؤرخینو به فردیناند د غرناطې د فاتح په نامه نه یاداوه.
ای آسمانه! ته ګواه اوسه چې کوم اولس د دښمن فردیناند نشي تباه کولی، بلکې خپل ابوداود یې د مرګ کومې ته ورغورځوي، الحمرا خدای پامان! غرناطې الوداع!

*****

(۳)

د ماسخوتن له لمانځه نه وروسته بدر بن مغیر د یوې غرنۍ کلا په یوه کوټه کې له بشیر بن حسن ، منصور بن احمد او څو نورو سرغندویو شاه زلمیو سره ناست ؤ، یوه ورځ وړاندې د دوی پوځ له یوې بریالۍ حملې نه بیرته راستون شوی ؤ، اوس یې د یوې بلې حملې لپاره پلان جوړاوه، یو سپاهي کوټې ته ورننوت په ادب یې له سلام وروسته وویل: په سرحد کې څلورو سپاهیانو یو تن نیولی او راوستی یې دی. د دوی په ګومان دغه سړی کوم جاسوس دی، سپاهیان وایي چې هغه د سرحد د قوماندان په مخکې له څه ویلونه انکار کړی ، هغه غواړي چې له مشر سره وګوري.
بدر بن مغیره وویل: هغه سمدستي بندي وساتي، سهار یې ماته راولی سپاهي وویل: خو هغه همدا اوس له تاسو سره لیدل غواړي، هغه وایي چې یو مهم خبریې راوړی دی.
بدر: نوم یې څه دی؟
سپاهي: هغه د خپل نوم له ښودلو نه هم ډډه کوي، هغه وایي چې که

ورواړولی او ویې ویل: تاسو به زما په راتلو حیران شوی یاست خو زه راغلم.

بدر بن مغیره وویل: آیا تا له خپل جرئت نه څه زیات کار نه دی اخیستی؟

ابوداود: پوهیږم چې زه د ډیری بدی سزا حقدار یم خو ما چې ځان ته کومه سزا تجویز کړی ده ښایی هغه تاسو هم راته ونه ټاکی، خو تر دی وراندی زه څه ویل غواړم.

بدر: ته دا ویل غواړی چې د فردیناند پوځونه ډیر زیات دی او تاسو وسلی کیږدی!

ابوداود: نه! زه تاسوته دا ویل غواړم چې د لوشه محکمی ربیعی او انجیلا ته د ژوندی سوځولو سزا ورکوی که تاسو وغواړی هغه ژغورلی شی.

بدر بن مغیره او بشیر بن حسن کله یو بل ته او کله ابوداود ته کتل، د هغوی کتو داسی ویل چی ابوداود دروغ وایی، دا هغوی ته دده کرم نوی دام دی. خو د دوی د زړونو دړزا ویل چی که دا خبره ربښتیا وی نو ؟

ابوداوددوی په نظر د نړۍ ډیر ذلیل او پست انسان ؤ، خو ددی باور سره سره چی دا ټول به دروغ وی. د ربیعی او انجیلا دژوندی سوځیدلو تصور کافی ؤ چی دوی ډیر پری اندیښمن او پریشانه شی.

ابوداود بیا وویل: زه پوهیږم چې تاسو به باور ونه کړی تاسو پر دی حق په جانب یاست چې ماته دوکه باز، فریب کار او غدار وایی، خو ته او بشیر چی څومره ما پیژنی تر دې څو چنده زیات ربیعه او انجیلا پیژنی، ربیعه له پخوا مسلمانه وه او اوس انجیلا هم مسلمانه شوی، تاسو پوهیږئ چی د دوی په زړونو کی ښځینه حیا او غیرت دی.

زه تاسو ته دوی ویلو لپاره راغلی یم چی د فردیناند یوه افسر د دوی د

او د حکومت پر خلاف یی توندې خبرې کړی. محکمې پر ربیعه د جادوګری تور ولګاوه او دایی د کلیسا او حکومت دښمنه وبلله، پر انجیلا هم له حکومت نه د بغاوت، له دین نه د وتلو او د کلیسا د توهین تورونو په وجه د ژوندی سوځولو حکم شوی دی.

بدر بن مغیره وویل: کله؟

ابوداود پریشانه شو ځواب یی ورکړ: ددی پوښتنی د ځواب لپاره زه د مناسبی موکی په لټه کی وم.

بدر خپلو ملګروته وکتل ویی ویل: د بشیر او منصور نه پرته نور تلای شی.

کله چی هغوی له کوټې نه ووتل بدر وویل: ابوداوده! مومن له یوه سوری دوه ځله نشی چیچل کیدای. که د لوشه ښار په اسمانونو کې نه وی نو باور وکړه چی زما سري به په یوه هفته کې ټول احوال راته راوړی. دا ځکه درته وایم چې که ته زموږ د دوکی په نیت راغلی وی نو له خپل انجام نه دی مه غافل کیږه.

ابوداود ځواب ورکړ: زه دا مشوره نه درکوم چی ته باید څه ونکړی. زما د تیرو کړو وړو په سبب ته زما هر څه ته په بدګومانی حق په جانب یی. ته به دا سوچ کوی چی دا ځل به ما د الحمرا پر ځای په لوشه کی غرغره درته تیاره کړی وی. خو د لمر ختلونه مخکی به زه دا ثابته‌کړم چی د ربیعی او انجیلا په باب ما څه ویلی ریښتیا دی. ما تاسو تر سهاره بندی وساتی، سهار به زه خپل لیکلی بیان درته وړاندی کړم، زه غواړم چې په بند کې د لیکلو اجازه راکړی.

بشیر وویل: ته موږته د معما جوړیدو هڅه مه کوه، که ستا د ژبی جادو مات شوی نو ستا لیکل به هم موږ ونه غولولی شی. موږ به له لوشه نه ستا

موږ به د فردیناند دا هیله هم پوره کړی وای خو افسوس چی لوشه لږ لری ده، تاسو په پوځی معاملو کی زموږ د هوښیاری په باب غلط اټکل کړی، که هغه د سرحد په نژدی کوم ځای کی د فریب دام غوړولی وای نو امکان لری چی موږ د دوی دا هیله منلی وای. خو اوس که موږ دوکی خوړلو ته تیارنه وو نو د هغه سړی په حال ماتم په کار دی چی د دام غوړولو په وخت یی دا سوچ نه کاوه چی شاهین ړوندی نه دی.

بدر وویل: ابوداوده! فرض کړه چی محکمی ربیعی او انجیلا ته سزا ورکړی نه پوهیږی چی زه په دی خبره څه ږ باور کولی شم چی موږ ته پر لوشه د حملی د تشویقولو لپاره چی کوم دام غوړول شوی دی، په دی کی تا له حکومت او محکمی سره مرسته نه ده کړی، زه پر دی ولی سوچ ونه کړم چی دا ټول یوه لوبه ده. حکومت ستا په خوښه هغوی نیولی دی او محکمی ستا په خوښه پر هغوی مقدمه چلولی، او په لوشه کی به د راتلونکی میاشتی تر څلورمی پوری زموږ لاری څاري. کیدای شی په هغه ورځ یو څه داسی بندو بست هم وشی لکه ربښتیا چی څوك سوځول کیږی. او ته به د خپلو لونو د سوځیدو په وړاندی په ډریدو هم د شرم احساس نه کوی خو چی کله زموږ له راتګ نه مایوس شی نو خپل غوړیدلی جال به بیرته ټول کړی. کاشکی په تاکی لږ انسانیت وای او خپلی لونې دې د لوشه د اوسیدونکو په وړاندی نه وای مسخره کړی.

په یاد ولره! په راتلونکی څلورمه نیټه به زما سړی په لوشه کی وی. دوی به ددی لوبی تر پایه هلته وی. او کله چی ماته دا خبر راورسیږی چی ربیعه او انجیلا د ډرامی له غرغری نه راکوزی شوی او خپل کورته ورسیدی نو تا به په غرغره راځړوم، تر همغه وخته به ته زما سره بندی وی. ته ددی نوی

[illegible]

بدر وویل: زه ستا غوښتنه نه ردوم، خو زه باور لرم چې ستا لیکنه به ستا تر ژبې زیات اغیزه ونه لري.

بدر بن مغیره لاسونه وړپکول، یو سپاهی د ننه ورغی، بدر وویل: دی بوځئ، په یوه ساتلې کوټه کې یې د هستوګنې بندو بست وکړئ. د خوراک، څښاک او خوب خیال یې ساتئ، د لیکلو سهولت ورته برابر کړئ، خو په څارنه کې یې غفلت مه کوئ.

دایی وویل بیا یې ابوداود ته مخ ورواړاوه:

تاته هم دا هدایت کوم چې له دې ځایه د تیښتې هڅه بې ګټې ده، ابوداود له څه ځواب ورکولو پرته له سپاهی سره ووت، په دروازه کې څلور توره ایستلي نور سپاهیان هم ورسره ملګري شول. تر لږ ځنډه بشیر، بدر او منصور چوپ یو بل ته کتل بدر د اندیښنې په حالت کې اوچت شو، او د کړکۍ مخې ته ودرید بهرته یې وکتل له خپل زړه نه یې پوښتل: ایا دا امکان لري، ایا داسې کیدای شي؟ خپل ضمیر ته یې د زرګونو ځله داد ورکولو سره سره په اور کې د ربیعې د سوځیدو تصور پرې لړزه راوستله، د زړه درزایي ویل: له ربیعې نه دا لرې نه ده ربیعه د خپلې آبرو د ساتنې په خاطر تر ځان تیریدلې شي، دا خو ورته اسانه ده چې یو پوځی افسر ووژني، د هغې له اسلام سره مینه ده، هغه په هر خومره لویه محکمه کې د حق د غږ اوچتولو جرئت لري. مګر نه نه، ابوداود دوکه باز او مکار دی، دا هر څه یوه دوکه ده، منصور جګ شو ورغی د بدر په اوږه یې لاس کیښود ویې ویل: بدره! که دا خبره رښتیا وي نو په دې باید داده وې چې د لوښه یو دیوال هم زموږ لاره نشي بندولی.

بدرناځاپه مخ ورواړاوه ورته ویې ویل: په لوښه کې د دوو نجونو ژوند په غرناطه کې دلګونو نجونو له ژوند نه ارځښتناک نه دی، هغو غازیانو د ټول

وویل: زه تېپیان گورم، او بهرته ووت.

لږ څه وروسته منصور بدرته وکتل ویې ویل: که ابوداود ته په دې قانع کړی وی چې دده خبر سهی دی نو په لوشه به زموږ حمله ډېرې ښې نتیجې ولری، اوس هم زموږ په مخکې همدا مسئله ده چې د فردیناند پام دوو محاذونو ته واوړی.

* * * * *

(٤)

سبا ته بدر، بشیر، منصور او څو نورو افسرانو ناشته کړله، چې یو سپاهی په ویره او وارخطایی کوټې ته ورننوت ویې ویل چې ابوداود په خپله کوټه کې په غولی پرمخې بې هوشه پروت دی. دوی په منډه د هغه کوټې ته ورغلل.

ابوداود پرمخې پروت ؤ. بشیر بن حسن د هغه په نبضونو لاس کېښود او بیایې زر راکښیناوه او سترگې یې وکتلې ویې ویل: دی مړشوی دی. زما په گومان چې زهر یې خوړلی دی. د کوټې په یوه کونج کې په یو وړوکی میز قلم، مشوانی او څو پاڼې کاغذونه پراته وو، بدر بن مغیره څو پاڼې چې د ابوداود د لاس لیکنه وه واخستې، سپاهیانو د بشیر په اشاره ابوداود جگ کړ په کټ کې یې څملاوه، بشیر بن حسن یې د جیبونو له پلټلو وروسته له یوه جیبه یو وړوکی زرین ډبلی ومونډ، د هغه سرېې پرانست ویې کوت بیایې وویل: هغه داسې زهر خوړلی چې تر اوسه یې دوا نشته.

د کلا نور سپاهیان هم ډله ډله ددې کوټې دوره په مخه کې راغونډ شول. بدر له بشیر او منصور پرته ټول له کوټې نه وایستل او وربې پسې پورې کړ بیا یې وویل: بشیره! موږ تېر وتلی وو، دا د هغه لیك دی ویې لوله، بشیر

ځاه! پوهېږې! سوالیه کاغذ ته لاس وراوږد کړ خو د څو جملو له لوستلو

زما لیك به تاته داسې وخت رسیږي چې زه به په دې دنیا کې نه یم، د داسې ذلیل مرګ پرته ماته دا ګرانه وه چې تا پردې باوري کړم چې د ربیعي او انجیلا په اړه زما خبر ریښتیا دی، او زه د همدې لپاره چمتو شوم او راغلم.

زما په مرګ به هغه سپکې هیلې او ناپاکې ارادې ختمې شي چې زه یې ستاسو په نظر کې یو غدار او وطن فروش ښودلی وم.

حقیقت دا دی چې هغه ابوداود چې د غرناطې د حکمراني خوبونه لیدل او د خپل قوم په لاشونو یې ځان ته د محل جوړولو هیلې درلودې له نن نه څو ورځې وړاندې مړ شوی ؤ، هغه هغه وخت د خپلې مړینې په خپه کولو مجبور شو. چې فردیناند یې د لمبولو په باب د رحم درخواست رد کړ. او هغه ابوداود چې اوس یې مړی ستاسو په مخکې پروت دی تیره شپه د یوه پلار په حیث تاسوته راغلی ؤ. ځکه خو زما دوهم مرګ د یوه پلار مرګ دی. او له مرګه مخکې چې زه څه لیکم، دروغ ماته هیڅ ګټه نه لري ځکه خو تول، ریښتیا لیکم او په همدې زما اروا ډاډه کیږي. ته زما په باب یوازې دومره پوهیږې چې الحمرا ته مې راوغوښتې او د وژلو لپاره مې دسیسه درته جوړه کړه، خو زما ګناهونه تر دې ډیر زیات دي. زه ستا د پلار قاتل یم. هغه ته ما لیك استولی ؤ او طلیطله ته مې راوغوښت. لومړی ځل چې زه تاته د میلمه په بڼه راغلی وم د فردیناند جاسوس وم. او د شپې له لوري چې پر کلا دښمن حمله وکړه زما په اشاره وه. په الحمرا کې موسی ما بندي کړ، ابوعبدالله وطن پلورنې ته ما چمتو کړ، په غرناطه کې د جهاد پر خلاف د تبلیغ لپاره چې کوم جاسوسان استول شوي هغوی ټول ما روزلي دي. تا له مانه پوښتنه وکړه چې انجیلا او ربیعي ته به کله سزا ورکوې او ما

د غازیانو په لیکو کی به گډوډی واچوم ددی په بدل کی فردیناند له ماسره د ربیعی او انجیلا د ژوند ژغورلو وعده وکړه.

سیاستمدار ابوداود بنایی هیڅکله هم پخپلو گناهونو اعتراف نه وای کړی، خو د انجیلا او ربیعی پلار خپله سنه په دی کی وینی چی له مرگه وړاندی له خپلی خیری نه تول نقابونه او پردی وغورځوی.

زمانه وروسته که ستاسو په کوم تدبیر د هغو نجونو ژوند بچ شی نو ربیعه تاته او انجیلا بشیر بن حسن ته سپارم.

زه له یوی مودی پر دی پوهیدم چی هغوی تاسو دواړه خپل ملگری او ساتونکی غوره کړی یاست. خو زما د ژوند په مقصدونو کی د دوی د هیلو او غوښتنو د درناوی ځای نه ؤ. ما د یوه پلار په نظر بوازی هغه وخت دوی ولیدی چی خبر شوم د لوشه محکمی دوی ته د مرگ سزا ورکوی، زه د دوی د ژغورنی لپاره تاسوته د عذر ارتیانه وینم، تاسو پوهیږی چی له ماسره د انجیلا او ربیعی اړیکی د وینی اړیکی دی، او زما په مرگ به دا اړیکی هم وشلیږی. زه به د دوی انجام نه وینم، د اور د لمبو له منځه به د دوی کریږی زما غوږوته نه رارسیږی، که زه ژوندی وای هم دوی به د مرگ په شیبو کی دا اندیښنه نه کوله چی له خپل پلارنه جدا کیږی، د هغوی زما له دنیا سره هیڅ زړه نه لگیده، د هغوی زړونه په هغه دنیا کی وو چی ته او بشیر ساه پکی کاږی. د هغوی زما له خیالی مانیو سره هیڅ اړیکی نه وی، د لوشه د والی مانۍ په پرېښودو به یی په زړه کې هیڅ خفگان نه وی، د لرگیو په سوځیدونکی انبار کی به دوی یوازی د هغو درو په تصور کی ورکی وی چی د خپلو سرگردانو ارواو لپاره یی د امن ځای باله، دوی به د افق په لور گوری او وایی به بدره ، بشیره! تاسو چیرته یاست؟.

هغه حوصله چې یوې نجلۍ په کمزورو لاسونو کې د بریچې چلول زده کړل، هغه ژبه چې په محکمه کې یې بغاوت کوونکې وینا واورروله، ستاسو د خیالونو ترجماني وه.

ما ربیعه اوانجیلا په بندي خانه کې وته لیدلای شوی، خو یو سړی چې هغوی لیدلي وي ماته وویل چې هغوی په خپلو کړونه پښتیمانه وی او نه خفه، د هغوی دا ایمان دی چې که خدای(ج) ته یې ژغورل منظور وي نو د اور لمبې به ورته گلزار کړي.

پدر او بشیره! تاسو له مانه ښه پوهیږئ چې د دوی په زړونو کې د ایمان دغه لمبې چا بلې کړي.

که تاسو دوی تولو خبرو ذمه واری له اخستلو نه انکار نه کوی نو زه وایم چې د ربیعی او انجیلا معامله ستا او بشیر معامله ده، او ماته د هغوی په باب د څه اندیښنی او پریشانی اړه نشته. زه د دوی د ژغورنی مسؤلیت ستاسو پر اوږو در اچوم او پخپله له دی ذمه واری نه ځان خلاصوم. زه دا نشم درته ویلی چې څه وړ یې ځان ژغورلی شي، دا سرچ ستاسو کار دی، زه د هسپانیی د راتلونکی په باب څه ویل نه غوارم، وخت ثابته کړه چې تر ننه پوری چې ماڅه کړی او څه مې په سوچونو کې وو غلط وو. ما د ځان لپاره گلان غوره کړل او خپل اولس ته مې ازغی وغورول. خو زما برخه گلان د فردیناند د لمنی زینت شول. زما لاس او پښی په ازغیو ټپی شول، او د اولس انجام ماته معلوم نه دی. زما سیاست ختم شوی دی، زه د ذلت او نامرادی په مرگ مرم، تاسو به زما ځان وژنه د کرکې وړ وبولی. خو زه نن پر دی حقیقت وپوهیدم چې د عزت مرگ یوازی د هغو خلکو لپاره دی چې د عزت ژوند یې غوره کړی وي ما د خپلی میرمنی په باب څه ونه ویل، ما هغه د یادولو وړ ونه بلله،هغی د انجیلا د ژغور لو لپاره د ربیعی

# اوښکې او موسکا

د لمر لویدوته لږ د مخه د لوشې د ښار ته بهر په یوه پراخ میدان کې د زیاتو لرګیو او بوټو په انبار ربیعه او انجیلا تړلی وی، تر دوی په زرګونو تنه تارینه او ښځې راچاپیر وو، دوی دواړه یو بل ته نژدې په لرګیو تړل شوی وی، د انبار څنګ ته نژدې د راهباتو یوی ډلې د سپیڅلې مریم د حمد او ستاینې سندرې ویلې، خلکو په ناکرارۍ د لمر لویدو انتظار کاوه د لوشه والي دان لویي او نوی پادرۍ په وار وار اتق ته کتل، خلک پوهیدل چې تر لمر لویدو پورې به د فردیناند د وروستي حکم انتظار کیږي، که نوی حکم راونه رسید نو انبار ته به اور ورته کوي. دوه تنه سپاهیان بل مشالونه د لرګیو انبار ته نژدې ولاړ وو.

ربیعې او انجیلا ته د خپل انجام په باب هیڅ شك نه ؤ خو دوی ته د اور لګولو د ځنډ سبب معلوم نه ؤ،

انجیلا وویل: ربیعې زه له مرګه ډیر•ویریدم، خو اوس داسې حس کوم چې مرګ دومره وهمناك شی نه دی خو دا انتظار ماته ډیر ګران اولزغم نه وتلی دی. دا خلك څه شی ته انتظار کوي؟

ربیعه:زه پخپله حیرانه یم، لمر په لویدو دی خو ښایي. ...

انجیلا: ښایي څه؟

ربیعه: هیڅ نه انجیلا، ما فکر کاوه چې ښایي تقدیر د لوشه د محکمې

انجیلا: ربیعي! دا زما هم ایمان دی، خو اوس د مرګ دروازې ته څوګامه پاتې دي، دعا کوه چې پښې مې ونه لړزیږي.

ربیعي ورو ویل: د اسلام هره لور به په تا وياړ ي.

انجیلا: دعا کوه ربیعي ماته تسلي راکړه.

ربیعي آسمان لورې ته وکتل او وې ویل: اې د سزا او جزا مالکه! موږ ته ټینګار او حوصله راکړه، ته زموږ بې وسي وینې، ته مو له کمزوریو نه خبر یې، خو خدایه! نورو ته زموږ کمزوري مه ښکاروه. زموږ مظلومیت یوازې ستا د رحمت دروازه ټکوي، دا خلك دې زموږ کړیږي وانه وري.

ربیعي لا دعا کوله چې له لرې پنځه تنه سپاره. راښکاره شول او خلکو شورماشور ګډ کړ: هغوی راغلل!

خلکو د سپرونه راچاپیر شول، اوس د لرګیو د انبار په لوري د هیچا پام نه ؤ. سپرو د قسطلي د سپاهیانو جامې اغوستې وې، خلکو له دوی نه پوښتل: معظم تولواك څه حکم جاري کړی دی؟ تاسو دومره ولې ناوخته شوي د لوشه والي او پادري د خلکو په منځ کې ځان ته لاره وکړه او وړاندې تیر شول، ستاینکو راهبانو هم په ګنه ګونه کې د نویو راغلیو سپرو خواته مخه وکړه، خو په دوی کې یو راهب همغسې د انبار ترڅنګ ولاړ ؤ او د ستاینې سندرې یې زمزمه کولې، د نورو راهبانو په څیر د هغه بدن هم په سپینه قبا کې پټ ؤ. دده د غږ په اوریدو د انجیلا او ربیعي ورپام شو. په سندرو سندرو لږ نور هم هغوی ته وروړاندې شو، او له خپل سرنه یې درنه پرده لرې کړه. تر یوې شیبې پورې د ربیعي او انجیلا په خپلو سترګو باور نه کیده، په حیراني یې هغه ته کتل، دا بدر بن مغیره ؤ، ناڅاپه یو بل راهب هم د هغه څنګ ته راغی، د هغه له غږ نه معلومیده چې په ژوند کې د لومړي ځل لپاره [illegible]

بدر په خپلو شونډو ګوتې کېښودې او هغې ته یې د چوپ کېدو اشاره وکړه. او بشیر یې تر مټ ونیو همغسې یې سندرې ویلې او د ګنې ګوڼې په لورې ورغی.

دان لویي په ډېر زحمت تر سپاهیانو راچاپېره ګڼه ګوڼه غلې کړه او سپروته یې وویل: تاسو ډېر ناوخته راغلې موږ انبار ته اور ورته کاوه، څه حکم مو راوړی؟

یوه سپاره وویل: موږ له والي سره خبرې کول غواړو.

دان لویي غوسه شو ویې ویل: زه پخپله والي یم.

سپاره په داد ځواب ورکړ: تولواك ته عزل کړی یې، لږ څنډ وروسته به کاونت انتونیو له فرمان سره راورسېږي. هغه موږ ته امر کړی دی چې د ابو داود د لوڼو سزا وځنډوو، موږ په بیړه دلته راورسېدو کاونت انتونیو به لږ څنډ وروسته رارسېږي. او تاسوته به د پاچا وروستی فرمان اعلان کړي.

دان لویي نږدې ؤ چې بې هوښه شي، خلکو د مایوسې په حالت کې کله دان لویي، کله پادري او کله سپاهیانو ته کتل.

بالاخره پادري وویل: د تولواك لیکلی حکم زموږ سره شته دی. او هغه دا دی چې که تولواك د لوشه د محکمې پرېکړه کې د څه بدلون ضرورت احساس کړی نو نن به تر لمر لوېدو پورې بل فرمان رارسېږي، او که تر لمر لوېدو پورې بل فرمان راونه رسېدو نو داسې وګڼې چې اعلیحضرت د محکمې له پرېکړې سره موافق دی. اوس لمر لوېدلی دی د پاچا کوم ایلچي له بل فرمان سره تر اوسه نه دی رارسېدلی، ځکه خو که دان لویي انبار ته د اور اچولو حکم وکړي نو خپل فرض به پوره کړي، که ته ایلچي وې نو د تولواك فرمان راښکاره کړه، که نو نو موږ څه خبرې اورېدو ته تیار نه یو.

سپاره ځواب ورکړ: موږ له ایلچي سره راغلي یو، او دا والي بر طرف

شوی دی.

سپاره ځواب ورکړ: موږ یې ددې لپاره رااستولي یو چې د هغو ځجونو ساتنه وکړي او موږ به د سرونو په بدل دا کار کوو.

پادري او والي پریشانه شول او خلکو ته یې کتل، خلك ددې زغره اغوستونکو سپرو په مداخله خوښ نه وو، ځینې خلکو د ګنې ګوڼې د احساساتي کولو او پارولو هڅه وکړه، خو د فردیناند پر سپاهیانو چا د لاس اوچتولو جرئت ونه کړ، کله چې دان لویي د خلکو زیاتره ویریدلي ولیدل نو له ده سره روغبړ کوونکي سپاهي ته یې وویل: زه نه پوهیږم چې ته څوك یې او دا خبره دې څومره سهي ده. زه لږ نور انتظار کوم خو که ستا خبر دروغ شو نو د بدترینې سزا لپاره ځان تیار کړه. کاونت انتونیو د قرطبې والي دی. زه نه پوهیږم چې هغه دلته د څه لپاره را استوی او ما کومه غلطي کړې چې برطرف کیږم؟

سپاره ځواب ورکړ: امکان لري پادشاه سلامت ته ابوداود ستا په اړه شکایت کړی وي، په هر صورت تر لږ ځنډه به دا معامله سپینه شي. کاونت انتونیو رارسیدونکی دی، تر هغه وخته به موږ په انبار پهره کوو، کاونت انتونیو دا اندیښنه ښکاره کړه چې خلك په احساساتو رانه شي او له بندیانو سره به بد چلن ونه کړي.

دان لویي وویل: د انبار شاوخوا زما د سپاهیانو پهره کافي ده.

سپاره وویل: که کاونت انتونیو د انبار په شاوخوا کې د خلکو د ومره لویه ګڼه ګوڼه وګوري پر موږ به غوسه شي، دا به غوره وي چې خلك لږ لرې شي.

دان لویي ډیر تونډ خویه سړی ؤ، خو د خپلې برطرفۍ د خبر په اوریدو یې جوش او ولوله سړه شوه. هغه په زړه کې په وار وار له ځانه پوښتل چې

پادري دا بدلون ولید د هغه غوسه هم تر ډېره حده سړه شوه.

اوس هغه پخپلو خبرو پښیمانه ؤ او د سپاهیانو په شاوخوا کې به گرځېده، هر یوه ته به یې په واز وار ویل: گوري که تاسو د کاونت انتونیو لیکلی حکم راوړی وای نو داسې خبرې به نه کیدلې. په هر حال اوس به هغه راورسیږي. تاسو هغه خومره لرې پرېښود؟ ډیر ځنډ وشو اوس خو هغه دې سپوږمۍ هم لویدوته نژدې ده. هغوی چیرته لاره نه وي غلطه کړې.

هلته ډان لوېي پخپله پر خلکو پتکې کولې او شاته یې شړل د ځلورمې شپې سپوږمۍ خپل لنډ مزل وهلی ؤ او ورو ورو د شپې تیاره زیاتیده، بدر بن مغیره او بشیر بن حسن د راهبانو په جامه کې تر انبار راتاویدل، د ښار کوتوال هم په ډېره هوښیارۍ د لرگیو تر انبار چکر واهه. بدر بشیر ته وویل: ته دده پام ځان ته واړوه، ماته هوښیار سړۍ ښکاري. بشیر.ور وړاندې شو کوتوال ته یې وویل: دا څومره د افسوس خبره ده تر اوسه پورې د کلیسا پرېکړې او محکمې دومره سپکاوی نه ؤ شوی.

مشال لرونکي هم سپرو له انبار نه لرې شړلي وو، څکه خو کوتوال د خپل مخاطب څېره سهي نه لیدله. پوښتنه یې وکړه ته څوک یې؟ بشیر راسنبال شو ویې ویل: زه د طلیطلې د عبادتځای راهب یم.

کوتوال: دلته څه ډول راغلې؟

بشیر: زه اشبیلیې ته روان وم. دا تماشامې چې ولیده راوگرځېدم، داشبیلیې پادري زه د علاج لپاره ورغوښتی یم. ما له تانه دا پوښتل غوښتل چې که پاچا حکم ورکړی وي نو د داسې درانه جرم په اړه د کلیسا محکمه خپله فیصله بیرته واخلي؟

کوتوال ځواب ورکړ: کلیسا ته د خپلې پرېکړې اخستلو ضرورت نشته،

وویل: ربیعې! په اس سپریدلې شې؟

ربیعه چې له رسیونه خلاصه شوه د ځواب پر ځای یې مخ ورواړاوه او ورته وې کتل،

بدر وویل: اوس نه ربیعې! لږ څند نوره هم همغسې ودریږه، ربیعه همغسې له لوی لرګي سره نیغه ودریده.

بدر بیا وویل: ته به نن تولـه شپه سفر کوې، ته په آس سپریدلی شې که نه؟ ربیعې د خپل زړه په درزا د قایو کولو هڅه وکړه ویې ویل: له تاسره یو ځای؟

بدر: هو له ماسره!

ربیعه: زه به له تاسره یو ځای د سفر د اوږدیدونه شکایت ونه کړم.

بدر: انجیلا هم په آس سپریدلی شي؟

ربیعه: انجیلا تر ما ښه آس څغلولی شي.

بدر: ډیره ښه ده ته چمتو اوسه.

له دې نه وروسته بدر انجیلا ته ورنژدې شو د هغې رسې یې غوڅې کړې او بیا یوه سپاره ته ورنژدې شو ویې ویل: زر کوه ماته خپل کمند راکړه.

سپاره د خپل زین نه کمند خلاص کړ او بدر ته یې ورکړ، په دې څند کې له لرې د آسونو د پښو ترپهار اوچت شو، او دخلکو تول پام هماغه لورې ته وراوښت، بشیر بن حسن تر اوسه د کوتوال پام له یوې بلې خوا په خبرو اترو ځان ته راړولی ؤ. خو چې د اسونو د پښو ترپهار یې واورید ویې ویل: سپیڅلې پلاره لکه چې هغوی راورسیدل، ما ویخښنه خو سبا ته د روانیدو نه وراندې ما خامخا ووینه.

د بشیر د ځواب اوګدو نه وړاندې کوتوال وړاندې په منډه ولاړ، پادري او والي اوس له یوه سپاره سره خبرې کولې. والي ویل: ماته داسې ښکاري چې

بدرورېل: ته مانه پېژنې؟

پادري وويل: په تياره کې دې ښيره سمه نه وينم، او ستا غږ هم ماته پردی دی.

بدر وويل: سپيڅلي پلاره! زه به لومړی تاته يوه ضروري خبره وکړم بيا به تاته د څه پوښتنې کولو ضرورت پاتې نه شي.

پادري وويل: نو هغه څه خبره ده چې ته يې د والي دان لويي په مخکې ماته نشې کولی؟

بدر ځواب ورکړ: له هغه نه به بيا وروسته معذرت وغواړم ته راځه زه يوازې تا ته يوه مهمه خبره کوم.

بدر پادري تر مټ ونيو او هغه زړه نازړه د پريشانې په حالت کې ورسره روان شو. څوګامه وړاندې بشير ولاړ ؤ. بدر يې چې وليد ورنژدې شو، پادري وويل: هغه خلك رانژدې شول وايي څه وايي! زما متې پرېږدې.

بدر د هغه مټ په خپلو اوسپنيزو پنجو کې کلك کړ ويې ويل:

چوپ اوسه!

تر يوې شيبې پورې د پادري حالت خراب شو، بدر بشير ته وويل: دا بوزه او دا رسۍ هم درسره واخله، له دې نه نيمايي د والي لپاره پرېږده، اوس هغه هم راولم.

پادري د شورماشور هڅه وکړه، خو د بشير خنجر يې چې خپل شارګ ته نژدې وليد له خولې نه يې څه غږ ونه شو وتلی او د بشير په مخ کې چوپ روان شو.

د آسونو د پښو غږ اوس ډېر رانژدې شوی ؤ، دان لويي همغې خواته روان ؤ چې بدر تر مټ ونيو او په پوښتيوبې خنجر ورکيښود ويې ويل: له ماسره راځه! که دې د څه شورماشور هڅه وکړه نو... بدر د څه ويلو پر ځای

بدر ربیعه یوې خواته کړه او د هغه پر ځای یې والي په ستنې پورې وتاړه، په دې څنډ کې بشیر پادري د انجیلا پر ځای تړلی ؤ. له بله پلوه پنځوس تنه چې ګڼې ګوڼې ته نژدې شول د تکبیر ناري یې اوچتې کړې. او ګڼه ګوڼه یې د نیزو په څوکو له مخې نه لرې کړل. خلك له ډېرې وارخطایي او پریشانۍ نه په یو بل ورغوړځېدل، د لوښه د پولیسو سپاهیانو نور د لرګیو د انبار نه پام واړاوه او په یوه او بله خوایي وارخطا منډې وهلې.

د انبار شاوخوا سپاهیانو څلور تنه له خپلو آسونو نه پلي شول بدر بن مغیره د راهب چپنه وایستله او په انبار یې وغورځوله، په یوه توپ په آس سپور شو په پاتې څلورو اسونو بشیر، ربیعه اوانجیلا سپاره شول. بدر وویل: بشیره! ته له ربیعې او انجیلا سره څه هلته زموږ انتظار کوه، موږ به هم لږ وروسته در ورسیږو ، بیړه کوه. بشیر د آس جلب وګرځاوه، بدر پنځم سپاره ته غږ وکړ: ته هم له دوی سره ولاړ شه.

بشیر او هغه سپاهي ربیعه او انجیلا ورسره ملګرې کړل او په یوه خوا وتل. بدر بن مغیره آس ته پونده ورکړه د یوه سپاهي نه یې بل شوی مشال واخست او د لرګیو انبارته یې وروغورځاوه ، په انبار کې د اور لګیدو لپاره وچ واښه راټول شوي وو. اور بل شو، والي او پادري په زوره زوره چیغې وهلې، خو په دې هنګامه کې د دوی د غږ اوریدونکی څوك نه وو. په میدان کې د محشر ننداره وه، حمله راوړونکو سپرو د خپلو نیزو په څوکو د خلکو د شړلو او ځغلولو هڅه کوله. خو خلك یو له بل سره ټکر کیدل او ډیر بد ټپیان شول، په تیاره کې د لوښه اوسیدونکو داسې ګڼل چې په زرګونو سپاهیانو حمله پرې کړې ده، د کوتوال او د هغه د پوځیانو درك نه ؤ. ځینې خلکو د اور په لمبو کې په انبار کې د پادري او والي ځیرې وپیژندلې خو چا د دوی د ژغورلو او مرستې ضرورت احساس نه کړ.

بدر: راځی!

*****

(۳)

له نژدی دری میله مزله وروسته بشیر او د هغه ملګری د یوی صومعی (د عیسوی صوفیانو د ذکر، حلقی، روژنی او ورد خونه) د څلورو دیوالو په درشل ودریدل، دوه تنو راهبانو په دروازه کی د دوی انتظار کاوه، هغوی بشیر بن حسن وپیژاند د ننه یی چاته د دروازی خلاصولو غږ وکړ، پهره دار د ننه دروازه خلاصه کړه. د خانقاه په انګړ کی دری تنه نور راهبان ولاړ وو، هغوی د دوی د آسونو جلبونه ونیول، انجیلا او ربیعه له بشیر سره یوی کوټی ته ننوتی کوټه په قیمتی سامان سمبال وه، له چت نه نقرهیی فانوس راځړیده د مرمرو په غولی د یوه میز شاوخواته آبنوسی کرسی وی، د میز په منځ کی په یوه شمعدان اته شمی بلیدی.

بشیر وویل: سمدستی همدا زموږ کور دی، تاسو تر لږ څنډه آرام کولی شی.

انجیلا په وارخطایی وویل: په دی خانقاه کی!

بشیر په موسکا خپل کوټ وکیښ او یوه لوری ته یی وغورځاوه ویی ویل: دا خانقا له تیرو دری ورځو راسی زموږ په واك کی ده. دا راهبان چی تاسی ګوری زموږ خپل خلك دی او د خانقاه اصلی اوسیدونکی د پاسنی پوړ په یوه کوټه کی بند دی تاسو به وږی شوی یاست!

انجیلا ربیعی ته وکتل او بیا یی بشیر ته مخ واړاوه ویی ویل: که دا ستاسو کور وی او بی تکلفی د اخلاقو خلاف نه ګڼل کیږی نو زه خو وایم چی له لوږی می د خور وضعه خرابه ده.

ربیعی وویل: زما ورور د اندلس تر ټولو لوی طبیب دی، هغه به په دی

کې یې یو لوی پتنوس را اخستی ؤ. په پتنوس کې پر ډوډۍ برسیره د پسه یو روغ کباب شوی وروں ؤ. وروسته بل سپاهي راغی هغه یو پتنوس له منو او انګورو نه ډک پر میز کیښود بشیر جګ شو ویې ویل: تاسو په آرام ډوډۍ وخورئ زه بلې کوټې ته ځم.

ربیعې وویل: تاسو یې نه خورئ؟

بشیر ځواب ورکړ: زه یې له نورو خلکو سره خورم، بهرته ووت او په برنډه کې لږ وړاندې ولاړ او بیا یوې بلې کوټې ته ننوت، هلته څلور تنه ناست وو، د بشیر په لیدو اوچت شول ده ورته وویل: تاسو ډوډۍ خوړلې ده؟

له هغوی نه یوه تن ځواب ورکړ: هوکې خو ابومحسن نه ده خوړلې، بشیر وویل: هغه به پاس له لوی راهب سره بحث کوي؟

سپاهي په خندا شو بشیر وویل: ښه هغه راوله او موږته ډوډۍ راوړه.

نیمه شپه د بدر بن مغیره ملګري هم دې خانقاه ته ننوتل. په هغه لږه موده کې دوی د غوره آسونو تر لاسه کولو نه علاوه د هغوی پوځي قرارګاه ته اور واچاوه، په ښار کې یې د خزانې په راوړو او دوالي د مانۍ په سوځولو اکتفا وکړه. ربیعه، انجیلا او د دوی نور څوارلس تنه ملګري په خانقاه کې د دوی له راتګ نه د مخه تیار ناست وو.

د کوچ له امر نه وړاندې بدر ابو محسن ته وویل: ابومحسنه! زموږ کار په لوشه کې پای ته ورسید، ووایه ته کامیاب شوی که نه؟ پر دې منصور بن احمد وخندل، ابو محسن لږ خجالت غوندې شو ویې ویل: په خدای (ج) سوګند هغه بلکل خر دی. تاسو هسې زه دلته پریښودم، هغه پخپله ماته وویل چې لږ لږ د اسلام په صداقت قایم یم، تاسو ځې خو ماته لږ تبلیغ وکړئ بیا ولاړ شي ، خو یوه غرمه ماته معلومه شوه چې دغه بدبخت شراب

دوی به د شپې مزلونه کول او دورځې به له ښارونو نه لرې په هغو خانقاو کې اوسیدل چې دری ورځې وړاندې دوی نیولې وې او د راهبانو په جامه کې یې خپل کسان پکې وو. د دې خانقاو اصلي اوسیدونکې د لوښه د خانقاه په څېر د دوی په لاس بندیان وو، بدر بن مغیره به چې کومې خانقاه ته ورننوت ملګرو به یې آسونو ته واښه او دوی ته ډوډۍ تیاره کړې وه. په هر پړاو د دوی د خلکو شمیر مخ په زیاتیدو ؤ. او چې کله د فردیناند د هیواد له برید نه اوښتل د ملګرو شمیر یې یونیم سلو تنو ته رسیدلی ؤ.

*****

بدر بن مغیره د غرناطې کلا په یوه کوټه کې په ناکراری قدم واهه په څېره کې یې د پریشانۍ، مایوسۍ او خفګان علامې وې.

ربیعه کوټې ته ورننوته، بدر په ژورو چورتونو کې ډوب ؤ. او چې تر لږ ځنډه یې دې ته ورپام نه شو ربیعه یو قدم نوره وروړاندې شوه ویې ویل: تاسو زه رابللې وم.

بدر تکان وخوړ هغې ته یې وکتل ویې ویل: هو ربیعې ماتاته یوه ضروري خبره کوله، کېښینه!

ربیعه په کرسۍ کیناسته ویې ویل: ته ډیر پریشانه ښکارې!

تر لږ ځنډه چوپتیا وروسته بدر ځواب ورکړ: ربیعې ما ستا په باب فکر کاوه، د نصرانیانو خلاف جنګ اوس پرېکنده پړاوته رسیدلی، زه داسې احساسوم چې نور ستا اوسیدل دلته سهي نه دي.

ربیعه ناڅاپه جګه شوه غوښتل یې څه ووایي خو غږیې په ستوني کې خپ شو، هغه سرتېرپایه غلی غلی شوه او بدرته یې کتل.

ربیعې کېنه، ما لا تر اوسه خپله خبره نه ده خلاصه کړې. ربیعه کیناستله بدر له لږ سوچ وروسته وویل: ته خبر یې چې د فردیناند د اوږدې کلابندۍ

تول قوت سره پر دښمن د حملې وعده کړې وه، موږ پر خپل بری ډاډه وو، خو نن ماته د موسی لیك رارسیدلی. هغه لیکلي چې دابوعبدالله وزیر له فردیناند سره د سولې خبرې اترې پیل کړې، د امیرانو لویه ډله د سولې طرفدار دی. او د غدارانو د هڅو په نتیجه کې اوس په اولس کې هم داسې خلك پیدا شوي دي چې د سولې لپاره ناکراره دي. څرنګه چې د دې خبرې ویره وه چې ابوعبدالله او د هغه ملګري به د حملې په ورځ غداري وکړي او نیت به یې بدل شي ابوموسی دا حمله وځنډوله هغه لیکلي چې د حملې لپاره به کومه بله ورځ وټاکي او بیا به ماته خبر راکوي. موسی له هغو انسانانو نه دی چې مایوس شي خو ماچې لیك ولوست دا راته څرګنده شوه چې د غرناطې حالات ډېر خراب دي، ربیعی ته پوهیږې چې که خدای (ج) مه کړه غرناطه زموږ له لاسه ووتله، نو د قسطلې سیلاب به په موږ راشي. ځکه خو ماپریکړه کړې ده چې د داسې وخت له راتلو نه مخکې تاسو مراکش ته استوم. پاچا زما د پلار دوست دی، د بشیر او منصور د کورنۍ ډېر خلك هلته دي، هلته به تاسو ته هیڅ تکلیف نه وي.

بدر اوس د ربیعې پر ځای له کړکۍ نه بهر ته کتل.

د ربیعې زړه ولوید، تر لږ ځنډه چوپه ناسته وه، بالاخره یې په ژړغونې لهجه وویل: نو تا مراکش ته زموږ د استولو پریکړه کړې ده؟ بدر: نه نه، ته په ما بدګوماني مه کوه، ما له تاسره پر دې موضوع مشوره کول غوښتل او زما امید دی چې ته به زما مشوره ومنې، د ربیعې په سترګو کې اوښکې ډنډ شوې ویې ویل: مشوره! ته ولې داسې نه وایې چې ربیعی ته بې زړه یې، ته د یوه شاهین سره دالوتو ځواك نه لرې، ځکه خو زما دا حکم دی چې له دې ځایه ولاړه شه او موږ تاته اړتیا نه لرو.

بدر وویل: زما په دنیا کې د ازغیو پرته هیڅ نشته او خالق ته په ازغیو

یم.

خدای (ج) زما د ژوند لاره په هغه لاره برابره کړی ده چې ته پرې روان یې، تا وعده کړې وه چې د غرناطې د کلابندی د لرې کیدونه وروسته به ... خو .... ربیعی له دې وراندې څه ونه ویلای شوای. مخ یې په دوارو لاسو پټ کړ او په سلګو شوه بدر تر اغیزې لاندې راغئ وې ویل: ربیعې په ما بدګومانی مه کوه. ستا د ژوند ملګرتیا زما لپاره ویاړ دی . زما لپاره ته هغه شنه او سمسوره ونه یې چې ستومانه مسافر تری لاندې دمه کوی.

هغه ورځ چې ماله تاسره دواده غوښتنه وکړه ما داسې ګنله چې د غرناطې له جګړې نه تر فراغت وروسته به ستا سره ژوند زما د تیرو ستونزو او سختیو یو لوی انعام وی. خو اوس زه پوهیږم چې زما په بیدیا کی پر یوه سیلۍ پسې بله سیلۍ ده، ما چې خپله کښتۍ په کوم سمندر کې غورځولې ده د هغې څنډې ورخ په ورخ لرې کیږی، زما په مخ کې له یوه ګرداب نه وروسته بل ګرداب وی ربیعې ! ستا ښه په دې کې ده چې مراکش ته ولاړه شې زه د یوې مهمې پریکړې نه وراندې ستا د راتلونکې په باب داډ غواړم، کیدای شی زما اس یوه ورځ تش راشي، او ته داسې احساس کړې چې په دې دره کی ستا یو پیژندوی هم نشته. ربیعه جګه شوه ودریده، ویی ویل: که دا ستا حکم وی نو زه ترې سرغړاوی نشم کولی، که دا ستا امر نه وی نو ماته د خپل برخلیك د پریکړی اجازه راکړه.

بدر وویل: ما خپله خبره پای ته نه ده رسولی، زه تا پر دې پوهول غواړم چې که د غرناطې خلکو وسله کیښوده نو دا دره به هم د اور او وینو له توپان نه خوندی پاتی نشی، او پر موږ تهولو داسی دوران هم راتلای شی چی د عزت له مرګه پرته بله لاره ونه لرو.

ربیعې وویل: نو آیا د عزت په مرګ کې زه له تاسره ملګرتیا نشم

مرګ دروازه ور تکوم. زما په ژوند کې یوازې نن شته، سبا نشته.

ربیعي وویل: بدره! خدای (ج) شاهد دی چې زه ستا د ملګرې څو شیبې له زرو کلونو ژوند سره نه برابروم. که ژوند بې هدفه‌شي نو اوږدیدل یې څه ګټه لري؟ ته وایې چې زه له توپان راتلونه د مخه تا پر کوم ساحل پریښودل غواړم . خو د ژوند پای له مرګه پرته بل څه نه وي نو زه په ساحل کې ناسته د څپو د شمیرلو پر ځای له تاسره په ګردابونو ملګرتیا غواړم.

که ستاسره زما خیال وي نو باور وکړه چې ماته ددې څمکې پر ځای تل د خپلو خیالونو پر آسمان لیدلې یې.

زه خپله کمزوري او بې وسي احساسوم. تا په کوم‌پخواني پریکړه عملي کولو نه مجبوروم، زه ددې وړ نه یم چې ستا د ژوند ملګرې شم، خو ته ما د خپل ژوند له ملګرتیا نه مه محرومه، زه په ډګر د غشي ویشتلو او توره وهلو جوهر نشم ښودلی خو د زخمیانو پټۍ تړلی شم، ما مراکش ته مه استوه، ما له مرګه وراندې د ژوند په پریښودلو مه مجبوروه.

بدر بن مغیره تر لږ څنډه د وفا او ایثار دغې مجسمې ته کتل ناڅاپه یې په تروشو شونډو موسکا وغوړیده خو مخ یې واړاوه سرېې څوړند شو او ورو ورو یې په کوټه کې قدم واهه، له دوه درې ځلې چکر لګولو وروسته ربیعي ته نژدې ودرید، ربیعي د هغه په څېره د خپل نصیب پریکړه لیدله. د هغې زړه په درزاو.

بدر وویل: ربیعي ما غوښتل ته دې پر پریکړه یو ځل له سره غور وکړې، دا زما مسئولیت و. او که له دې وروسته هم تا د بخملو پرځای د ژوند له سختو کانو او ازغیو ډکه لاره له ماسره د ملګرتیا پریکړه کړې وي نو زه ستا احسان منم که ته له دې ترخه حقیقت نه سترګې پټولو ته تیاره یې چې زما ژوند څو کاله، څو میاشتې، او یا څو ورځې دي نو زه هیڅ نن له تاسره

ربیعي سرپورته کړ هغه ته یې وکتل الفاظ یې تررېږدېدونکو شونډو پورې راغلل بیا ودرېدل، د احسان او خوښۍ جزباتو د شرم او حیا نه په دکو سترګو تکیه وکړه. بدر د هغې په سترګو کې د اوښکو هغه څاڅکي لیدل چې د الفاظو یوه دنیایی خوندي کړې وه. په حیرانۍ یې وویل: ربیعی که ما ستا زړه خوږولی وي نو بخښنې غوښتلو ته تیار یم، ربیعې ته ژاړې!

ربیعي زر خپلې اوښکې پاکې کړې هغه ته یې په عذر ته ورته کتو وکتل ویې ویل: ددې اوښکو په خاطر زما عذر ومنه، زما دا تمه نه وه چې زموږ خبرې به له هغه مقدمې نه وروسته په داسې خبرو پای ته رسیږي. دا اوښکې د یوې بې وسه تورسرې د شکرانې څرګندول دي.

بدر: نو ته نن له ماسره په واده څه اعتراض نه لرې؟

ربیعه جدي شوه ویې ویل: ته توکې کوې!

بدر: نه زه توکې نه کوم که نن څه پیښېږه ونه شوه نو د لمر وروستې وړانګې به بدر بن مغیره او ربیعه بنت ابودا ودد میره او ښځې په حیث ګوري.

ربیعه: مګر نن دا بیړه ولې؟

بدر ځواب ورکړ: هوکې که ستا اعتراض نه وي.

ربیعي بدر ته وکتل او د څه ویلو نه پرته یې بهرته منډه واخستله او ووته.

*****

(۵)

د ربیعي پسې لړزیدی، د زړه له درزا سره کله ګرندۍ تله کله به کراره شوه او چیغې یې وهلې: انجیلا! انجیلا! بیا خپلې کوټې ته ننوته، انجیلا د کړکۍ ترڅنګ ولاړه وه بهرته یې وکتل، هغې مخ را واړاوه ربیعي ته یې

ربیعه: چیرته؟

انجیلا: ربیعې له مانه دګومې خبرې پښتولو ضرورت نشته، هغه ماته هر څه ویلي دي.

ربیعه: چا بشیر بن حسن!

انجیلا: هو! هغه اوس راغلی ؤ.

ربیعه: هغه به درته ویلي وي چې مونږ په مراکش ته ځو؟

انجیلا: هو!

ربیعه: مګر مونږ مراکش ته نه ځو، انجیلا زما پر خبرو باور وکړه مونږ به همدلته اوسو.

انجیلا وویل: ربیعې اوس ځانته دوکه ورکول هیڅ ګټه نه لري زمونږ همدا په برخه وو.

ربیعه: تا بشیر ته څه ځواب ورکړ؟

انجیلا: ما هغه ته څه ځواب ورکولی شوای، هغه راغی دایی راته وویل چې ته به د ربیعې سره مراکش ته ځې او بیرته ولاړ هغه ډیر غمجن ؤ ربیعې دا د هغه د زړه خبره نه وه. پخوا له دې چې زه هغه ته څه ځواب ورکړم هغه له کوټې نه ووت. زما له هغه نه څه ګیله نشته، زما او د هغه ترمنځ هیڅ وعده نه وه شوې خو ستا سرحدي شاهین خو دواده پیغام درکړی ؤ. هغه به تاته هغه مجبوري ذکر کړې وي چې زمونږ مراکش ته په استولو یې مجبور کړي دي. زما ویره ده چې د غرناطې حالات خراب دي.

ربیعې وویل: که ماله هغه سره په خوب کې خبرې نه وې کړې نو نن به تر لمر لویدو پورې ستا خور د هغه د ژوند ملګرې شي، انجیلا! زما په خبرو یقین وکړه، مونږ مراکش ته نه ځو، دا پریکړه بدله شوه،

انجیلا بې اختیاره ور وړاندې شوه او ربیعې ته یې غیږ ورکړه، په

بدر بن مغيره سره يې د خپلو خبرو داستان پيل کړ.

*****

(٦)

د کلا په بل کونج کې په يوه لويه کوټه کې بشير بن حسن او نور طبيبان د مريضانو په علاج او سمبالولو بوخت وو، بدر هغې کوټې ته ورننوت بشير بن حسن د يوه ټپي پر زخم پټۍ تړله، د خپل يوه ملګري اشاره يې وليده بشير شاته وکتل او پټۍ ته يې وروستۍ غوټه واچوله او جګ شو.

بدر وويل: ته به دلته څومره وخنديږې؟

بشير: زما کار نږدې پای ته رسيدلی.

بدر: زه له تاسره يوه ضروري خبره کوم.

بشير: که دې بيړه نه وي يوازې يو ناروغ پاتې دی، هغه له مانه پرته څوك نږدې نه وريږدي.

بدر: نه زما بيړه نه ده، ته چې وزګار شوې نيغ زما کوټې ته راشه.

لږ څند وروسته بشير د بدر کوټې ته ورننوت او ويې ويل:

ته لږ خفه غوندې ښکارې. له غرناطې نه کوم نوی احوال راغلی ؟

بدر: نه زه د ربيعي او انجيلا په باب درسره غږيږم.

بشير: انجيلا ته ماريلی دی، تاته ددې څه خبر راغلی دی چې د مراکش کومه بيړۍ به کله دلته رارسيږي او لنګر به اچوي؟

بدر: تر اوسه ددې څه خبر نه دی راغلی. په يو دوو ورځو کې به راشي او غالباً به دالميريا په شمال کې په هغه مقام لنګر واچوي چې تيره مياشت يې اچولی ؤ.

بشير: نو ربيعه او انجيلا بايد زرترزره ساحل ته ورسول شي.

بدر: په همدې مسئله زه له تاسره خبره کوم.

بدر : او ددې خوب د وروستي برخې تعبير که واورې نو حيران به شې.
بشير په موسکا ورېل: ماته يې د وروستي برخې تعبير هم معلوم دی.
بدر: ښه ده ووايه!
بشير: ته له ربيعې سره واده کوې.
بدر: نو څه وخت؟
بشير:نن!
بدر: مگر دا خبرې تاته څه ور معلومې شوې. تاته به انجيلا ويلي وي او هغې به له ربيعې نه اوريدلي وي!
بشير: نه بدره! ستا خيره ماته د يوه کتاب په څير ده ته تولي نړۍ ته يوه معما يې خو ماته نه يې، اوس ووايم ماته داخبرې ولې معلومې شوې؟
بدر: ووايه!
بشير: له ربيعې سره تر ملاقات وروسته چې ته د پريشانۍ په حالت کې ماته راغلې نو زه وپوهيدم چې تاخپله پريکړه بدله کړې. او تا چې وويل چې د غرناطې په باب کوم نوې خبر مې د پريشانۍ سبب نه دی نو زما گومان نور هم په يقين بدل شو. له دې نه پرته که کومه بله سياسي او يا پوځې خبره واى نو تا به زما پر ځاى د منصور لټون کاوه او يا به د شورى راغوښته، له دې وروسته چې تا وويل چې ربيعه به همدلته اوسي نو وپوهيدم چې زموږ شاهين اوس په خپله ځاله کې بوازې اوسيدل نه غواړي.
بدر: تاته ددې څه پته ولگيده چې زه همدا نن واده کوم؟
ستا په څيره داليکل شوي چې تا مهمه پريکړه کړې ده، او ستا مهمې پريکړې زرترزره نافذيږي.
بدر: ستا مطلب دا دی چې زه عجول يم!
بشير: نه زه د يوه سپاهي د غوره صفت يادونه او ستاينه کوم.

بدر: ښه! زه د اندلس له ارسطو نه پوښتنه کوم چې دده اراده څه ده؟

بشير: پرما له يوې مجلې نه د معذرت او د يوې غلطې پرېکړې د بيرته اخستلو مسؤليت دى. او دا ډير غوره مسئوليت نه دى. په دې معامله کې د ارسطو عقل چندان کار نه کوي.

بدر جدي شو ويې ويل: بشيره! زه غواړم ستا واده هم نن ترسره شي،

بشير ځواب ورکړ: بدره! تاته ددې ويلو ضرورت نشته، له هغې نه بيلتون زما لپاره ډير گران ؤ. زه ستا ډير احسانمن يم چې د دوی د مراکش ته استولو پريکړه دې بدله کړه، که هغه تللې واى نو زما د ظاهري خوښې سره سره به دې دااحساس کړى واى چې ستا ملگرى د ژوند د سرمايې ډير څه له لاسه ورکړى. زما د تشو کړسندو خنداگانو سره به دې دا حس کړى واى چې زه کومه خبره درنه پټوم.

بدر ورېل: بشيره! که ماته معلوم واى چې د انجيلا په خير ته هم له هغه سره مينه لرې نو مابه د هغې مراکش ته ليږلو خبره نه وه ياده کړې، ما چې سهار ورېل چې اوس د دوى مراکش ته ليږل غوره دى، ستا له څيرې نه داسې ښکاريده چې زما په پريکړه يوه ذره هومره پريشانه نه يې.

بشير ځواب ورکړ: هغه وخت زما په وړاندې خپله مسئله نه وه، ما هغه مجبورې ليدى چې بدر بن مغيره غوندې غازي يې د خپلو ډيرو گرانو هيلو په پريښودلو مجبور کړې ؤ. ما دا ليدل چې هغه مجاهد چې توره يې يوه اولس ته پناه ورکوې هغه مجلې رخصتوى چې د ژوند ملگرى کيدونکې يې وه.

ته زما په مخ کې د يوه کمره په څير ولاړ وې. ستا د عظمت رعب پر ما پريوتلى ؤ. تا د قوم د زنځيرونو د شلولو لپاره د ژوند له ټولو خوښو سره اړيکې شلولې، نو ستا يوه ملگرې به دا څه وړ ويلاى شواى چې زه د مينې

نه خبره کړې ده، هغې د ساحل پر ځای له ماسره ګرداب غوره کړ، اوس خدای(ج) ښه پوهیږي چې دا سهی پریکړه ده که غلطه، د ځان په باب داږ درکوم چې په عزم کې مې بدلون نه راځي د دښمن لپاره به مې د توري په تیره والي کې کوم فرق رانه شي. زه ویریدم چې د ربیعي په باب د فیصلې په بدلیدو به مې ملندې وهي. خو زه ستا احسان منم، اوس ته انجیلا ته ورشه هغې ته تسلي ورکړه.

ماښام مهال د شاهین په دره کې له یوه سره تریله سره نغاري غږیدلې. د بدر او ربیعي او انجیلا او بشیر ودونه شوي وو.

# د الحمرا وروستي ساتونکی

د غرناطی د کلابندی اومه میاشت وه، د ښار حالت ډير خراب ؤ. خلك له لوږی نه په تنگ شوی وو، د غرناطی مشران په یوه کوټه کی راټول شوي وو د غرناطی زمري موسی بن ابی غسان په قهر جن نظر ابوعبدالله او د هغه ملگرو ته کتل.
د فردیناند له لوری راغلیٔ د سولی ایلچی کوټی ته راننوت هغه د تخت مخی ته په تعظیم شو او بیا څو گامه شاته ولاړ په ادب ودرید، په ښی لاس کی یی د فردیناند لیك ؤ. ابوعبدالله او د مجلس نور خلك ئی چی ځانته متوجه ولیدل لیك یی پرانیست او په لوستلو یی پیل وکړ:
اعلی نسبه تولواك ستر فردیناند یو ځل بیا ابوعبدالله ته مشوره ورکوی چی ددی بی گټی جگړی په اوږدولو دی د خپل رعیت ستونزی نه زیاتوی، د غرناطی پاچا به تر اوسه پوری پر دې داده شوی‌وی چی ترڅو غرناطه وښیسی د قسطلی پوځ به بیرته ستون نه شی، ددی هم څه امکان نشته چی د افریقا په خپلمنځی جگړو کی مصروف پاچاهان دی غرناطی ته دمرستی لپاره پوځونه راواستوی. د لوی فردیناند یقین دی چی د غرناطی او شاوخوا غرنیو قبایلو د ایل کولو لپاره پوره ځواك لری. پر دی سربیره پاچا او ملکه ابوعبدالله او رعیت ته یی د سولی لاس ورغځوی، که ابوعبدالله د خپل رعیت بد حالی ته غواړی نو زر تر زره دی وسله کیږدی، او د سولی د شرطونو د توافق لپاره دی خپل استازی راواستوی، تولواك فرناند دا داډ درکوی چی چلند به یی ډیر سخاوتمندانه وی.

عبدالملك ایلچي ته وکتل وی ویل: تر سبا پورې به موږ ځواب درکړو.
ایلچي پاچا ته خم شو له سلام وروسته له کوټې نه ووت. په دروازه کی دوه ساتونکی ورسره شول او شاهي میلمستون ته یې بوت.
ابوعبدالله لیك یو ځل بیا پرانیست او له یو نظر لیدو وروسته یې موسی ته وکتل په غمجنه لهجه یې ورته وویل: موسی ستا رایه څه ده؟
موسی جگ شو یوه شیبه یې چوپ د مجلس حاضرینو ته وکتل او بیا یې وویل:

موږته داسی ویل شوی وو چی د فردیناند ایلچي د سولی پیغام راوړی او راځي خو د سولی لپاره چی لومړی شرط دوی را استولی دی دا دی چی موږ وسله کیږدو. زما په گومان خو د وسلی له ایښودو وروسته د نورو شرطونو توافق ته هیڅ ضرورت نشته. ددی لیك مفهوم دا دی چی لومړی موږ باید د فردیناند زورته گونده ووهو او بیا دی دده په رحم او کرم بروسه وکړو. ابوالقاسم عبدالملك موږته ویل چی فردیناند له موږ سره یو باعزته توافق ته تیار دی. ځکه خو باید په خلاص ذگر کی له جگړې نه ډډه وکړو، تاسو زما خبره واته وریده، تاسو په ځان غولولو روږدی یاست، او دا دی تن یې پخپله نتیجه وینی. محترم پاچا، لوی وزیر صیب، او د اولس مشرانو! زما رایه تاسوته معلومه ده، توری تل د قلمونو پریکړی نه دی ماتې کړي، فردیناند گومان کوی چی د غرناطې مړیه په قبر کی ایښودل شوی او اوس یوازی پری د خاورو اړ ولو کار پاتی دی. د هغه استازی تاسوته دا پیغام راوړی چی که تاسو په لحد کی پریوتلو ته چمتو یاست نو ستاسو هدیره به ستاسو د خوښې سره سمه جوړه شی، تاسو که پخپله د خپلی مړی خپه کولو ته چمتو شوی نو د مړي سپکاوي؟ به مونه کیږی.
محترم پاچا! که ته له مانه د فردیناند د لیك ځواب غواړی نو د غرناطی

لوی پاچا! زه د موسی بن ابی غسان مخالف نه یم، زه دده د احساساتو درناوی کوم. خو که دی زما په نیك نیتی بدگومانه وی زه همدا اوس استعفی ته تیاریم. زما گناه دا ده چی له ښار نه بهر په خلاص میدان کی می د جگړې مخالفت کړی. خو موسی بن ابی غسان پوهیږی چی ما دا د بی زړهتوب په وجه نه دی کړی؛ ما یوازی دا نظر ورکړ چی که د جگړې پریکړه زموږ په حق کی نه وه نو موږ به له ډیر دردناك برخلیك سره مخ شو.

د پوځ چی کوم حالت دی ترما موسی ته ښه معلوم دی، د اولس حالت هم له هیچا نه پټ نه دی. موسی به ښایی دا تور په مانه لگوی چی هغه ورځ د الحمرا په دروازه کی چی خلکو د سولی په پلوی مظاهره کړی وه زما سازش ؤ. او له هغه وروسته چی کومو مشرانو او د پوځ قوماندانانو په خلاص ډگر د جگړې مخالفت وکړ هغه ما ورښودلی وو. او نن چی د فردیناند د ایلچی په راتگ په ښار کی خلك خوښی لمانځی هغوی ته هم ما پټ هدایت کړی دی.

د غرناطی مشرانو! که تاسو د موسی له پریکړی سره موافق یاست چی زموږ سره تر وروستی سلگی له جگړې پرته بله لاره نشته نو زه هم درسره یم او دښمن به ستاسوله پریکړې نه خبر کړای شی.

یو مشر اوچت شو ویی ویل: زما رایه دا ده چی موږ باید د پریکنده جگړې لپاره تیار شو خو که ددی ترڅنگ د کومې باعزته معاهدی امکان وی نو د خبرو اترو دروازه هم باید ونه ترو.

بل مشر اوچت شو ویی ویل: د احساساتو په څپو کی باید ترخه حقایق هیر نه کړو، د ښار خلك له لوږی مري، که دا کلابندی د یخنی تر موسم پوری اوږده شوه نو زموږ حالت به نور هم خراب شی، له بهرنه د بدر بن مغیره د کوټو په شمار کسانو نه پرته نور له چانه د مرستی څه تمه نشته

سره بیا حمله نه کوي، آخر موږ تر کومه باید وجنګیږو؟ موږ باید دا هم هیر نه کړو چې زموږ د جګړې دوام په نور اندلس کې زموږ د هغو بې وسه ورونو ستونزې زیاتوي چې د عیسویانو تر ولکې لاندې د دوی په پاچاهۍ کې اوسي.

موسی جګ شو وېې ویل: که نن موږ په غرناطه کې د کلابندۍ پر ځای د تسلط د حصار په مخکې پراته واي نو زموږ د هغو ورونو حالت به داسې نه ؤ. پر هغوی د مصیبتونو غر هغه وخت راپریوت چې عیسویانو ته زموږ بې حسي ښکاره شوه.

بیا بل سړی جګ شو وېې ویل: د غرناطې ځنې علما وايي چې د فردیناند سره زموږ دا جګړه جهاد نه دی. زموږ داولس زیاته برخه د عیسویانو تر لاس لاندې شوې دي او زموږ دا جګړه به زموږ او زموږ د ورونو له ستونزو ډیرولو پرته بله نتیجه ورنکړي.

موسی له غوسې نه شونډې وچیچلې جګ شو په لړزیدلي غږ یې وویل:

زموږ جګړه د ظلم او تیري پر خلاف د انسانیت د دفاع جګړه ده زموږ برۍ به د انسانیت بری او ماته به مو د انسانیت ماته وي زه په دې مجلس کې داسې احمق ته د عالم ویلو اجازه نشم ورکولی چې دا جګړه جهاد نه بولي.

د غرناطې اولسه! تاسو دا سوچ ولې نه کوئ چې موږ د هغې خاورې پر سر جنګیږو چې پرې ولاړ یو، که له موږ نه دا واخلې نو هیڅ به راپاتې نه شي، که غرناطه زموږ له لاسه ووته نو په اندلس کې به د اسلام ډیوه د تل لپاره مړه شي له دې نه وروسته د دربار هر سړي په نوبت په بحث کې برخه واخستله، نیمه شپه بحث پای ته ورسید، له موسی او د ده د څو ملګرونه

پرخلاف ابوالقاسم فردیناند ته واستول شو ده پوځ ته د پریکنده جګړې د تیاری امر وکړ. بدر بن مغیره او دهغه ملګروته یې هم د تیاری خبر ورکړ. ابوالقاسم تر دری ورځو پوری له فردیناند سره د سولې پر شرایطو خبری کولی په دی موده کی د ښار په جوماتونو کی د موسی اروا پالو ویناؤ په ښاریانو کې نوی ولولی راپورته کولی. د اولس د جوش او جذبې په وجه د جګړې مخالفین تر ډیره حده غلی شوی وو.

*****

(۲)

له دری ورځی اوږدو خبرو وروسته ابوالقاسم عبدالملك چې له فردیناند سره د سولې په کومو شرطونو پر توافق بریالی شو هغه دا ؤ چې:

۱ - دوارِه لوری به تر (۷۰) ورځو پوری اوربند کوی. او په دی موده کی به په لاندی شرطونو د غرناطې حکومت فردیناند ته سپارل کیږی.

۲ - دوارِه لوری به د جګړې بندیان خوشی کوی.

۳ - د غرناطې عیسوی حکومت به د مسلمانانو د مال او سر د خوندی ساتلو ذمه واری اخلی.

د مسلمانانو په مالونو، ځمکو او جوماتونو کی به عیسویان هیڅ مداخله نه کوی. دوی به د لمانځه، آذان او روژې نیولو پوره آزادی لری. د مسلمانانو کورونو او جوماتونو ته به د عیسویانو د ننوتلو اجازه نه وی.

د مسلمانانو د دوسیو او دعواپریکړه به د دوی د شریعت له مخی کیږی. او د دی هدف لپاره به مسلمان قاضیان تاکل کیږی.هیڅ یهودی یا عیسوی به د دوی د پریکړو واك نه لری.

٤ - که مسلمانان غواړی افریقا ته د هجرت اجازه لری. او عیسوی حکومت به دوی ته کښتۍ ورکوی.

حکومت سپارل کیږي.

۷ - تر (۷۰) ورځو پوري به غرناطه، الحمرا او ټولي وسلي عیسویانو ته سپارل کیږي.

۸ - د عیسویانو له خوا به پر فردیناند برسیره د روماالوي پاپان هم پر دی ترون لاسلیك کوي او ددی ترون د عملی کولو ذمه واری به اخلي.

ابوالقاسم د ابوعبدالله په دربار کی د تړون د شرطونو له لوستلونه وراندې له حاضرو خلکونه دا ژمنه واخسته چی ددی شرطونو په اړه به چی په دربار کی څه خبری کیږی هغه به بهر اولس ته نه رسول کیږي.

په دربار کی د علماؤ او سردارانو زیاتره نظر دا ؤ چی د فردیناند شرطونه ډیر سخاوتمندانه دی. خو موسی ددی تړون په مخالفت کی د خپل ټول زور څخه کار واخست، تر څلورو ورځو پوری بحث دوام درلود، د سردارانو اکثریت د تړون په ملاتړ خپل نظرونه واوړول، نن د بحث وروستی ورځ وه په الحمرا کی د غرناطی د زمری وروستي چیغی کرنګیدلی، د دربار حاضرین چوپ دده خبروته ناست وو، موسی بن ابی غسان وویل: د غرناطی اولسه! زه ستاسو په مراوو ځیرو د هغه قوم د تقدیر فیصله لولم چی پر دی هیواد یی اته سوه کاله واکمنی کړی ده، زه پوهیږم چی زما کړیکی او فریاد به په تاسو هیڅ اغیزه ونه کړی. ستاسو په رګونو کی هغه وینه وچه شوی ده چی په الفاظو په جوش راتلی شي. خو پر دی سربیره چی زه پوهیږم، غږ به می له دی دیوالونو سره ترټکر وروسته په فضا کی ورك شی تاسوته په یو څه ویلو مجبوریم. الفاظ مړیوته د ژوند د اوبو کار نشی ورکولی. خو که په تاسو کی د ژوند کومه ساه پاتی وی نو زما خبری په غور واوری. د قیامت په ورځ به د الحمرا مانۍ دغه بی روحه ډبری ګواهی ورکوی چی کله

بده وي. که تاسو له دی نه نه شرمیږئ چی د قیامت په ورځ به خپلو هغو پلرونو ته څه ورګوری چې هډوکی یی پر دی خاوره کی ښخ دی نو د خدای (ج) لپاره دا سوچ وکړی چی ستاسو راتلونکی نسل به تاسو ته څه وایی؟ تاسوته له خپلو پلرونو نه حکومت په میراث پاتی شو، او تاسو خپلو اولادونو ته څه شی پریږدی؟ غلامی، ذلت او رسوایی!!

که تاسو وسله کیښوده نو نه یوازی به زموږ د تیرو څو کلونو قربانی خوشی ولاړی شی بلکی هغه تولی وینی به خوشی ضایع شی چی د طارق بن زیاد له وخته تر ننه په دې خاوره تویی شوی. نن د قوم د شهیدانو ارواوی تاسو وینی، د دوی دوینو سپکاوی مه کوی، زما نن هم دا ایمان دی چی دا جګړه ګټلئ شو، تاسو دا وایی چې د غرناطې خلك له لوږی نه تنګ شوی دي، خو آیا دا لوږه چی له بی زړه نه زړور جوړوی آیا له زړور نه بی زړه جوړ کړل؟ که تاسو همت ونه بایلی اوس نن هم جګړې ته چمتو دی، موږ په څلوېښت زره غازیانو په لوښه کی دښمن ته ماته ورکړی، آیا یو لك تنه اوس د غرناطی دفاع او ساتنه نشی کولی؟ تر نن پوری موږ د غرناطی د دیوالونو تر شا غلی وو، خو اوس به کفنونه پر سر وتړو او راویه وزو که ژوندی پاتی شو نو آزادی به مو ساتلی وی، که شهیدان شو هم عزت به مو ساتلی دی. دا څمکه به چې په هره ذره یی زموږ د نیکونو د عزت داستانونه نقش دی زموږ ذلت نه وینی. دا آسمان چی اته سوه کاله یی زموږ د نیکونو توري لیدلي دی زموږ په پښو کی به د غلامۍ زولنی ونه وینی. د قیامت په ورځ به زموږ لمن د شهادت په وینو رنګینه وی خو پر هغی به د غلامۍ او ذلت تور داغونه نه وی.

یو د نفوذ خاوند سردار اوچت شو ویی ویل: ته بیا هم د احساساتو په

موسی! په هیڅ مذهب کې هم ځان وژل روانه دي. موږ د خدای(ج) د رضا په وړاندې بې چاره او بې وسه یو، د تقدیر لیك څوك نشي وړاتولی. له غوسې نه د موسی بنه سره وځلیده جگ شو په لړزیدلی غږ یې وویل: تاسو ذلت او غلامي ته ژوند، او شهادت ته ځان وژل گڼئ، دا نوی خبره نه ده کله چې طارق د اندلس پر ساحل بیړۍ سوځولی او خپلو ملگروته یې د وړاندې تلو امر ورکړ نو هغه وخت هم ستاسو په څیر د تدبیر خاوندانو ویل چې دا ځان وژل دي. او کله چې د سلطان ابوالحسن پوځ د لوشه پر لور پرمختګ کاوه نو ستا سودا گومان ؤ چې دا کار ځان وژل دي. طارق او ابوالحسن زموږ په څیر معمولي انسانان وو، خو د بدر په میدان هم چې د کایناتو د سردار صلی الله علیه وسلم ۳۱۳ تنه ملگري سرښندویان د دښمن د یوه لوی پوځ په مخکې ودریدل نو د منافقینو یوه ډله د کفارو له زوره وویریدل او ویل یې چې د اسلام ډیوه تر اوسه د کفر د سیلیو سره د مقابلې توان نه لري. زه نه پوهیږم چې تاسو د کوم خدای(ج) په رضا قایل یاست، زه یوازې یو خدای(ج) پیژنم د همغه امر منم، او د همغه په وړاندې سر ټیټوم. زما خدای(ج) هغه دی چې پر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم یې قرآن نازل کړی. زما خدای(ج) هغه ذات دی چې نوح علیه السلام ته یې له توپان نه نجات ورکړ، زما خدای هغه دی چې ۳۱۳ تنه یې پر زرو تنو بریالي کړل، زما خدای هغه دی چې د قیصر او کسرې تاجونه یې د سارايي عربو په پښو کې وروغورځول. د هغه خدای محبوب صلی الله علیه وسلم ماته دا لارښونه کړې ده چې که مؤمن ژوندی وي نو غازي او که مړ شي نو شهید به وي. د هغه خدای جل مجده منونکي د توري پر تیغ درومي خو د غلامۍ د زنځیرونو بوج نشي اوچتولی، د هغه خدای(ج) رضا دا ده چې موږ کفنونه تر سرتاوکړو او ډگرته راووزو او د نړۍ تر وروستیو گوټونو د ظلم، تیری،

کې وګورې د ځانګړيو اشتباهاتو زغم شته خو دله ټيزې غلطۍ نه بخښل کيږي، که تاسو دوبيدل غواړئ نو د خدای (ج) په خاطر اولس ته د دوبيدو مشوره مه ورکوئ، ستاسو سره وسايل شته، تاسو به د مصيبت په وخت کې غرناطه پريږدئ او بل لوري ته به ولاړ شئ خو اولس ته داسې حالات مه زيږوئ چې د هيڅ لوري نه شي.

موسى کښيناست، په دربار کې چوپتيا خپره شوه، تولو تر ډيره ځنډه يوې بلې خواته کتل بالاخره ابوالقاسم اوچت شو او ويې ويل: د قوم مشرانو! د غرناطې د برخليك پريکړه ستاسو په لاس کې ده، ما ستاسو په امر له دښمن سره د سولې خبرې اترې وکړې. خو د دې شرطونو منل او يا نه منل د تاسو کار دی، که تاسو پوهيږئ چې په دې حالاتو کې جګړې ته دوام ورکولی شو نو زه ستاسو د پريکړې هر کلی کوم، خو که تاسو مايوس ياست نو بيا دا شرطونه غنيمت وګڼئ، زه په ځانګړې ډول د موسى نظر تاييدوم، خو د يوه وزير په حيث زه ستاسو د پريکړې انتظار کوم، اوس دلته هغه تول مشران او پوځي افسران شته چې د غرناطې د اولس او پوځ نمايندګي کولی شي. زه يوازې دومره پوهيږم چې که تاسو د جګړې د دوام پريکړه وکړې نو ددې نه زغمونکې حالت سره سره به تول اولس يو ځل بيا راپاځي، خو که تاسو د سولې پلويان ياست بيا له پوځ او اولس نه څه تمه کول بې ګټې ده، زه خدای(ج) ته دعا کوم چې د پريکړې په وخت مو لارښوونه وکړي.

يو بربري سردار اوچت شو ويې ويل: موسى بن ابي غسان ته معلومه ده چې موږ د ډيرې مايوسۍ په حالت کې هم په جګړه کې د هغه ملاتړ وکړ، خو اوس حالت داسې دی چې پر دې پړې اچول بې ګټې دي. د جګړې د دوام دری نتيجې کيدای شي، بشپړه فتحه او يا بشپړه تباهي، خو د سولې

او ویې ویل: په دې کې شك نشته چې نصرانیان نن زموږ دښمنان دي، خو د سولې په حال کې به موږ ته په سوله ایزه فضا کې دوی ته د اسلام د تبلیغ موکه په لاس راشي او د نفرت دیوالونه به چې نن زموږ تر منځ دریدلي دي پخپله راولیږي. زه هغه ورځې نږدې وینم چې د مسلمانانو دښمنان به د اسلام غوره سپاهیان او ساتونکي وي. د قرطبې یوه مهاجر چې په خپل ذهانت یې په ځو میاشتو کې د غرناطې په دربار کې ښه محبوبیت او رسوخ موندلی ؤ دا خبرې تایید کړې.

* * * * *

(۳)

د وېناګانو دا لړۍ تر ماسپښین پورې روانه وه، د غرناطې امیرانو او علماؤ د سولې په پلوی پریکړه وکړه، د ټولو په پای کې ابوالقاسم اوچت شو ابوعبدالله ته یې وکتل، د غرناطې د بدمرغه اولس وروستی تاجدار سر ښکته اچولی ؤ او ناست ؤ، ابوالقاسم وویل: لوی پاچا! د اولس د مشرانو پریکړه دا ده چې د سولې دا شرطونه ومنې، ستاسو حکم څه دی؟

ابوعبدالله د ډیرې بې وسې په حالت کې د دربار خلکو ته وکتل، له موسی نه پرته د ټولو په څېرو مایوسي خپره وه، ابوعبدالله په غمجن آواز وویل: زما ګومان ؤ چې د اولس دا مشران به د موسی له خبرو اوریدو وروسته خپله فیصله بدلوي، خو داسې ښکارې چې د بربادۍ ددې اور هیڅ چاره نشته چې ما په خپل لاس بل کړی ؤ. ابوعبدالله نور هم څه ویل غوښتل خو غږ یې په ستوني کې بند شو او سترګې یې اوښلنې شوې.

ابوالقاسم موسی ته وکتل، د هغه له سترګونه د غوسې لمبې بادیدې ابوالقاسم وویل: موسی ته نور څه ویل غواړې؟

موسی د هغه په ځواب کې اوچت شو، او تر یوې شیبې ځنډ وروسته یې وویل:

د امن او دوستی پیغام دی. تاسو گومان کوئ چی خپله آزادی دښمن ته وسپارئ نو تاسو به آرام او آسوده پاتی شی خو ځانته دوکه مه ورکوئ. دا الفاظ له دی کاغذ نه ډیر بی ثباته دی چی پری لیکل شوی دی زما اروا د هغه ذلت له تصور نه لړزیږی چی تاسو ته به د فردیناند په غلامۍ کی درپه برخه شی. کله چی دوی غرناطی ته ننوزی ددغه سخاوتمندانه الفاظو مفهوم به له یوی مخی بدل شی، تاسو فکر کوئ چی د فردیناند د پوځیانو په پهره کی به آرام خوب وکړئ، تاسو گومان کوئ چی په دنیا کی له بی وطنه کیدو او ذلیل کیدو وروسته به د اسلام خدمت وکړئ؟ خو په یاد ولرئ! د فردیناند د حکومت له پیلیدو سره به په غرناطه کی د وحشت او ستم داسی دوران راشی چی تر اوسه پوری په نړۍ کی کوم اولس نه وولیدلی، هغه ژبه چی د خدای(ج) او رسول نوم واخلی غوڅه به شی. ستاسو لوڼی، خویندې به په ډك بازار کی بی حرمته شی. او تاسو به د توری په څوکه عیسویان کړی. ستاسو لپاره ددغه پراخه او لوی محلونه نه وی‌تنگ او تیاره زندانونه به وی. څمکه به ستاسو اوښکی وینی او آسمان به مو آهونه اوری، زه به دا ننداری نه وینم، ماته د آزادی مرگ آسانه دی. تاسوته به د غلامۍ ژوند سخت وی، زه څم له دی وروسته به ما بیا ونه وینی.

موسی گړندی گامونه واخستل بهر ته ووت د «دارالاسود» له دروازی نه بهر د ابوعبدالله مور او میرمن ولاړې وې. د هغی په سترگو کی اوښکی وی، موسی یوه شیبه ودرید هغی ته یی وکتل او بیا په همغه توندی وراندی ولاړ، لږ څند وروسته دده د کور په دروازه کی د خلکو گڼه گونه وه، موسی پر خپل ښکلی آس سپور د محل له دروازی نه راووت. له سره تر پښو په زغره کې پټ ؤ. خلکو چی دی ولید یوی او بلی خواته شول، او ده له چا سره له څه خبروپرته آس ته پوونده ورکړه، د ښار له دروازی نه له وتلو

ته یې ورتوپ کړل موسی بن ابی غسان د تاریخ د هغو شخصیتونو له ډلې نه دی چې عادي انسان نه ګڼل کیده او خلکو یې په مرګ باور نه کاوه د غرناطې مظلومو مسلمانانو تر یوې مودې دا ګومان کاوه چې هغه مراکش ته تللی او د دوی د مرستې لپاره لښکر تیاروي، خوه هسپانیې یو عیسوی مورخ « انتونویاګاپیدا » لیکي چې یو ماښام د «زو نیل» د سیند په غاړه د فردیناند د لښکر پنځلس تنو نیزه وهونکو پر یوه سپور غږ وکړ، مسلمان شاه ځلمي دوی ته د ځواب پر ځای پرې حمله وکړه او د تیزۍ په لومړی ګزار یې د فردیناند یو پوځي وواژه، له هغه وروسته یې یو پر بل پسې د عیسوي ډلې د پوځیانو تر نیمایي زیات کسان ووژل. بالاخره دی پخپله هم سخت ټپي شو، خو بیا یې هم په ګونډو په خنجر مقابلې ته دوام ورکړ. کله چې یې لاس او پښنو بلکل ځواب ورکړ او له حرکته ولوید، نو یې د ساه ورکولو په وخت کې هم د دښمن په لاس د اسارت ذلت خوښ نه کړ په ډیرو هڅو یې ځان سمندر ته رغورځاوه د ټپونو او ستوماني په وجه یې لامبو نشوای وهلی او څپو په خپله غیږه کې پسې واخست. عیسوي سپرو چې دده آس راونیو، د غرناطې د جګړې بندیانو دا خبره تصدیق کړه چې دا د موسی بن ابي غسان آس دی.

* * * * *

(٤)

د الحمرا راز تر ډیره د غرناطې له اولس نه پټ پاتې نه شو، د ښار ځوانان چې موسی یې خپل زغورونکی ګاڼه د امیرانو پر خلاف شول، په پوځ کې که څه هم داسې یوه ډله پیدا شوې وه چې د سولې پلوي وو، خو زیاتره داسې خلك وو چه له جنګه پرته یې د خپلې ماتې منل نشوای زغملی.

څو ورځې وروسته خبرې تر دې پورې راغلې چې په هره مدرسه محله او جومات کې د سوله خوښوونکو او جګړې دپلویانو تر منځ تکرونه راغلل، په مدرسو او منبرونو هم یو د بل پر خلاف ویناوې او خطابې پیل شوې، یو ماښام د ښار د پروزیاتو خلکو د ابوعبدالله او نورو امیرانو پر خلاف درنه مظاهره وکړه، د سولې خوښوونکو یوې ډلې د دوی د پوهولو هڅه وکړه خو د خلکو د احساساتو او جوش دا حالت ؤ چې پر دوی ور پریوتل. د دوی له ډبولو او څغلولونه وروسته خلکو په ښار کې مارش وکړ او د داسې څو امیرانو او علماؤ کورونه یې وسوځول چې د فردیناند د جاسوساتو شك پرې کیده، په ښار کې د کورنۍ جګړې له ویرې ابوعبدالله تر (۷۰) ورځو ته وړاندې ښار فردیناند ته د حواله کولو پریکړه وکړه، او بالاخره یې د ۸۹۷ هـ ق د ربیع الاول په ۱۲ مه غرناطه د دښمن په ولکه کې ورکړه.

ابوعبدالله په آس سپور شو له الحمرا نه ووت، په ده پسې د ښار پنځوس تنه امیران هم پر آسونو سپاره وو، له ښار نه بهر فردیناند ، ملکه ازابیلا او د دوی لښکر کتارونه تړلې ولاړ وو، ابوعبدالله چې نصراني پاچا ته ورنږدې شو له اس نه کوز شو د زیاتو هڅو سره سره یې اوښکې تر سترګو راوخوټیدې. فردیناند هم له آس نه پلی شو هغه یې په غیږ کې ونیو.

ابوعبدالله د الحمرا کنجې ورته وړاندې کړې ویې ویل: خدای(ج) تاته د غرناطې واکمني درکړه، زما دعا ده چې هغه (ج) تا د رحم، عدل او انصاف ور وګرځوي.

ابوعبدالله ملکې ازابیلاته وکتل ، ملکې چې د الحمرا د عظمت په وړاندې د غرناطې د وروستي واکمن بې کسې ولیده اغیزه یې پرې وکړه، تر یوې شیبې پورې هغه یوه ښځه شوه، زړه یې راډك شو سترګې یې راډکې

لښکر د فتحې نغارې غږولی ښارته ننوتل پاچا او ملکې له خپل خپل مذهبي پیشوا نه وغوښتل چې پخپلو سپیڅلو لاسونو د الحمرا په منار د صلیب نښان ټینګ کړي. دغرناطې د ښځو او ماشومانو سترګې د الحمرا په منارونو ښخې وې. دی ښار چې تر پیړیو پیړیو یې داسلام غازیان له لرې لرې فتحونه بریمن د تکبیر په شعارونو استقبال کړي لیدلي وو، اوس یې د دښمن د برې ترانې اوریدې. د الحمرا په برج تر اوسه د اسلام بیرغ رپیده، د غرناطې اولس د خپل تقدیر دې ستورې ته کتل چې د تل لپاره لویدونکی ؤ.

کله چې د غرناطې هلالې بیرغ راټیټیدلو او پر ځای یې د صلیب جنډې اوچته شوه نو یو لورې ته د فردیناند سپاهیانو د خوښیو سندرې ویلې او بل لورې ته د غرناطې د اولس زړه لړزوونکې کریږې اوریدل کیدې، د یوه فاتح اولس په رګونو کې د ژوند وینه چلیده او د یوه مغلوب او مات اولس نغمونه لویدل.

ابوعبدالله د البشارات د یوې غونډې په څوکه خپل آس ودراوه. هغه د وروستي ځل لپاره غرناطې ته وکتل او په زوره زوره یې وژړل.

زړه ورې مورېې په حقارت آمیزه لهجه ورته وویل: تا چې د کرمې پاچاهې د ساتنې لپاره د میړونو په څیر خپلې وینې ونه بهولې شوې، اوس یې پر بربادۍ د ښځو په څیر د اوښکو توېول څه ګټه لري؟

د البشارت په لږه ساحه د ابوعبدالله واکمنې له څو ورځو نه زیاته ونه چلیده، د هغه سیمې د آزادې خوښوونکو مسلمانانو په زړونو کې د ده لپاره له کرکې او نفرت نه پرته بل څه نه وو، ابوعبدالله عیسوي پوځ په مرسته پر دوی د حکومت کولو پر ځای مراکش ته ولاړ او هلته د مراکش د پاچا په پوځ کې وګومارل شو.

شرطونو مفهوم بدل کړی ؤ. او د مفتوح احتجاج هیڅ معنی نه درلوده. د فاتح اولس مذهبي مشر فتوی ورکړه چې د مسلمانانو دین د هسپانیې د اتحاد په مخکې خنډ دی. مسلمانان د حکومت وفادار نشي پاتې کیدای د غرناطې اولس د مراکش او نورو مسلمانانو د مرستې په انتظار دی. دوی جاسوسان دي او جلا دین، ژبه، جامه او کلتور یې د عیسوي حکومت لپاره خطر دی، حکومت یوازې هغه وخت د دوی د ساتنې ذمه واري اخلي چې دوی د خپل زړه د بدلون ثبوت وړاندې کړي. او ددې ثبوت لپاره یوازې‌ددوی رسمي اعلان بس نه دی. دوی د دې لپاره چې امن خوښ رعیت شي باید حکومتي دین ومني.

نه یوازې په دنیا کې د امن لپاره بلکې د آخرت د نجات لاره هم همدغه ده چې دوی باید اسلام پریږدي او د عیسویت په لمن کې پناه واخلي.

د مسلمانانو لپاره د جوماتونو دروازې تړل کیدې دوی د لمانځه اداکولو او آذان اجازه نه درلوده په بازار کې په عربي ګړیدل یو ستر جرم ؤ. د غرناطې هغه ستري مدرسې چې تر اتو پیړیو پورې یې لویدیځو هیوادونو ته د علم رڼا ورکړه اوس یې د بندولو امر شوی ؤ.

هغه کتابتونونه چې د علم مشالونه ګڼل کیدل د اور د لمبو خوراك شول . د غرناطې نه بهر په سمسورو ځمکو او باغونو عیسویانو قبضه وکړه، سوداګر مسلمانان له خپلو دوکانونو او هستیونه بې برخې شول. د لوټ او وژلو توپان راوالوت. د غرناطې یهودي سوداګر ډیر شتمن وو، هغوی د خپلو شتمنیو د ساتنې په خاطر لوټمارانو ته د مسلمانانو د شتمنیو راپوروونه ورکول. دوی به حکومتي چارواکو ته لاړ او ډیر سامان سوغات ورکړ او بیا به یې د مسلمانانو کورونه پرې ولوټل، دا یوازې پیل ؤهر نوی سهار د غرناطې مسلمانانو ته د یوه نوي مصیبت له پیغام ګاتلو. او هر

# د اولس د ځولی وروستی غشی

د شیلیر د غره په یوه دره کې پرسرحدی پوځ بر سیره د غرنیو تولو هغو قبایلو مشران راټول وو چې د غرناطی له لاسه وتلو وروسته یې د شاهین دره خپل وروستی مورچل باله. بدر بن مغیره په یوه لوبه ډبره وخوت او دوی ته یې په ویناکې وویل:

زما دوستانو او مشرانو! زما ملګرو غلیم پر موږ له ځلورو خواو یرغل راوړی. هغوی زموږ د ماتولو لپاره خپل ټول ځواک آزمویلو ته راوستی. موږ چې له کومو حالاتو سره مخ یو تاسو پری خبر یاست زه په دی حالاتو کې له تاسو سره یوازی یوه ژمنه کولی شم او هغه دا چې که تاسو د عزت او آزادی ژوند ونه ګټلی شو نو د عزت د مرګ دروازه به دریاندی تړلی نه وی. که تاسو زه خپل لاربنود منلی یم نو زما پیغام تاسوته دا دی چې ستاسو برخه یا د عزت او خپلواکی ژوند او یا د عزت مرګ دی، د غلامی ژوند او د ذلت مرګ نه دی.

دا د فطرت قانون دی چې په دی دنیا ځوك پیدا شوی دی ضرور به مری هم، که د دنیا د ژوند پای مرګ دی نو په دی کې بیا څه توپیر دی چې موږ یوه شیبه ژوندی پایو که یوه پیړۍ؟

د مړو نه پر قبر کې یوازی دا پوښتنه کوی چې تاسو ژوندی وی نو څه ډول ژوند مو کړی. او په کوم مرګ مړه شوی؟ زه په دی نازیږم چې کله په دی خاوره د خپلو اسلافو قبرونه وینم نو سرمی له خجالت او شرم نه ښکته نه دی، تاریخ ګواه دی چې هغوی هیڅکله هم په ژوند کې د عزت لمن پری

دځو ورځې ذلیل ژوندانه لپاره یې له حق او صداقت نه مخ واړاوه او د راتلونکو نسلونو لپاره یې د دایمي غلامي لعنت پرېښود. مومن د حق لپاره ځان وژني، له حق نه مخ اړول او ژوندی اوسېدل د ځان لپاره عار او ننګ بولي.

موږ په شمیر کې لږ یو. زموږ وسایل لږ دي. خود ماضي تاریخ پاڼې واړوی وګورئ هغه ورځې درپه یاد کړئ چې د حق پالویو وړوکی ټولي په ګیډو ډبرې وترلې خو د قیصر او کسرې دبدبه یې ماته او بیرغ یې نسکور کړ. هغه ورځ درپه یاد کړئ چې طارق بن زیاد د اندلس پر ساحل خپلې کښتۍ وسوځولې او خپلو سربښندویانو ته یې وویل چې د مسلمانانو ګامونه د وړاندې تګ لپاره دي د شاتګ لپاره نه دي.

زموږ جګړه د وحشت او بربریت پر خلاف د انسانیت بغاوت دی. دا د اصولو جګړه ده، که موږ په جګړه کې ټول ووژل شو هم زموږ ارمان به ژوندی وي.

انسانیت به په هر وخت کې د ضلالت پر خلاف د اعتراض غږ اوچت ساتي. ددې ستر هدف لپاره به یو ګروپ او ډله خامخا توره ایستلې وي، تر څو چې انسانیت ژوندي وي دا ارمان به هم ژوندي وي، د اندلس تاریخ لیکونکي به د انسانیت د علمبردارانو نومونه هیڅکله هم هیر نه کړي، وخت د زماني له مخ نه هغه لیك نشي ورکولي چې د اولس شهیدان یې په خپلو وینو لیکي. د غرناطې په اړه چې کوم احوالونه راځي هغه ډیر غمونکي دي مسلمانان د توري په څوکه د اسلام پرېښودلو ته مجبوروي. د ظلم او وحشت لاسونه له ځلورو خواونه وریسي دي په بازارونو کې د مسلمانانو ژوند خوندي نه دی، په کورونو کې یې د خویندو لونو عزت په

ګنله چې د غلامۍ ډېر وړوکی بوج به په اوږه کړي او د ژوندانه په زرګونو نعمتونه به ترلاسه کړي. خو اوس پرې د ژوند د نعمتونو دروازې بندې شوې دي. او د غلامۍ او مريتوب بار ورځ په ورځ وربانـدې درنيږي. د دوی هډوکي تردي بار لاندې کاږه شوي خو اعتراض او احتجاج نشي کولی.

په دوی کې د ځينو دا ګومان ؤ چې عيسويت به قبول کړي او د هرې ورځې له مصيبت نه به په امان شي، خو اوس هغوی پوهيدلي چې مربيان عيسويان او واکمن عيسويان ډېر توپير سره لري. زما دوستانو! تر کومه چې زه ژوندی يم. او تر څو چې تاسو له ماسره ملاتړ ياست، زه دا ژمنه درسره کوم چې په دې دره کې به د غرناطې تاريخ نه تکراريږي. موږ به جنګيږو، موږ به تر وروستۍ سلګۍ پورې جنګيږو، د اندلس خاوره به زموږ بې وسې د اوښکو پر ځای زموږ په وينو خړوب شي.

*****

(۲)

پر غرناطه د عيسويانو د قبضې اوه کاله تير شوي وو، د جنوب ختيځ د يوې وړوکې غرنۍ سيمې نه پرته پر ټول اندلس د دوی واکمني شوه.

کله چې د غرناطې اولس د خپلې آزادۍ لپاره جګړه کوله د قرطبې، اشبيلې، طليطلې او نور اندلس مسلمانانو دا ګومان کاوه چې د غرناطې د مسلمانانو جګړې له امله پر دوی د عيسوي واکمنو تيري او ظلم کيږي که د غرناطې مسلمانان وسله کيږدي نو عيسويان به پر دوی هم بيا ظلم نه کوي. په هسپانيه کې به د امن او مذهبي لوريني يو مثالي دوران پيل شي، ځکه خو چې کله دوی خبر شول چې د غرناطې اولس تسليم شو وسله يې کيښوده نو دوی د عيسويانو د خوښۍ په خاطر د برې په جشن کې برخه واخستله، د خپلو عيسوي واکمنو په دروازو کې راټول شول او د برې

غرناطه یوه داسې دبره وه چې د دوو پلو تر منځ یې ځای نیولی ؤ او ددې دبرې د لرې کېدونه وروسته د ژرندې دواړه پلونه یو له بل سره ولگېدل، د وحشت او بربریت سیلاب چې یوه موده د غرناطې پر برید درېدلی ؤ ددوی دلارې د دې خنډ له لرې کولو وروسته په هر لوري په مسلمانانو پسې ورغوړ، د اندلس هغه مسلمانان چې د برې لپاره یې د غرناطې ملگرتیا ونکړه اوس په ذلت رسوایی او مظلومیت کې ورسره برابر وو، د وحشت لاسونو په هر کلي او ښار کې د انسانیت لمن شلوله. عیسوي حکومت اعلان وکړ چې نور په اندلس کې د مسلمانانو لپاره یوازې درې لارې دي، د اسلام پرېښودل د وطن پرېښودل او یا مرگ. کومو خلکو چې عیسوي مذهب ومانه هغوی د عیسویانو سره برابر حقوق ترلاسه نه کړای شول. واکمنو له هغوی سره په کرکه چلن کاوه، د دوی په نیت بدگومانه وو، پر دوی یې دا تورونه لگول چې پټ لمنځونه کوي. په کورونو کې په عربي غږېږي او عربي زده کوي، د غرنیو باغیانو د برې لپاره دعاگانې کوي، پر دې تورونو به په عمومي دول سزا ورکول کېده. هغه مسلمانان چې د توحید د کلمې په ویلو یې ټینگار کاوه د ډېرې بدې سزا وړ بلل کېدل د هغوسرونه به په سیخونو داغل کېدل. په گاډي پسې به تړل کېدل او د جوماتونو په مخکې به ژوندي سوځول کېدل. په دې حالاتو کې په لکونو مسلمانانو د مراکش په لوري هجرت وکړ. د شمال نه به کاروانونو د جنوب د بندرونو په لوري مخه کړه او کوم خلك به چې په لاره کې له لوټمار نه خوندي پاتې شول او ساحل ته به ورسېدل مراکش ته به د رسېدو په خاطر مجبور وو چې په کښتیو کې ډېره زیاته کرایه ورکړي. که څه هم د ترون له مخې د هسپانیې حکومت د هجرت کوونکو مسلمانانو مراکش ته رسولو ذمه واري درلوده.

زرګونو تنه مسلمانان ووژل او بغاوت یې غلی ګړ. په جنوب ختیځ غرونو او ځنګلونو کې تر اوسه پورې د آزادۍ بیرغ رپیده، فردیناند د بدر بن مغیره د ځپلو لپاره څو ځلې لښکر واستاوه، خو هر ځل یې ماته وخوړه، د عقاب د دری د مجاهدینو شمیر ورځ په ورځ کمیده، د دوی زیاتو ملګرو همت وبایله او هجرت یې وکړ خو د بدر په اراده او تکل کې هیڅ بدلون رانه غی.

* * * * *

(۳)

د شپې په درېمه برخه کې ناڅاپه ربیعه ویښه شوه، د هغې په کوټه کې مشال بل ؤ، او بدر بن مغیره یې سرته ولاړ ؤ په ځیر ځیر یې دی ته کتل.

ربیعه جګه شوه کیناستله وېې ویل: ته څه وخت راغلی یې؟

بدر: زه همدا اوس راغلم او دا دی بیرته ځم.

ربیعې په سوالیه نظر خپل میړه ته وکتل بدر وویل:

ربیعې د شمال په محاذ خدای (ج) موږته بریځ راکړ، موږ دښمن دیرش یو دیر لوی پوځ له لویدیځ نه حمله کړې ده، زه اوس هلته ځم، انشاء الله ددې بری نه وروسته به زه ډیری شپې آرام ویده شم. یوسف څنګه دی؟

ربیعې وویل: یوسف اوس ښه دی، ورمه ورځ یې تبه وشکیده که وایې راویښ یې کړم.

بدر: نه ویده یې پریږده، هغه به اوس بیا له ماسره په تګ اصرار کوي. زبیده څنګه ده؟

ربیعه: زبیده رګه روغه ده. هغه اوس د نکلونو د اوریدو په مینه د یوسف په کوټه کې ویده کیږي. بیا یې بدرته وکتل وېې پوښتل: بشیر چیرته دی؟

ناڅاپه د بلی کوټی ورخلاص شو اویو د اوو کلونو هلك سترگی موښلی راښکاره شو. او په منډه یی د بدر غیږی ته ځان ورساوه،

بدر پورته کړ په غیږ کی یی ونیو، په تندی یی ښکل کړ ویی ویل: یوسف بچیه ته ویښ وی؟

یوسف ځواب ورکړ: زه زبیدی ویښ کړم، ته بیا روانیږې زه به دا ځل خامخا درسره ځم.

بدر: نه زویه ته تر اوسه ډیر وړوکی یی.

یوسف: ته تل همدا وایی، له زبیدی نه پوښتنه وکړه ما نن ښانځکه پورته وغورځوله او په غشی می وویشتله، هغی ویل ته اوس لوی شوی یی، ته اوس جهاد ته تلای شی.

بدر: نه بچیه! تر اوسه له وړوکی لیندی سره لوبی کوی، کله چی ته په درنی لیندی د غشو ویشتلو شی نو زه به دی بیا له ځان سره بیایم. ته تر اوسه پوری باید له خپلی مور سره پاتی شی.

یوسف: مگر پلارجانه ځو زه لوئیږم دا جگړه خو به پای ته نه رسیږی.

بدر: د کفر او اسلام جگړه هیڅکله هم پای ته نه رسیږی زویه، تر ځو یو مسلمان ژوندی وی دا جنگ به دوام لری.

زبیده چی شپږ کلنه وه دوره تر شا ولاړه وه او د دوی خبری یی اوریدی. بالاخره زړه نا زړه کوټی ته ورننوته بدر یوسف کوز کړ او هغه یی راپورته کړه.

زبیدی ورته وویل: زما پلارجان ولی رانه غی.

بدر: لور کی هغه به هم سبا ته راشی.

یوسف د بدر زوی او زبیده د بشیر بن حسن لور وه، له هغوی سره بدر تر له او دېره خبرو وروسته یې هغوی په بله کوټه کې پرېښودل او بېرته راغی،

ربیعی! ربیعی!

ربیعی یی غږ وپېژاند ځواب یی ورکړ: راځه انجیلا! انجیلا ور خلاص کړ کوټی ته ورننوته او په ویریدلی نظر یی هغوی ته کتل.

بدر وویل: انجیلا بشیر به سبا ته دلته راورسیږی. انجیلا ځادمنه ساه واخستله ویی ویل: ما لاندی د سپاهیانو شور ماشور واورید راویښه شوم، داسی ښکاري چی ته بیا په کوم لوری روان یی.

بدر: هو زه لویدیځ محاذ ته روان یم، بشیر ته می ویلی دی چی همدلته پاتی شی او د ټپیانو خدمت وکړی.

بدر بیا ربیعی ته وکتل او خدای پامان یی وویل او په ګړندیو ګامونو بهرته ووت.

لږ ځند وروسته ربیعی او انجیلا له کړکی نه لاندی کتل د غازیانو لښکر له کلا نه ووت او په ځنګل کی ورك شول خو د آسونو د پښو غږ یی لا اوریدل کیدو، د پښو ترپهار هم ورو ورو کراریده او بالاخره په فضا د بشپړی چوپتیا واکمنی شوه. انجیلا او ربیعی اوس له کړکی نه د بهر ته کتلو پر ځای یو بل ته کتل.

په بله کوټه کی د دوی بچیان یوسف او زبیده هم له بستری نه پاڅیدلی وو او د کړکی سره ولاړ وو بهرته یی کتل. دوی چی په بیته‌بده پوهیدلی وو نو تر تولو ښه غږ یی چی اوریده او په خوښی یی اوریده‌له کلاته د وتلو او بیرته راتلو پر وخت د آسونو د پښو غږ ؤ.

* * * *

(٤)

د کلا څو کوټی له ټپیانو ډکی وی. انجیلا او ربیعی چی د پټی ترل زده کړي وو د طبیبانو سره یی د ناروغانو په علاج کی مرسته کوله، تیری ځو

وروسته په دښمن تازه نفسه پوځ بیا رامېدان ته کړ، دا د سرحدي شاهین لومړني جنګ ؤ چې د شهیدانو شمېر یې تر زرو تنو پورې رسېده.

یوه ورځ د جګړې له محاذ نه راستنو شریو غازیانو بشیر بن حسن زیرۍ وکړ چې د فردیناند لښکر مات شو او مجاهدین یې له شانه په تعقیب پسې ووتل، په کلا کې د فتحې نغارې وغږول شوې، د ښاو خوا چوکیو او کلیو د خلکو غوږونه له دې نغارو سره آشنا وو او هغوی هم ددې په ځواب کې د فتحې نغارې وغږولې. او د سترګو په رپ کې د عقاب په دره کې له یوه سره تر بله د نغارو آزانګې شوې. د هر کلي د ورو او زړو په خوله د الله اکبر نارې وې، هغو خلکو چې هره ورځ د ټپیانو او شهیدانو خبرونه اورېدل او د جګړې د نتیجو په باب یې اندېښنه وه د دې زیري په اورېدو د خدای(ج) په دربار کې د شکرانې اوښکې تویولې. د کلا په منځ کې چې ښځو ټپیانو د فتحې خبر واورېدله خپلو خپلو کوټو ته راووتل، او هغه ټپیان چې د ولاړېدو اوتګ نه وو کېنناستل او په مراوو څېرو یې د ژوند خوښۍ وځلېدې. ورېدلي نظرونه په ویاړ او غرور آسمان ته په کتو شول، د کلا پهره داران د زخمي غازیانو سره غاړه غړۍ شول، ربیعه او انجیلا له خپلو ماشومو بچیانو سره د دوهم پوړ په برنډه کې ولاړې وې اود مجاهدینو احساساتي نعرې یې اورېدې.

لږ څند وروسته د شاوخوا کلیو خلک د فتحې د تفصیلاتو معلومولو په خاطر په دې کلا رامات شول، تر ماښامه د خلکو ګڼه ګونه وه. د کلیو خلک تر ډېره د خپل ګران لارښود انتظار کاوه خو چې د شپې تر ناوخته د پدر احوال رامعلوم نه شو دوي بېرته خپلو خپلو کورونو ته ستانه شول.

د ماسخوتن له لمانځه نه وروسته بشیر بن حسن له جوماته ووت او د

ابو محسن وويل: زه ستا د بیولو لپاره راغلی یم، زر تیاریږه بدر زخمي دی.

بشیر وویرید پوښتنه یې وکړه: بدر زخمي دی ، چیرته دی؟

ابو محسن : له دی ځایه نژدې اته کوسه لرې هغه بې سده شو، ځکه مو دلته راوستلی نه شو، هغه د ویالې د پل نه بلې غاړی ته د بربریانو په کلی کې دی.

بشیر وویل: زه اوس راځم او بیایې د دوا د کڅوړې راوړلو لپاره منډه واخسته. ابو محسن سپاهیانو ته چې پر دوی ورټول شوی وو د تازه نفسه آسونو د زین کولو وویل.

* * * * *

(۵)

بدر بن مغیره د کلي د سردار په کور کې پروت ؤ، هغه په بستر پروت دری واری بې هوښه شو، په کوټه کې د منصور بن احمد څو تنه ورسره وو. په هغوی کې دوه تنه طبیبان هم وو چې د جګړې له میدان نه له بدر سره راغلي وو هغه خلك چې له کوټې نه بهر ولاړ وو په ژړا یې د خپل ګران مشر د روغتیا دعاګانې کولې.

د بدر بن مغیره پر بدن اوه ټپونه وو، په ټپی حالت کې یې تر څو پړاوونو پورې دښمن تعقیب کړ او دده ډیره وینه وبهیدله. خلکو په ډیره ناکرارۍ د بشیر بن حسن د راتګ انتظار کاوه، بدر چې څلورم ځل په هوښ راغی اوبه یې وغوښتې، منصور هغه په خپلو لاسو تکیه کړ او اوبه یې وروڅښلې، د اوبو له څو غوړپو وروسته یې په کمزورې غږ وویل: ماته قرآن واوروی یوه خواږه غږ خاوند د قرآن کریم تلاوت پیل کړ، بدر په وجد راغی ورو ورو یې سترګې پټې کړې، طبیب ور وړاندې شو په نبض یې لاس کیښود خو

شو په نبض یې لاس ورکښېښود. بدر په پیکه موسکا خپل طبیب ته هرکلی
ووایه او لږ ځنډ یې دروازې ته سترګې واړولې خو بیا یې نظر د بشیر په
څېره وګنډل شو.

بشیر د هغه په مطلب وپوهیده ویې ویل: هغوی له ابو محسن سره راځي
تر لږ ځنډه به راورسیږي.

بدر سترګې پټې کړې، بشیر له منصور او دوو طبیبانو پرته نور کسان له
کوټې نه وایستل بیا یې طبیبانو ته وویل: دی بیا بیهوشه کیږي داسې
معلومیږي چې تاسو د وینې په بندولو کې له غفلت نه کار اخستی دی.

یوه طبیب ځواب ورکړ: هغه د ټپې کیدونه وروسته تر ډیره پر دښمن
پسې ور روان ؤ، ځکه یې موږ په وخت ټپونه ونه تړلی شول.

بشیر خپله ګځوړه خلاصه کړه یو بوتل یې راوایست او دوایی په پیاله
کې واچوله منصورته یې وکتل، منصور د بدر سر راپورته کړ او په خپلو
لاسونې تکیه کړ د بشیر په اشاره یوه طبیب شمعه د بدر د بسترې سره
نژدې کېښوده بشیر په ځیر د بدر د مخ له کتلونه وروسته وویل: دی په کومه
زهرجنه وسله زخمي شوی دی، زه ټول زخمونه یو ځل لیدل غواړم.

د بشیر بن حسن ملګرو یو پر بل پسې له ټولو ټپونو نه پټۍ لرې کړې او
ده پخپله پر هر یو تازه پټۍ لګولې او بیرته یې تړلې. دوی لا د ټپونو له
تړلونه وو وزګار شوی چې بهر بیا د آسونو د پښو ترپهار شو، بشیر منصور
ته وکتل او ویې ویل: ښایي ابومحسن او ربیعه دوی راورسیدل. ته بهر ته
ورشه او دوی په کومه بله کوټه کې ایسار کړه، زه به یې لږ ځنډ وروسته
دلته راوغواړم، منصور بهرته ووت.

* * * * *

(٦)

څولق نه وو، دوی دوی واړه د بستری په شاوخوا کې ولاړ وو، بشیر د بدر په نبض لاس ورکیښود وې ویل: ما پر زخمونو د پتی ترلو لپاره هغه پخپله یې هوبجه کړ، اوس مې د بیرته په سد کولو لپاره دوا ورکړې او اثر یې ورو ورو پرې څرګندېږي.

ربیعې په چوپه خوله خپل تېې میړه ته کتل، هغه حس چې یوازې له زړه سره یې اړیکې دي دا د تقدیر له پریکړې نه خبره کړې وه، سره له دې چې ځان ته یې تسلي او تمه ورکوله خو زړه یې لړیده.

بدر خو ځلې زګیروي وکړ او بیا یې سترګې وغړولې، ربیعې او انجیلا ته یې وکتل او وې ویل: یوسف او زبیده نه دي راغلي؟، ربیعې وویل: ما د هغو اوس راوستل مناسب ونه بلل، خدای (ج) دې تا روغ کړي سهارته به راشي.

بشیر له خپلې کڅورې نه یو بل بوتل راوایست په پیاله کې یې دواواچوله بدر په کمزورې غږ وویل: بشیره! نور ددې ضرورت نشته، زما منزل رارسیدلی دی.

بشیر وویل: ته به که خدای (ج) کول روغ شې دا وخوره!

بشیر ورووکښیناست خوله یې دواته وازوله وې ویل: زه پوهیږم زما طبیب ډیر ضدی دی. بشیر چې په هغه دوا وخوړه نو انجیلا ته یې اشاره وکړه او بیا دوی دواړه بلې کوټې ته ولاړل، ربیعه د بدر په اشاره نژدې ورته کښیناسته، بدر د هغې لاس په خپل لاس کې ونیو وې ویل: ربیعې ! ته ما د اور د لمبو په منځ کې موسکې لیدلې وې. خو ته نن غمجنه یې، ما تر اوسه داسې خبره نه ده کړې چې ستا د میړه د شان سره نه لګیږي، ما په شا تمې نه دي خوړلې، د قیامت په ورځ به ته زما پر سر شرمنده نه وې. د ربیعې له شونډونه په درد کې ډوب غږ اوچت شو: زما آغا! داسې مه وایه!

ابو محسن وویل: زه ستا د بیولو لپاره راغلی یم، زر تیاری په بدر زخمي دی.

بشیر وویرید پوښتنه یې وکړه: بدر زخمي دی ، چیرته دی؟

ابو محسن : له دی ځایه نژدې اته کوسه لرې هغه بې سده شو، ځکه مو دلته راوستلی نه شو، هغه د ویالې د پل نه بلې غاړی ته د بربریانو په کلی کې دی.

بشیر وویل: زه اوس راځم او بیایې د دوا د کځورې راوړلو لپاره منډه راخسته. ابو محسن سپاهیانو ته چې پر دوی ورتول شوی وو د تازه نفسه آسونو د زین کولو وویل.

* * * * *

(۵)

بدر بن مغیره د کلي د سردار په کور کې پروت ؤ، هغه په بستر پروت دری واری بی هوښه شو، په کوټه کې د منصور بن احمد څو تنه ورسره وو. په هغوی کې دوه تنه طبیبان هم وو چې د جګړې له میدان نه له بدر سره راغلي وو هغه خلك چې له کوټې نه بهر ولاړ وو په ژړا یې د خپل ګران مشر د روغتیا دعاګانې کولې.

د بدر بن مغیره پر بدن اوه ټپونه وو، په ټپي حالت کې یې تر څو پړاوونو پورې دښمن تعقیب کړ او دده ډیره وینه وبهیدله. خلکو په ډیره ناکرارۍ د بشیر بن حسن د راتګ انتظار کاوه، بدر چې څلورم ځل په هوښ راغی اوبه یې وغوښتې، منصور هغه په خپلو لاسو تکیه کړ او اوبه یې وروڅښلې، د اوبو له څو غوړپو وروسته یې په کمزورې غږ وویل: ماته قرآن واوروی یوه خواږه غږ خاوند د قرآن کریم تلاوت پیل کړ، بدر په وجد راغی ورو ورو یې سترګې پټې کړې، طبیب ور وراندې شو په نبض یې لاس کیښود خو

یوسف به ستا نوم نه بدوي، خو ...

بدر: خو څه؟!

ربیعه: یوسف ته لا تر اوسه خو کاله د پلار د سر سیوري ضروري دی. زما باور دی چې خدای(ج) به یې ستا سیوري له سره نه اخلي. ته به روغ شې ته به ژوندی پاتې کیږې، قوم تاته ضرورت لري، ربیعې په زوره زوره وژړل.

بشیر بن حسن او انجیلا کوټې ته ورننوتل. ربیعې خپلې اوښکې پاکې کړې ودریده او ورته یې وویل : ما وبخښئ، بدر د یوې غمجنې موسکا نه وروسته سترګې پټې کړې.

تر سهاره بدر بن مغیره څو ځلې بې هوښه شو، د شاوخوا کلیو په زرګونو تنه پر دې کور راغونډ شوي وو د سپاهیانو د قافلې سره یوسف او زبیده هم راورسیدل.

د لمر ختونه لږ وروسته بدر بن مغیره پر خپلو شاوخوا دوستانو وروستي نظر وغورځاوه او بیایې سترګې پټې کړې، په کمزوري غږ یې وویل: منصوره زه خپل نیمګړی کار تاته سپارم ته تر هغه وخته د دښمن پام ځان خواته وار وه تر څو د هیواد ټول مسلمانان مراکش ته نه وي رسیدلي، که ته وسله وغورځوې نو دښمن به داده شي او خپل ټول ځواک به د مسلمانانو په عامه وژنه په کار واچوي.

بشیره! په مراکش کې یتیمانو او کونډو مهاجرو ته د پناه ځای پیداکولو ذمه واري تاته سپارم. تاته به دلته هم ضرورت وي. خو دا کار ډیر ضروري دی، ابومحسنه! زما باور دی چې ستا په موجودیت کې به منصور داسې نه احساسوي چې یوازې دی. زما وخت پوره شو، زما منزل ماته ښکاري. انا لله و انا الیه راجعون ط

سترګې پرې خلاصې کړې وېې کتلې او انا لله و انا اليه راجعون ط يې وويل او سريې ځوړند کړ.

* * * * *

(۷)

دوې مياشتې وروسته څو کښتۍ چې ښځې او ماشومان پکې سپاره وو د اندلس له ساحل ته د مراکش په لورې روانې شوې. په يوه کښتۍ کې له بشير بن حسن سره انجيلا، ربيعه، يوسف او زبيده سپاره وو، د ختيځ افق ته لمر راختلی و، دا هماغه لمر و چې د اندلس پر ساحل يې د اسلام د غازيانو ړومبنۍ کښتۍ ليدلې وې، دا هماغه لمر و چې نژدې اته سوه کاله يې په حيرانۍ سره په اندلس کې د مسلمانانو د عروج پړاوونه ليدلي وو، دا هماغه لمر و چې په پراخه سينه يې د طارق او عبدالرحمن د وارثانو د جلال او دبدبې داستانونه ليک وو، دا هماغه سمندر و چې څپويې د غازيانو ولولې تازه کولې او پارولې، خو نن دې سمندر او دې لمر د هغه قوم د لونو په سترګو کې د بې کسۍ او بې وسۍ اوښکې ليدلې چې شهيدانو يې د خپلو وينو په څاڅکو د اندلس خاورې ته تازګي او سمسورتيا وربخښلې وه. د زمانې د بدلونونو دې چوپ ننداره‌چي د وخت لمن ونيوله او پوښتنه يې کوله چې ايا دا هماغه اولس دی چې وينې يې د الحمرا په سرو ډبرو کې ځليږي؟

ربيعه د کښتۍ په يوه څنډه کې ولاړه وه، د اندلس د ساحل وروستۍ ننداره يې کوله، په سترګو کې يې د اوښکو پر دې حايل شوې.

يوسف ور وړاندې شو ويې ويل: مورې! زبيده وايي چې کاکا به مونږ په مراکش کې پرېږدي او بيرته راځي.

ربيعه بيله دې چې هغه ته مخ ور واړوي ځواب ورکړ: هو بچيه! يوسف

اندلس ته به نې يوځم، او مونږ به دښمن له خپل هيواده وشړو. مورې تا ويل چې طارق دلته راغلی ؤ دير پوځونه ورسره نه وو بيا هم هغه ته خدای(ج) فتحه ورکړه. ګله چې يو مسلمان له لسو کافرو سره جنګيدلی شي نو دا دومره مسلمانانو غرناطه ولې پريښوده، تا ويل چې له قرطبې - اشبيلې او نورو ښارونو نه هم په لکونو مسلمانان مراکش ته تللي دوی ولی نه پاڅيدل وته جنګيدل؟

ربيعه: زويه د طارق د ملګرو سره ايمان ؤ. خو د دې خلکو ايمان کمزوری دی. هغوی مرګ يوه لويه بلله او دوی له مرګه ويريږي د هغې زمانې يوه أدنی مسلمان له اولس سره غداری نه کوله اوس لوی لوی خلك غداری کوي.

له ربيعې نه څو ګامه لرې زبيدې له انجيلا نه پوښتل: مورې! يوسف وايي زه به د بيړۍ کپتان شم او له مراکش نه به دير لوی پوځ اندلس ته راولم.

انجيلا: هو لورې! يوسف رښتيا وايي.

زبيده: زه هم ورسره ځم مورې!

انجيلا: لورې ته به له هغه سره څه وکړې؟

زبيده: زه به د ټپيانو زخمونه ترم مورجانې! زه به غشي ويشتل هم زده کړم.

انجيلا: ديره ښه ده لورې.

د کښتۍ په بله څنډه کې د همدې بيړۍ مراکش کپتان له بشير بن حسن سره خبرې کولې، د بدر بن مغيره د وروستی فتحې او شهادت په باب يې له څو پوښتنو وروسته بيا وپوښتل: تاسو به دا جګړه تر څه وخته پورې جاري ساتئ؟

پر هغوی به د ظلم لاس ډېر په سختۍ اوږد شي.

کپتان: ستاسو د ډېر وړوکي دلګۍ د جهاد نتیجه به څه وي؟

بشیر: د غازیانو د جګړې دري نتیجې وي، فتحه یا شهادت.

کپتان: زما په ګومان ستاسو د فتحې پر ځای د شهادت امکانات ډېر دي.

بشیر: بیا هم موږ په تاوان کې نه یو، په اندلس کې چې د مسلمانانو کوم باب زموږ په وینو وکښل شي هغه به له دې باب نه ډېر ښیل وي چې د غرناطې خلکو يې اوس د بې وسۍ په اوښکو لیکي. راتلونکي نسلونه به زموږ د تاریخ د باب په لوستلو له شرمه خولې خولې نه وي، زموږ په برخه به ذلت ژوند نه وي.

کپتان ویل: که پروردګار ته زموږ بنه ژوند منظور وای نو موسی غوندې مجاهد به نه ناکامیده، او له هغه وروسته به د غازیانو پاتې ځواک د بدر بن مغیره له مشرتابه نه محرومیده.

بشیر په غوسه شو ویې ویل: څوک وایي چې موسی په خپل مقصد کې ناکام شو، د غرناطې د خلکو ماته د موسی ماته نه ده. دا د هغو غدارانو او وطن پلورو ماته ده چې د عزت په مرګ يې د ذلت ژوند خوښ کړ، دا د ابوعبدالله ماته وه، د هغو علماو او امیرانو ماته وه چې په دې دنیا کې يې د څو ورځې ژوندي پاتې کېدو لپاره دایمي ذلت او رسوایي ومنله، موسی یو مسلمان ژ د یوه مسلمان په څېر يې ژوند وکړ او د مومن په مرګ مړشو.

او ته چې ګومان کوې چې تقدیرته زموږ ښه ژوند منظور نه دی هم تېر وتلی یې. پروردګار د مسلمانانو په ډېر لږ شمېر پېړۍ پېړۍ د خپلو رحمتونو او نعمتونو باران وکړ. موږ د دنیا تر ټولو لویو ځواکونو ته ماتې ورکړې، آیا دا د تقدیر لوړینه نه ده چې د شاهین په ډره کې د ګوتو په

په اولس کې اوس هم داسې خلک شته چې مایوسي او ماته نه پېژني؛ دغو خلکو د اولس وروستي مورچل ساتلی دی. دغه خلک بیا زي د اندلس خلکو ته نه د ټولې نړۍ مسلمانانو ته غږ کوي چې راشئ د کفر او اسلام په دې جګړه کې زموږ سره یو ځای شئ؛ ددې غازیانو غږونه به تر وروستي شیبې پورې له مراکش نه‌ترترکستان پورې د مسلمانانو راپاڅولو هڅه کوي. دغه غازیان به په همدې تمه جګړه کوي چې یوه ورځ به یې وږونه د غفلت له خوبه راویښ شي، یوه ورځ به یې مجاهدین مرستې ته راودانګي، که اسلامي نړۍ‌را په هوش نه شوه نو بیا به هم د اندلس د مسلمانانو تباهي د دوی پر غاړه نه وي، چې په خپلو وینو د بشر په تاریخ کې دا کرښې ولیکې چې کله چې ټول مسلمانان ویده وو د اندلس په یوه ګوښه کې څو سرښندویانو د حرم ساتنه کوله.

کپتان له لږ سوچ وروسته وویل: آیا زه ستاسو له ډلې سره یو ځای کیدای شم؟

بشیر ځواب ورکړ: تاته زما د اجازې ضرورت نشته، له خپل زړه سره مشوره وکړه.

کپتان: ماله خپل زړه سره مشوره کړې ده.

غازیانو د نوي لارښود منصور احمد تر لارښونې لاندې تر کلونو پورې جګړې ته دوام ورکړ، د شاهین دره تر ډیرې مودې د دوی په وینو رنګینه وه، په وار وار د دوی توري د ظلم او وحشت د سیلاب مخې ته د سکندر دیوال شوي، کله کله به ددې سیلاب د څپو له زوره په شاتګ ته اړ شول او کله کله به ددغه سیلاب څپې د عزم او همت له کمرونو سره تر ټکر وروسته بیرته په شا ولاړې، خو اسلامي نړۍ‌ویده وه، د مراکش مسلمانان په خپلو

شاه، له عربو کوم محمد بن القاسم او له افغانستان نه کوم محمود غزنوي د دوی مرستي ته ورنه غی، د اندلس ځمکه د شهیدانو په وینو رنګیدله، او د جبل الطارق غرونه او کمرونه د جنوب او ختیځ له لوري د کښتیو د راتګ په انتظار وو.

تر څو چې منصور او د هغه ملګري له دښمن سره په جګړه وو د پاتي اندلس د مسلمانانو لپاره لږ او ډیري د هجرت لاري خلاصي وي. د مجاهدینو شمیر ورو ورو کمیده، بیا یی هم تر دري نسلونو پوري جګړي ته دوام ورکړ، دا جګړه هغه وخت پای ته ورسیده چې د غازیانو د رګونو ورروستي څاڅکي وینه هم وڅڅیده.

توره هغه وخت، بې وسه شوه چې د پورته کولو لاس یی غوځ شو. له هغه ورروسته د وحشت او بربریت توپان په نوی ځواك راپورته شو، په اندلس کی نور د مسلمانانو لپاره له اور وینو، اوښکو او سلګو پرته هیڅ نه وو.

د اندلس په مسلمانانو څه تیر شول؟ په هغوی کې څو لکه وو چې له ښرلو نه وړاندي یی ووکی او لادونه تري واخستل شول؟ څو زره وو چې ژوندي وسوځول شول، څومره وو چې ډیري بدی شکنجي ورکړل شوی او ووژل شول. د هغو ښځو شمیر څومره و چې په ډبولو کی ووژلی شوی؟

تاریخ موږ ته ددی تولو پوښتنو ځواب راکوی، خو موږ ته پر دی دردناکو پیښو د خبریدو لپاره د تاریخ پانو اړولو ته ضرورت نشته، موږ د حال په هنداره کی د ماضي تصویر لیدلی شو په اندلس کی له اته سوه کاله حکومت ورروسته اوس هلته یو مسلمان نشته، د قرطبي، اشبیلیی او غرناطي جوماتونه اوس هم هلته شته، خو د اذان ورکولو ژبی د تل لپاره هلته چوپی دی. د غرناطي د مشرانو غلطي تر څو تنو پوري محدوده پاتي نه شوه، دا د یوه اولس تولنیزه اشتباه ثابته شوه. او نن د الحمرا دیوالونه د حال په ژبه وایي چې تقدیر د کوم قوم تولنیزه ګناه نه بخښي.

## د لیکوال «ژباړن» آثار

* : د وینو پیغام «شعري مجموعه»
* : د تیارو په تل کې «لنډو کیسو ټولګه»
* : ناتمامه کیسه «ناچاپ ټکلونه»
* : د جهاد په موضوعاتو څو رسالې
* : میرونه ګرنګونه «منځنی داستان چاپ»
* : له تکبیره تر فریاده «ناچاپ کالمونه»
* : شاهین «همدغه اثر» ژباړه
* : محمد بن قاسم «چاپ ته چمتو» ژباړه
* : د غازي کیسه «چاپ ته چمتو» ژباړه
* : وروستی کمر «چاپ ته چمتو» ژباړه
* : وروستی جګړه «چاپ ته چمتو» ژباړه

او یو شمیر نور اثار

